په پښتو ژبه د نورالإيضاح آسانه او جامع شرحه

# فتح الإيضاح

پښتو شرح

# نور الإيضاح

① لومړی ټوک

كتاب الطهارة - باب إدراك الفريضة


تألیف و ترتیب:

مولوی حبيب الرحمن مدني

فاضل وفاق المدارس العربيه

مولوي محمّدصادق كامران

فاضل جامعه محمّديه كوئټه



صداقت کتبخانه

په پښتو ژبه د نورالإيضاح آسانه او جامع شرح

# فتح الإيضاح

پښتو شرح

# نور الإيضاح

لومړی ټوک

کتاب الطهارة - باب إدراك الفريضة

تاليف او ترتيب:

مولوی حبيب الرحمن مدني

فاضل وفاق المدارس العربيه

مولوي محمّدصادق کامران

فاضل جامعه محمّديه

بسم الله الرحمن الرحيم

# فتح الإيضاح پښتو شرح نور الإيضاح (لومړی ټوک)

**تاليف او ترتيب:** مولوي حبيب الرحمن مدني او مولوي محمد صادق کامران

**خپرندوی:** صداقت کتب خانه

**چاپ کال:** ۱٤۰۰ش - ۲۰۲۲ م.

**د خپرونو لړ:** ۳۹۹

**چاپ شمېر:** ۱۰۰۰ ټوکه

**د تر لاسه کولو ځايونه:**

صداقت کتب خانه

اوله ناحيه، نوی سړک- کريم اعتماد مارکېټ- کندهار

Sadaqat.books@gmail.com / ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷

**کندهار:** صداقت خپرندويه ټولنه- ارګ بازار- قلم او کتاب مارکېټ **هلمند**: تاج منور خپرندويه ټولنه. **هرات:** صداقت کتاب پلورنځی- کوچه ګدام. **غزني:** نعماني کتاب پلورنځی. **پکتيکا:** مجاهد کتاب پلورنځی. **خوست:** اسلامي کتاب پلورنځی.

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

# د پېل خبري

رسول الله ﷺ فرمایلي دي "مَنۡ یُّرِدِ اللّٰهُ بِهٖ خَیۡرًا یُفَقِّهۡهُ فِی الدِّیۡنِ" چي الله تعالیٰ د کوم چا د خیر اراده وکړي او د خیر فیصله یې وکړي، هغه ته د دین فهم (پوهه) ور نصیب کړي، هغه ته د "فِقۡه فِي الدِّیۡنِ" علم ور کړي، علمُ الفقه د اسلامي تعلیماتو عطر دی او د اسلامي ژوند رهبر او لار ښوود دی، همدا وجه ده چي د علمُ الفقه و طرف ته خاص پاملرنه سوې ده، د دیني مدرسو په نصاب کي د هغه اهمیت او ارزښت بیان ته محتاج نه دی، د فقه د نصابي کتابونو په سلسله کي یوه کړی د ابو الاخلاص حسن بن عمار وفائي شرنبلالي رَحِمَهُ الله تصنیف نور الایضاح دی، دا کتاب خاص د عباداتو، طهارت، صلاة، زکاة او حج پر احکامو مشتمل دی، په دې کتاب کي د جزئیاتو او صرف د صحیح، راجح او مفتیٰ بِهٖ مسائلو د ذکر کولو خاص خیال ساتل سوی دی.

نور الایضاح له مقبوله کتابونو څخه شمېرل کیږي او د دې مقبولیت له دې څخه اندازه کېدلای سي چي له ډېري مودې څخه د مدرسو په نصاب کي شامل دی او زیات شروح یې لیکل سوي دي، په عربي ژبه کي د نور الایضاح تر ټولو جامع او مفصّل شرح خپله د مصنف رَحِمَهُ الله له قلم څخه مراقی الفلاح ده او په مراقی الفلاح باندي د علامه طحطاوي رَحِمَهُ الله حاشیې "حاشیة الطحطاوي" نور مقبولیت او ښکلا ور بخښلې ده، په پښتو ژبه کي هم د دې کتاب څو شروحات لیکل سوي دي او هره شرح ځان ته حیثیت لري. خو له هغوی څخه په انفرادي توګه په جلا طرز د عصري خصوصیاتو مطابق په آسانه پښتو ډېر جامع شرحي لیکلو ضرورت محسوس سو چي د هغه غوښتنه صداقت کتب خانې والا "قاري محمد اسماعیل صاحب" له بنده "مولوي حبیب الرحمن مدني" او "مولوي محمد صادق کامران"

ځخه وکړه. نو موږ هم د هغه غوښتني ته لبیک ووایه او تر ډېرو هڅو وروسته مو د "فَتْحُ الإِيْضَاح" په نامه د دې کتاب یوه جامع شرح ولیکله او پوره کوښښ مو دا وو چي د کتاب هر عبارت په پوره توګه حل سي او د طالبانو لپاره آسانتي پیدا سي.

او زیاتره استفاده مو له ① "انوار الایضاح" ② او "شفاء الارواح" ځخه وکړه (چي دا کتاب زیاتره له همدې دوو اردو شروحو ځخه اخیستل سوی دی) او د دې تر ځنګ مو له ③ ثمرة النجاح، ④ عون الفتاح، ⑤ نور الإصباح او داسي نورو شروحو ځخه هم استفاده وکړه او په دې کي چي کومو شروحو له نورو کتابونو ځخه اخذ کړی وو، د دوی د صراحت مطابق مو د هغه حوالې هم ولیکلې چي په اعتماد کي اضافه وي او د علماؤ او طلباؤ لپاره په مراجعت کي آسانتي وي.

له لوستونکو حضراتو ځخه دا خواست دی چي په کوم ځای کي ځه غلطي او تېروتنه محسوس کړي، نو د هغه اطلاع دي د خپروونکي اداري "صداقت کتب خانې" په واسطه سره موږ ته حتماً راکړي چي په آینده چاپ کي یې اصلاح وسي. په آخر کي له رب تعالیٰ ځخه سوال کوو چي په دې کي موږ ته اخلاص رانصیب کړي او په خپل فضل سره یې مقبول وګرځوي او زموږ لپاره یې د اُخروي نجات او د رضاء الهي د حصول ذریعه وګرځوي "آمین یا رب العالمین".

حبیب الرحمن "مدنی"

*...*...*

# ﴿ د فتحُ الایضاح خصوصیات ﴾

(۱)... د عربي عبارت د هري جملې تر څنګ آسانه ژباړه، او په کوم ځای کې چې جمله او عبارت مشکل وي، نو په قوسینو کې په آسانه الفاظو سره د هغه وضاحت.

(۲)... هري مسئلې ته نمبر (رقم) ورکړل سوی دی، او په دې توګه له کتابُ الطهارة څخه تر کتابُ الحج پوري په ټوله کتاب کې (۱۴۸۲) ارقام په وجود کې راغلي دي، لهذا داویل کېدلای سي چې په نُور الایضاح کې (۱۴۸۲) مسائل دي، خو بعضي وخت مورږ داسي هم کړي دي چې یوه اوږده مسئله وي او تر هغه لاندې څو نور ضمني مسائل هم وي، نو کله مو هغه ضمني مسائلو ته جلا نمبر ورکړی وي او په بعضي ځایو کې مو جلا کول ضروري نه وي ګڼلی، بلکي ټوله مو د هغه یوې مسئلې په ضمن کې په یوه نمبر سره مرقم کړي وي.

(۳)... د عربي عبارت بشپړ د هر حرف اعراب، په پوره تحقیق او تدقیق سره.

(۴)... د لغاتو پوره، کافي حلّ او د هغوی صرفي تحقیق.

(۵)... د هري مسئلې تشریح او بشپړ وضاحت.

(۶)... د عنواناتو اضافه.

(۷)... د ضروري مسئلو اضافه، په بعضي عباراتو کې د مسئلې تر تشریح وروسته د هغه عبارت سره مناسبه مسئلې هم اضافه کړل سوي وي، د دې لپاره چې د عبارت د مسئلې تر څنګ په نورو مسئلو باندې هم علم راسي، هلته مو تر تشریح وروسته دا نښه لیکلې وي:



# مُقَدِّمَة

## مبادیات (بنیادي خبري)

د هر فن او کتاب تر شروع کولو مخکې د هغه فن یو څو شیان پېژندل ضروري دي، د دې لپاره چې د هغه فن او کتاب سره مناسبت پیدا سي، لکه څرنګه چې خطیب تر بیان کولو مخکې د شروع(سریز) کلمات وایي، د دې لپاره چې مناسبت پیدا سي (ماحول جوړ سي)، همدې مبادیاتو ته مقدمه ویل کیږي. په پخوا زمانه کې چې به کله لښکر یو خوا ته روانېدی، نو د هغه له روانتیا څخه مخکې به یوه کوچنۍ ټولي (ډله) د دې مقصد لپاره (مخکې) روانه کړل سوه چې هغوی مخ ته ولاړ سي او د لښکر د پړاؤ کولو او د داسې نورو ضروریاتو او سهولیاتو لپاره انتظام وکړي، دغه ټولي (ډلې) ته مقدمة الجیش ویل کېده، نو مقدمة الکتاب د کتاب هغه ابتدائي حصه سوه کوم چې د اصل کتاب تر شروع کولو مخکې د کتاب د وضاحت او مقصد په هکله ولیکل سي.

څرنګه چې دا کتاب د فقهي دی، نو د دې تر شروع کولو مخکې هم د څو شیانو پېژندل ضروري دي: ① د فقهي تعریف، ② موضوع، ③ غرض او هدف، ④ د دې فن حکم، ⑤ د مصنف ژوند لیک.

**د دې شیانو پېژندل ولې ضروري دي؟**: ① د تعریف پېژندل ځکه ضروري دي چې طلب د مجهول مطلق را نه سي، ځکه د نامعلومه شي طلب کول عبث او بې فایدې کار دی، ② د موضوع پېژندل ځکه ضروري دي چې د دې فن مسئلې له بل فن څخه علیحده او جلا کړل سي، ③ د غرض پېژندل ځکه ضروري دي چې طلب د عبث شي را نه سي، یعني د لوستونکي لپاره د فن د هدف معلومېدل ځکه ضروري دي چې د عبث او بې فایدې شي طلب کونکی نه سي، ④ د مصنف د ژوندلیک پېژندل ځکه ضروري دي، چې د هغه د علمي ژوند او علمي مقام په پېژندلو سره د هغه د تصنیف علمي مقام معلوم سي.

**د فقهي لغوي تعریف**: فقه مصدر دی، له کَرُمَ او سَمِعَ دوارو بابونو څخه راځي، کله چې له سَمِعَ څخه راسي، یعني فَقِهَ يَفْقَهُ فِقْهًا، نو معنیٰ یې ده: العلم بالشئ، په یو شي پوهېدل، پېژندل. یا په بله وینا "پوهه "او "یوشی څرګندول، واضح کول"، او کله چې له کَرُمَ څخه راسي، یعني فَقُهَ يَفْقُهُ فَقَاهَةً، نو معنیٰ یې ده: فقیه او عالم کېدل، هوښیار کېدل. فَقِیهٌ هغه پوه او زیرک عالم ته وایي چې شرعي احکام واضح کوي، او د هغوی حقیقت او پېچلي مسئلې په ښکاره توګه بیانوي.

**د فقهې اصطلاحي تعریف:** د شریعت په اصطلاح کې د فقهې تعریف دا دی: «هُوَ الْعِلْمُ بِالْأَحْكَامِ الشَّرْعِيَّةِ الْفَرْعِيَّةِ الْمُكْتَسَبُ مِنْ أَدِلَّتِهَا التَّفْصِيلِيَّةِ»، (یعني په تفصیلي دلائلو سره شرعي فرعي حکمونه معلومول. یا په بله وینا: فقه د شرعي و فرعي احکامو هغه علم ته وایي کوم چې د دې شرعي و فرعي احکامو په تفصیلي دلائلو سره حاصل کړل سي. د کومو احکامو تعلق چې د عمل سره وي، هغه ته فرعي احکام وایي او د کومو تعلق چې د عقیدې سره وي، هغه ته شرعي او اصلي احکام وایي).

**تفصیلي دلائل:** تفصیلي دلائل یا په بله وینا د شرعي احکامو د ثبوت دلائل څلور دي: ① قرآن، ② سنت، ③ اجماع، ④ قیاس. هر شرعي حکم به حتماً په دې کې په یوه دلیل سره ثابتیږي. یعني د انسان د یو عمل په هکله دا حکم چې هغه حرام دی، یا مکروه دی، یا مباح دی، یا فرض دی، یا واجب دی، یا سنت دی، دا ټوله به یا په قرآن کریم سره ثابتیږي، یا په سنت (یعني په حدیثو) سره، یا په اجماع او قیاس سره، له دې څخه پرته د شرعي حکم ثابتولو بله هیڅ ذریعه نسته.

<u>أدلتها التفصیلیة</u>: یعني فقه هغه علم دی چې په هغه کې د احکامو تفصیلي دلائل هم معلوم کړل سي (د تفصیلي دلائلو وضاحت پورته وسو)، مثلاً یو څوک ووایي چې حج فرض دی، نو دلیل به یې هم ورته معلوم وي چې دا آیت دی: وأتموا الحج والعمرة لله [البقرة:١٩٦]، یا مثلاً دا مسئله بیان کړي چې لمونځ او زکاة فرض دی، نو دا به هم ورته معلومه وي چې دلیل یې دا آیت دی: أقیموا الصلوة و آتوا الزکوة و ارکعوا مع الراکعین [البقرة: ٤٣]. لنډه دا چې د انسان د اعمالو پر هره جزئیه د حلت، حُرمت، کراهت او د وجوب حکم لګولو او د هر یوه دلیل بیانولو ته علم فقه ویل کیږي.

له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چې د حلال و حرام او د جائز و ناجائز د پیژندلو نوم فقه ده، او د صوفیاؤ په نیز د علم او عمل د مجموعې نوم فقه ده.

**د فقهې موضوع:** «فِعْلُ الْمُكَلَّفِ ثُبُوتًا أَوْ سَلْبًا»، (یعني د مُکلف انسان له فعل او عمل څخه دا بحث کول چې: ① دا فرض دی، ② واجب دی، ② سنت مؤکده او غیر مؤکده دی، ③ نفل او مستحب دی، ④ یا حرام دی، ⑤ یا مکروه تحریمي او مکروه تنزیهي دی، ⑥ یا مباح دی؛ د مُکلف انسان د یو عمل په هکله دا حکمونه کول د فقهې موضوع ده).

د مُکلف په قید یې له نابالغه کوچني او مجنون څخه احتراز وکړی، ځکه په شریعت او فقه کې د دوی پر اعمالو نه یو حکم کول کیږي او نه له دوی څخه بحث کیږي. فقط د مُکلف انسان له اعمالو څخه بحث کیږي.

**د فقهې غرض او هدف:** «الْفَوْزُ بِسَعَادَةِ الدَّارَيْنِ»، (یعني د فقهې د زده کولو غرض او هدف دا دی چې د دې په ذریعه د دنیا او آخرت کامیابي او نېکبختي ترلاسه کړل سي). د دنیا کامیابي خو دا ده

چې فقیه د خدای مخلوق ته دیني فایده رسوي، چې د هغه په وجه به د احترام او عزت مقام ترلاسه کړي، او د آخرت کامیابي او نېک بختي ښکاره ده چې له حرامو کارونو څخه د ځان ساتلو او پر مأموراتو د عمل کولو په وجه به په آخرت کې شفاعت او جنت حاصل کړي او د خپل پروردګار په مقدس دیدار سره به مُشرّف سي.

**د فقهي حکم**: د فقهي زده کول فرضِ عین هم دي او فرضِ کفایي هم دي.

په فقه کې د ومره معلومات حاصلول فرض عین دي چې په دین کې هغه ته ضرورت او احتیاج پېښېږي (مثلاً د طهارت مسئلې، د لمانځه مسئلې او داسې نور)، او تر خپل ضرورت زیات د نورو خلکو د نفعې او فایدې لپاره علم حاصلول فرض کفایي دي یعنې چې نور خلک هم پر مأموراتو عمل وکړي او له محرماتو څخه ځان وساتي. او په بشپړه توګه د فقهي د ټولو أنواعو زده کړه یعنې د ټولو عباداتو او معاملاتو علم حاصلول مستحب دي.

همدارنګه پر هر انسان د خپلې شعبې او ځانګې سره د اړوند احکامو زده کړه هم ضروري ده، مثلاً پر تاجر کس د کاروبار سره د اړوند مسئلو زده کړه ضروري ده، د دې لپاره چې په دې شعبه کې له محرماتو او منهیاتو څخه وژغورل سي، له دې مسئلو څخه چاره نسته او د دې حاصلول ضروري دي؛ ځکه له دې څخه بغیر خو یو مسلمان د اسلام مطابق نه خپلې ذمه واریانې اداء کولای سي او نه خپل حقوق حاصلولای سي؛ نو ځکه پر هر مسلمان لازم دي چې هغه له ضروري دیني مسائلو څخه غافل نه سي.

په بعضې کتابو کې د فن د مأخذ پېژندل هم ضروري کښل سوي دي کوم چې له تعریف څخه خپله معلومېږي، نو د فقهي مأخذ کتاب، سنت، اجماع او قیاس دي.

## د "نور الایضاح" د مصنف لنډ ژوند لیک

**نوم او نسب**: د نور الایضاح د مصنف نوم حسن دی، کنیت یې ابو الاخلاص دی، د پلار نوم یې عمّار دی او د نیکه نوم یې علي دی، په وفائي سره مشهوره دی.

**د پیدایښت ځای او نېټه**: دغه عظیم فقیه په سنه ۹۹۴هـ کې په "شبرابلوله" کې د دې نړۍ ته سترګې پرانیستلې، "شبرابلوله" د مصر د صحرا په علاقو کې د یو علاقې نوم دی، د همدې وطن ته په نسبت کولو سره مصنف رَحِمَهُ الله ته شرنبلالي ویل کیږي، خلافُ القیاس؛ ځکه د قیاس په اعتبار سره شبرابلولی کېدل پکار دي.

**تحصیل**: مصنف رَحِمَهُ الله فقط د شپږو کالو وو چې پلار محترم هغه د تعلیم لپاره مصر ته راوستی، همدلته یې قرآن شریف حفظ کړی او د خپل وخت د غوره علماؤ لکه د شیخ محمد حَمَوِی، شیخ عبد الرحمن المَیسری، امام عبد الله نحریري، شیخ الاسلام نور الدین او داسې نورو سره یې علم حاصل کړی او له دې څخه بغیر نور هم له ډېرو علماؤ څخه یې کافي استفاده وکړه.

**فضل و کمال:** دنور الایضاح دمصنف رَحِمَهُ الله فقهي مقام خو مُسلم دی، ددې تر څنګ د خپل وخت په نامتو محدثینو کې د ده شمار وو، له دې څخه بغیر یې په نورو علومو او فنونو کې هم مهارتِ تامه درلوده، خصوصاً په فتاویٰ کې د څانګړي شان مالک او مرجعُ الخلائق وو، یوه ډېره موده یې د مصر په لویه علمي درسګاه "جامعه ازهر" کې تدریس کوی.

د ده د شاګردانو فهرست ډېر اوږدی چې له هغوی څخه ځیني دا دي: ① علامه احمد عجمي. کوم چې د شافعي مسلک له سترو علماؤ څخه وو، ② سیدُ السند احمد الحموي. کوم چې په مختلفه علومو کې یې بېلا بېل تصانیف کړي دي، ③ شیخ شاهین الازمناوی، کوم چې د قاهرې ستر فقیه او د متونِ کثیره مثلا د کنز، شاطبیه، الرحبیه او داسې نورو حافظ وو.

**وفات (مړینه):** په سنه ۱۰۶۹ھ کې په ۱۱/ د رمضانُ المبارک د جمعې مبارکې په ورځ د مازیګر تر لمانځه وروسته یې د ۷۵ کالو په عمر کې داجل پېغام ته لبیک ووایه او له دې فاني نړۍ څخه یې د تل لپاره سترګې پټې کړې.

**مصنف رَحِمَهُ الله د سترو علماؤ په نظر کې:** علامه محمد امین المحبي رَحِمَهُ الله د مصنف رَحِمَهُ الله په شان کې لیکي:

"دئ د زمانې محقق او د فضلاؤ سردار وو، په فقهي ملکه کې احسنُ المتأخرین وو، په فقهي قواعدو او نصوصو زیات عالم وو".

شیخ علامه محمد المحبي رَحِمَهُ الله د مصنف رَحِمَهُ الله په هکله لیکي: که چیرې صاحب د سراجُ الوهاج دئ (یعني مصنف رَحِمَهُ الله) لیدلی وای، نو ده له نور (علم) څخه به یې اکتساب کولای. یا که صاحب د ظهیریه لیدلي وای، نو د ده د ښکاره کېدو په وخت کې به پټېدلای، دئ غوره اخلاقو والا او د فصیح ژبې مالک وو، د زمانې په غوره علماؤ کې د ده شمار وو، دئ د نېکانو او مجذوبانو معتقد وو، او د دوی له طرفه به ده ته د بعضي حالاتو او واقعاتو (غیبي) اشارې هم ورکول کېدې، لکه څرنګه چې ویل سوي دي چې یوه صالح ده ته وویل: اې حسن! له نن څخه وروسته ته د خپل ځان او د خپل اهل وعیال لپاره کېرې (جامې) مه رانیسه!، نو له هاغه ورځې څخه به ده ته غوره کېرې راتللې او تر هغه وروسته بیا هیڅکله کېرې رانیولو ته محتاج نه سو.

**تصنیفات وتالیفات:** د علامه شرنبلالي رَحِمَهُ الله تصنیفات، تألیفات، رسائل او کتابونه کوچني او لوی ټوله له اویا (۷۰) څخه هم زیات دي، اکثر په دوی کې پر فقه اوفتویٰ مشتمل دي، داکثرو نومان او سنه د تألیف په "ثمرة النجاح" او "ظفر المحصلین" کې مذکوره دي، خو په دوی کې "حاشیهٔ دُرَر و غُرَر" او "نور الایضاح و نجاةُ الارواح" تر ټولو اعلیٰ و ارفع، معروف و مقبول دي، "امدادُ الفتاح"

هم غوره کتاب دی خو نایابه دی، "حاشیهٔ دُرر وغُرر" ډېره مقبوله حاشیه ده، غُرر الاحکام (دملا خسرو محمد بن علي رَحِمَهُ الله) مشهوره متن دی، خپله مصنف رَحِمَهُ الله د "دُرر الحکام فی شرح غُرر الاحکام" په نامه سره دې شرح لیکلې ده کوم چې په دوو جلدونو کې مطبوعه ده، علامه شرنبلالي رَحِمَهُ الله پر همدې متن دا حاشیه ولیکله کوم چې د ده په ژوند کې یې غیر معمولي شهرت ترلاسه کړی، او پاته سو نور الایضاح، نو هغه په فقه کې داسې امتیازي شان او مقبولیت ترلاسه کړی چې تر اوسه د مدارسو په نصاب کې داخل دی، مصنف رَحِمَهُ الله دا اولاً تر کتابُ الاعتکاف پوري ولیکی چې له هغه څخه په ۲۴ د جمادی الأولی په سنه ۱۰۳۲ هـ کې د جمعې په ورځ فارغ سو. تر هغه وروسته یې مسائل زکاة او مسائل حج هم ور سره یو ځای کړل او په دې توګه یې عبادات خمسه پوره کړل.

## د علمُ الفقه فضیلت

تر تفسیر، حدیث او عقائدو وروسته تر ټولو غوره علم "علمُ الفقه" ده، لوی څښتن ﷻ فرمايي: ﴿مَن يُؤْتَ الحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا﴾. [سورة البقرة: ۲۶۹]، (یعنې چا ته چې پوهه او حکمت ورکړای سو، په تحقیق سره هغه ته ډېر خیر ورکول سو)، ځینې مفسرینو د "حکمت" تفسیر په علمُ الشرائع سره کړی دی، او له علمُ الشرائع څخه مراد همدا د فقهي علم دی.

نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: « مَن يُرِدِ اللهُ بِهِ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّينِ »، (ترمذي شريف، باب إذا أراد الله بعبد خيرا.... حديث شمېره: ۲۶۴۵)، (چا ته چې الله ﷻ د خیر اراده ولري، نو هغه ته د دین پوهه ور نصیب کړي)، له دې حدیث څخه معلومه سوه چې د کوم بنده په باره کې لوی څښتن ﷻ د خیر فیصله وکړي، هغه ته د "فِقْه فِي الدِّين" علم ورکوي.

په بل حدیث کې ذکر سوي دي: « فَقِيهٌ وَاحِدٌ أَشَدُّ عَلَى الشَّيْطَانِ مِنْ أَلْفِ عَابِدٍ »، (ترمذي شريف، باب ما جاء في فضل الفقه.... حديث شمېره: ۲۶۸۱)، (یو فقیه عالم پر شیطان تر زرو بزرګانو هم بوج او سخت دی). لهذا فقه زده کول او پر هغه عمل کول ډېر د فضیلت مقام لري.

یو شاعر د فقهي په تعریف کې ویلي دي:

① إِذَا مَا اعْتَزَّ ذُو عِلْمٍ بِعِلْمٍ ... فَعِلْمُ الفِقْهِ أَوْلَى بِاعْتِزَازِ

② فَكَمْ طِيبٍ تَفُوحُ وَلَا كَمِسْكٍ ... وَكَمْ طَيْرٍ يَطِيرُ وَلَا كَبَازِ

ژباړه: ① کله چې یو عالم په خپل علم سره ویاړ کوي ؛ نو د ویاړ او فخر وړ د فقهي علم دی.

② څکه څومره خوشبویانې پورته کیږي، خو یوه خوشبویي هم د مُشکو په څیر نه ده؛ او څومره مارغان الوزي، خو یو هم د باز په څیر نه دی.

یعني د نورو علمونو په مقابله کي علمُ الفقه داسي فضیلت لري، څرنګه چي مُشک د نورو عطرونو په مقابله کي او باز د نورو مارغانو په مقابله کي فضیلت لري.

او بل شاعر ویلي دي:

① وَخَيْرُ عُلُوْمٍ عِلْمُ فِقْهٍ لِأَنَّهُ　　يَكُوْنُ إِلَى كُلِّ الْمَعَالِيْ تَوَسُّلًا

② فَإِنَّ فَقِيْهًا وَاحِدًا مُتَوَرِّعًا　　عَلَى أَلْفِ ذِيْ زُهْدٍ تَفَضَّلَ وَاعْتَلَا

**ژباړه:** ① له ټولو علمونو څخه غوره علمُ الفقه دی، چي هغه د لوړو رُتبو وسیله ده

② همدا وجه ده چي یو پرهېزګاره فقیه پر زرو زاهدانو فضیلت لري.

حضرت علي كَرَّمَ اللهُ وَجْهَهُ به د خپل تعلم او علم په هکله په وياړ سره ویل:

① رَضِيْنَا قِسْمَةَ الْجَبَّارِ فِيْنَا　　لَنَا عِلْمٌ وَلِلْجُهَّالِ مَالُ

② لِأَنَّ الْمَالَ يَفْنٰى عَنْ قَرِيْبٍ　　وَإِنَّ الْعِلْمَ بَاقٍ لَا يَزَالُ

**ژباړه:** ① موږ د لوی څښتن ﷻ پر تقسیم راضي یو؛ چي موږ ته یې علم را نصیب کړی دی، او جاهلانو ته یې مال.

② ځکه چي مال به ډېر ژر فناء سي؛ او علم به تل تر تله پاته وي.

## د علم فقه تدوین (او د علم فقه مدوّن او باني)

که څه هم د اسلامي علومو پيل د اسلام سره یو ځای وسو او د نزولِ وحي له زماني څخه د عقائدو، حدیث، تفسیر او فقه تعلیم شروع سو، خو څرنګه چي په ځانګړي ترتیب او خاص طرز سره په اوله هجري سدۍ (پېړۍ) کي د "علم الفقه" تدوین نه دی سوی او نه هغه ته دیو ځانګړي فن حیثیت حاصل وو، نو ځکه په اوله پېړۍ کي دیو خاص کس وطرف ته د فقه تدوین نه منسوب کیږي. خاص همدغه حال د نورو علومو او فنونو هم دی.

لیکن کله چي په دویمه هجري پېړۍ کي تر ټولو مخکي امام اعظم ابو حنیفه رَحِمَهُ الله (مولد سنه: ۸۰هـ. متوفی سنه: ۱۵۰هـ) په ځانګړي انداز او ترتیب سره تر اُصولو او ضوابطو لاندي "فقه" مدوّنه کړه، او هغه ته یې د مستقل فن شکل ورکړی، نو ځکه هغوی ته د دغه اهم فن باني ویل کیږي.

لکه څرنګه چي حافظ جلالُ الدین سیوطي شافعي (متوفی سنه: ۹۱۱هـ) په خپل کتاب (تبییض الصحیفة بمناقب أبي حنیفة) کي له ځیني سترو علماؤ څخه را نقل کړي دي چي: "د امام صاحب له ځانګړي مناقبو څخه دا هم دي چي امام صاحب تر ټولو مخکي هغه کس دی چي د

شریعت علم یې سره راټول او مدون کړی او هغه ته یې د فقهي بابونو ترتیب ورکړی. بیا د هغه په اتباع کي امام مالک رَحِمَهُ الله (موطأ امام مالک) ولیکی". (تبییض الصحیفة ص: ۳۶)

ښکاره دي وي چي له تدوین شریعت څخه مراد د شریعت مسائلو ته د فقهي بابونو ترتیب ورکول دي (یعني باب الطهارة، باب الصلاة، باب الصوم، باب الزكاة..... إلخ). چي د هغه دویم نوم "تدوین فقه" ده، همدارنګه د صحاح سته وو مشهور راوي او محدث نضر بن شمیل فرمایلي دي چي: "خلک له علم فقه څخه غافل وو، د امام صاحب انقلابي حرکت دوی را ویښ کړل".

له دې معتبرو روایتونو څخه ښکاره سوه چي د علم فقه باني او مدون امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله دی.

مشهور محدث د ترمذي راوي خلف بن ایوب رَحِمَهُ الله فرمایي چي: له الله تعالی څخه علم حضرت محمد ﷺ ته ورسېدی، نبي ﷺ صحابه وو ته ورسوی، صحابه وو تابعینو ته ورسوی. تر تابعینو وروسته امام ابو حنیفه او د هغه ملګرو ته ورسېدی. په دې خبره که څوک خوشحاله کیږي، او که ناراضه کیږي! (همدا خبره په معارف السنن ج: ۳، ص: ۲۶۱ کي هم ذکر سوې ده).

د فقه د تدوین یا په بله وینا د حنفي فقهي د سند نقشه داسي ښوول سوې ده: "اَلْفِقْهُ زَرَعَهُ عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُوْدٍ رضي الله عنه وَ سَقَاهُ عَلْقَمَةُ وَحَصَدَهُ النَّخْعِيُّ وَ دَاسَهُ حَمَّادٌ وَ طَحَنَهُ أَبُوْحَنِيْفَةَ وَ عَجَنَهُ أَبُوْيُوْسُفَ وَ خَبَزَهُ مُحَمَّدٌ فَسَائِرُ النَّاسِ يَأْكُلُوْنَ مِنْ خُبْزِهِ" یعني د فقهي کښت حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه وکړی (مطلب دا چي د اجتهاد طریقه له هغه څخه شروع سوه)، او حضرت علقمه بن قیس رَحِمَهُ الله دغه کښت ته اوبه ورکړې او اوبه یې کړی (یعني د هغه وضاحت او تشریح یې وکړه)، ابراهیم نخعي رَحِمَهُ الله دا کښت ورېبی ورېبی (یعني فوائد متفرقه یې جمع کړل)، غوبل یې حماد بن ابی سلیمان رَحِمَهُ الله وکړی (یعني هغه یې ښه منقح او مرتب کړی)، او امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله میده کړی او اوړه یې ځني جوړه کړه (یعني امام صاحب رَحِمَهُ الله د دېرشو کالو په موده کي د خپلو نامتو شاګردانو کوم چي د فن ماهرین وه چي شمېر یې څلوېښت وو، مثلاً امام ابو یوسف، امام محمد، امام زفر، داؤد طایي رَحِمَهُمُ الله او داسي نورو په ګډه تقریباً دوولس لکه نیوي زره مسئلې مستنبط کړې او د فقهي بابونو ترتیب یې ورکړی یعني باب الطهارة، باب الصلاة، باب الصوم...... إلخ. په همدې وجه امام صاحب رَحِمَهُ الله ته د فقهي مدون او باني ویل کیږي). امام ابو یوسف یعقوب رَحِمَهُ الله دا اوړه خیشته کړل (یعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په اصولو کي یې ښه غور وکړی او له هغه څخه یې فروعي مسائل مستنبط کړل). او امام محمد بن الحسن الشیباني رَحِمَهُ الله له دې څخه ډوډۍ پخې کړې او اوس یې ټوله خلک خوري (یعني هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله مذهب ښه منقح او مهذب کړی او په قاعده سره یې کتابي شکل ورکړی او خلکو ته یې پېش کړی. تر دې چي بعضي علماء فرمایي چي نهه سوه نهه نیوي ۱۹۹۹ کتابونه یې تصنیف کړل).

د امام محمد رَحِمَهُ الله تصانیف په حنفي فقه کي اوله مرجع ګڼل کیږي. خو څرنګه چي ټوله کتابونه یې د استناد په اعتبار سره مساوي نه دي، نو ځکه علماؤ هغوی پر دوو قسمونو تقسیم کړي دي: اول قسم "کتب ظاهر الروایة" دي او هغه دا شپږ کتابونه دي. د فقهي حنفي اعتبار پر همدې کتابونو دی: ① المبسوط. ② الزیادات. ③ الجامع الصغیر. ④ الجامع الکبیر. ⑤ السیر الصغیر. ⑥ السیر الکبیر. دې ته أُصول هم وایي او ظاهرُ الروایة ځکه ورته وایي چي دا له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه د تواتُر په توګه مروي دي. او دویم قسم "کتب غیر ظاهر الروایة" دي کوم چي د امام محمد رَحِمَهُ الله و طرف ته په منسوب کېدلو کي د اول قسم سره برابر نه دي. هغه دا دي: ① کیسانیات. ② هارونیات. ③ جرجانیات. ④ الرقیات. ⑤ زیادة الزیادات. دې ته "نوادر" هم وایي.

## ځیني ضروري اصطلاحات

**ائمه اربعه**: کله چي د فقهي په کتابو کي دا لفظ ذکر سي، نو له دې څخه څلور ستر امامان مراد وي. یعني: امام ابو حنیفه، امام مالک، امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمُ الله.

**شیخین**: کله چي دا لفظ ذکر سي، نو له دې څخه مراد امام ابو حنیفه او امام ابویوسف رَحِمَهُمَا الله وي. ځکه دا دواړه د امام محمد رَحِمَهُ الله أُستاذان دي.

**صاحبین**: امام ابو یوسف او امام محمد رَحِمَهُمَا الله څني مراد وي، ځکه دوی دواړه له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د علم په زده کړه کي ملګري (یاران) ول.

**طرفین**: امام ابو حنیفه او امام محمد رَحِمَهُمَا الله څني مراد وي، ځکه دوی دواړه دوو طرفونو ته دي. یعني امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله لوړ طرف ته. یعني استاذ دی. او امام محمد رَحِمَهُ الله لاندي طرف ته. یعني شاګرد دی.

**امام صاحب**: له دې څخه مراد امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله وي.

**سلف وخلف**: له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه تر امام محمد رَحِمَهُ الله پوري چي کوم فقها، حضرات دي. هغوی ته "سَلَف" وایي. او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه وروسته تر شمس الائمه حلواني رَحِمَهُ الله پوري چي کوم حضرات دي، هغوی ته "خَلَف" وایي.

**ظاهرُ الروایة**: مخکي هم د دې وضاحت سو. ظاهر روایت د امام صاحب، امام ابو یوسف او امام محمد رَحِمَهُمُ الله هغو اقوالو او هغو مسئلو ته وایي کوم چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په دې شپږو مشهوره کتابو کي را نقل سوي وي، ① مبسوط. ② زیادات. ③ جامع صغیر. ④ جامع کبیر. ⑤ سیر کبیر. ⑥ سیر صغیر. دا درجه په مسائلو کي تر ټولو اعلیٰ او اقویٰ ده.

**غیر ظاهر الروایة (یا نوادرُ الروایة)**: کوم اقوال، مسئلې او روایتونه چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په پورتنیو شپږو کتابو کې ذکر سوي نه وي، هغوی ته غیرِ ظاهر الرّوایة یا نادر الرّوایة وایي. د دوی سند د ظاهر الروایة په څېر معروف نه دی. د دغه درجې روایاتو مرتبه له ظاهر روایت څخه کمه ده. نو ځکه د تعارض په وخت کې به ظاهر روایت راجح وي، مګر دا چې دیو علت پر بناء متأخرین د هغه په خلاف (غیر ظاهر روایت) راجح وګرځوي.

**فتاویٰ**: هغه مسئلې دي چې د هغوی په هکله په ظاهر روایت یا په غیرِ ظاهر روایت (نادر الروایة) کې له اهلِ مذهب څخه هیڅ حکم منقول نه وي او مجتهدینو د اُصولو په رڼا کې د هغوی استنباط او استخراج کړی وي، داسې مسائل د اُصولو په اصطلاح کې په فتاویٰ سره تعبیرول کیږي.

**مسائل نوازل**: همدا د مذهب د مجتهدینو امامانو وفتاویٰ وو ته وایي.

**متونِ معتبره**: په حنفي فقه کې چې څومره کتابونه دي، ځیني په هغوی کې متن وي او دیو کتاب شرح نه وي، لکه مختصرُ القدوري، کنز او داسې نور، او ځیني دیو متن شرح وي لکه هدایه او شرحُ الوقایه؛ نو په متونو کې تر ټولو مشهوره او معتمد متون د فقهاؤ په نېز دري دي: ① مُخْتَصَرُ الْقُدُوْرِیْ، ② کَنْزُ الدَّقَائِقِ، ③ وِقَایَه؛ دې ته "مُتُوْنِ ثَلَاثَه" وایي، متأخرینو علماؤ پر همدغه کتابو اعتماد کړی دی. ځیني علماؤ "مُخْتَار" او ځینو "مَجْمَعُ الْبَحْرَیْن" هم په متونِ معتبره وو کې شمار کړی دي. نو د هغوی په نېز متونِ معتبره څلور دي.

دمتونِ معتبره وو مصنّفین ستر او منل سوي فقهاء دي، نو د تعارض په وخت کې به و دې متونو ته رجوع کیږي.

## بېلا بېلې فایدې

**فایده**: د "مَکْرُوْهٌ" یا د "یُکْرَہ" لفظ چې کله د فقهاؤ په کلام کې مطلق ذکر سي. نو عموماً له دې څخه مراد مکروه تحریمي وي، خو دا چې د کراهت تنزیهي په هکله څه صراحت یا دلیل موجود وي.

**فایده**: کله نا کله د سنت لفظ ذکر سي او له هغه څخه مراد مستحب وي، او کله د دې برعکس کیږي. یعني له مستحب څخه مراد سنت وي. او دا به له قرائنو څخه معلومیږي. او کله نا کله واجب ذکر سي او له هغه څخه عامه معنیٰ مراد وي کوم چې فرض او واجب دواړو ته شاملیږي.

**فایده**: کله نا کله د "یَجُوْزُ" لفظ استعمال سي. خو مراد ځني هغه شی وي چې په شریعت کې ممنوع نه وي. په داسې وخت کې "یَجُوْزُ" واجب، مندوب، مباح، مکروه ټولو ته شاملیږي او دا به په قرینه سره معلومیږي. همدا وجه ده چې په مکروه طریقه سره د لمونځ اداء کولو په هکله ځیني وختونه علماء "جَازَ" لیکي، نو له دې څخه مراد نفسِ صحت وي بغیر د کراهت له خیال څخه.

**فایده**: د "یَنْبَغِیْ" لفظ د متأخرینو په عُرف کې زیاتره په مندوباتو او مستحباتو کې استعمالیږي. لیکن د متقدمین په عُرف کې د عامې معنیٰ لپاره استعمالیږي، چې هغه واجب ته هم شاملیږي.

**علامات افتاء**: څرنګه چي مصنف رَحِمَهُ الله په خپل دې کتاب "نور الايضاح" کي ديو قول د تصحيح لپاره مختلف الفاظ استعمال کړي دي او همداسي د فقهي په نورو کتابو کي ديو قول د تصحيح او ترجيح لپاره مختلفه الفاظ مذکوره وي، نو د فايدي په خاطر د دوی وضاحت هم پېښول کيږي، په فتاویٰ خيريه کي د مضمرات په حواله سره ليکلي دي چي علامات افتاء په لاندي توګه دي: ① عليه الفتوىٰ، او به يُفتى ② عليه الاعتماد. ③ عليه عمل اليوم. ④ هو الصحيح. ⑤ هو الأصح. ⑥ هو الأظهر. ⑦ هو المختار.

⑧ هو فتوىٰ مشائخنا. ⑨ هو الأشبه. ⑩ هو الأوجه. او داسي نور الفاظ په حاشيهٔ بزدوي کي هم ذکر سوي دي. علامه خيرُ الدين وروسته فرمايي چي له دوی څخه بعضي الفاظ د نورو په مقابله کي زيات وزنداره دي، لکه څرنګه چي لفظ د فتوىٰ له صحيح، اصح، اشبه او داسي نورو څخه زيات مؤکد دی.

او به يفتى د الفتوىٰ عليه په مقابله کي راجح دی، او لفظ د اصح د صحيح په مقابله کي زيات مؤکد دی او لفظ د احوط له احتياط څخه زيات مؤکد دی، بعضي علماؤ ترتيب داسي پېش کړی دی:

① عليه عمل اليوم. عليه عمل الأمة. ② عليه الفتوىٰ. به يُفتى. عليه الاعتماد. به نأخذ. هو فتوىٰ مشائخنا. ③ الفتوىٰ عليه. هو الأصح. هو الأشبه. هو الأوضح. هو الأظهر. هو الأحوط. هو الأرفق. ④ هو الاحتياط. هو الصحيح.

په دې کي اول او دويم قسم الفاظ زيات مؤکد دي، تر دې وروسته د دريم او څلورم قسم درجه ده. د تعارض په وخت کي عموماً د همدې ترتيب اعتبار کول کيږي، او که تعارض نه وي، نو محض تصحيح کافي ده.

**وجوه ترجيح**: ① که يو طرف ته لفظ د صحيح وي او بل طرف ته لفظ د اصح وي، نو په دې صورت کي به لفظ د اصح لره ترجيح وي.

② که يو طرف ته لفظ د فتوىٰ وي او بل طرف ته نور الفاظ وي، نو لفظ د فتوىٰ لره به ترجيح وي.

③ که دواړو طرفونو ته تصحيح برابره وي، نو کوم طرف ته چي د متن قول وي، هغه لره به ترجيح وي.

④ د مساوي تصحيح په صورت کي به د ظاهر روايت موافق قول اخيستل اولىٰ وي.

⑤ په متعارضه تصحيحاتو کي چي د کومي تصحيح اکثره حضرات قائل وي، نو هغه به اختيارول کيږي.

صاحب د نور الايضاح بعضي ځايونه د ظاهر روايت، ظاهر مذهب او داسي نور الفاظ هم ذکر کړي وي چي د هغوی وضاحت هم څه مخکي وسو. بنکاره دې وي چي په اوله درجه کي به د ظاهر الرواية اعتبار کول کيږي او په دويمه درجه کي د نادرُ الرواية او بيا به د فتاوىٰ اعتبار کول کيږي. او

دتعارض په صورت کې به د طبقهٔ اولی روایت لره ترجیح وي، مګر دا چې مشائخو په یو بل روایت باندې د فتوی ورکولو صراحت کړی وي.

له پورتني بحث څخه دا پوره اُمید لرم چې د نور الایضاح مصنف رَحِمَهُ الله چې کوم دافتاء علامات لیکلي دي، د هغوی د پېژندني په هکله به دا بحث معاون ثابت سي.

## د فقهي اصطلاحات

## (د شرعي احکامو تسمونه)

احکامِ شرعیه پر پنځه قسمه دي:

(۱) **فرض**: هغه حکم ته وایي کوم چې په قرآن او حدیث دواړو سره یا صرف په قرآن سره یا په بې شمېره حدیثونو سره (یا په بله رنګ په متواتر حدیث سره) ثابت وي او په هغه کې هیڅ شبهه نه وي، هغه فرض دي، مثال: لکه د پنځو لمنځونو د فرضیت حکم چې په قرآن او حدیث سره ثابت دي، همدارنګه لکه زکاة، روژه، حج او داسي نور عبادات.

**د فرض حکم**: د فرضو انکار کونکی کافر کیږي، او بېله عذره پرېښوونکی یې فاسق او د سخت عذاب مستحق ګرځي.

فرض پر دوه قسمه دي: ① فرض عین، ② فرض کفایه.

فرض عین هغه دی چې د هغه اداء کول د هر یوه لپاره ضروري دي.

فرض کفایه هغه دی چې د هغه اداء کول خو د هر یوه لپاره ضروري دي، لېکن که څه خلک یې اداء کړي، نو عام خلک به له ګناه څخه بچ سي.

(۲) **واجب**: هغه حکم ته وایي چې په ظني دلیل سره ثابت وي یعني په داسي دلیل سره چې په هغه کې یو بل ضعیف احتمال هم وي (یعني په خبرِ واحد حدیث سره یا د مجتهد په قیاس سره ثابت وي)، مثال: لکه د وترو لمونځ. ځکه وتر چې په کوم حدیث سره ثابت دي، هغه خبرِ واحد دی، متواتر نه دی، او خبرِ واحد ظني دلیل دی؛ نو ځکه وتر به واجب وي.

**د واجب حکم**: دې درجه که څه هم د فرضو برابره ده، خو دومره فرق یې سته چې د دې انکار کونکی نه کافر کیږي، بلکې فاسق ګرځي، او بېله عذره پرېښوونکی یې فاسق او د سخت عذاب مستحق ګرځي لېکن تر فرضو د کم عذاب مستحق ګرځي؛ نو د فرض او واجب تر مینځ فقط د عقیدې په اعتبار سره فرق سته، یعني د فرضو منکر کافر دی او د واجبو منکر کافر نه دی بلکې فاسق دی، لېکن د عمل په اعتبار سره چې څرنګه فرض ضروري دي، همدغسي واجب ضروري هم دي، همدا وجه ده چې ځینو بختونو واجب ته فرض هم ویل کیږي.

(۳) **سنت**: سنت هغه حکم ته وايي چې زموږ له ستر پیغمبر ﷺ څخه ثابت وي.

سنت پر دوه قسمه دي: ① سنت مؤکده، سنت غیر مؤکده.

**سنت مؤکده**: هغه حکم ته وايي چې پر هغه نبي ﷺ همیشه عمل کړی وي، او خلکو ته يې هم د هغه ترغیب ورکړی وي؛ مثال: لکه د اودس په شروع کې مسواک وهل، د جمعې په ورځ غسل کول، لمونځ په جماعت سره کول، شل رکعته تراویح کول او داسې نور.

**د سنت مؤکده حکم**: د دې اداء کونکی د ثواب مستحق ګرځي، او د پرېښوولو عادت يې جوړول د ګناه او عتاب لامل ګرځي، او بېله عذره پرېښوول يې د ګمراهۍ لامل ګرځي.

**سنت غیر مؤکده**: دې ته مستحب هم ویل کیږي، دا هغه حکم ته وايي چې ځینې وختونه پر هغه نبي ﷺ عمل کړی وي، او خلکو ته يې د هغه ترغیب هم ورکړی وي؛ مثال: لکه د آذان په وخت کې کار او خبرې نه کول؛ د اذان جواب ورکول؛ له راسته طرف څخه شروع کول او داسې نور.

**د سنت غیر مؤکده حکم**: د دې اداء کونکی د ثواب مستحق ګرځي، او پرېښوونکی يې نه ګناهکاره کیږي، خو بیا هم له ښې خیر او فضیلت څخه محروم پاتېږي.

د فقه په اصطلاح کې دې ته نفل، مندوب، تطوّع (او سنن زوائد) هم وايي، ځینې علماؤ د مستحب او سنت غیر مؤکده په مینځ کې څه فرق هم کړی دی.

(۴) **حرام**: کوم شی چې په قطعي دلیل (یعني په آیت، یا متواتر حدیث) سره ممنوع ګرځول سوی وي. هغه ته حرام وايي؛ مثال: لکه لمونځ تر خپل وخت وروسته اداء کول، د یو چا مال غصب کول، پر خلکو ظلم کول، غلا کول، شراب څیښل، سود خوړل، دروغ ویل، لمځونه پرېښوول او داسې نور ټول حرام دي.

**د حرام حکم**: د دې منکر کافر کیږي، او بېله عذره کونکی يې فاسق او د سخت عذاب مستحق ګرځي، او نه کونکی يې د ثواب مستحق ګرځي.

**مکروه**: هغه حکم ته وايي چې له هغه څخه په شریعت کې منع سوې وي، لیکن د روایت دلیل يې هم موجود وي، د دې دوه قسمه دي: ① مکروه تحریمي، ② مکروه تنزیهي.

**مکروه تحریمي**: د کوم څه حُرمت چې په غیر متواتر یا په غیر مشهوره روایاتو سره ثابت وي (یا په بله وینا: په دلیل ظني سره ثابت وي)، هغه ته مکروه تحریمي وايي، مکروه تحریمي حرام ته نژدې دی او د واجب په مقابل کې دی، نو ځکه امام محمد رَحِمَهُ الله هغه ته حرام هم وايي؛ مثال: مکروه تحریمي لکه د یو چا په غصب سوې ځمکه کې لمونځ کول؛ د مازیګر لمونځ ډېر ځنډول او په خپل آخري وخت کې اداء کول؛ د قضاء حاجت د درونداوالي په وخت کې لمونځ کول؛ د اخترونو په ورځ روژه نیول؛ د سپینو او سرو زرو لوښي استعمالول؛ دا ټول مکروه تحریمي دي.

**د مکروه تحریمي حکم**: د دې منکر فاسق ګرځي؛ او بېله عذره کونکی يې ګنهکار او د عذاب مستحق ګرځي.

**مکروه تنزیهي**: هغه څه چي شریعت ناخوښه ګڼلی وي، لېکن د کونکي په هکله یې د سزا او عذاب څه یادونه کړې نه وي (یعني د ممانعت څه دلیل یې نه وي)، دا د جواز او روایښت په دائره کي دی او کراهت طبعي لري او د سنت غیر مؤکده په مقابل کي دی: **مثال**: د اوداسه په اوبو کي اسراف کول. د جمعې غسل نه کول او داسي نور.

**د مکروه تنزیهي حکم**: د دې پرېښوونکی د ثواب مستحق دی او کونکی یې د سزا مستحق نه دی.

**(٥) مباح**: له دې څخه مراد هغه کار دی چي شریعت یې نه د "کولو" حکم کړی وي او نه یې د "نه کولو" حکم کړی وي.

**د مباح حکم**: په دې کي نه ثواب سته او نه څه سزا سته او انسان ته یې په کولو او پرېښوولو کي اختیار دی، خو که داسي کار په ښه نیت سره وکړای سي، نو د مستحب درجې ته رسیږي او کونکي به یې داجر او ثواب مستحق وګرځي، مثلاً په لاره کي د مسافرانو د خدمت لپاره درېدل، د مېلمه د عزت لپاره له هغه سره ډوډۍ خوړل، یا په ورځ کي په دې نیت بیدېدل چي د شپې به عبادت وکړم. یا ښه کالي په دې نیت اغوستل چي د الله نعمتونو اثر ښکاره کړم.



# مُقدمةُ الكِتاب

بِسْمِ اللهِ په نامه د الله (شروع کوم) الرَّحْمٰنِ چې ډېر مهربانه الرَّحِيْمِ (او) زيات رحم کوونکی دی.

**تشريح:** په "بسم الله الرحمٰن الرحيم" سره د کتاب شروع کولو څو وجهې دي: ① د کتابُ الله د اتباع کولو لپاره؛ ځکه قرآن کريم په "بِسْمِ اللهِ" سره شروع کيږي (بلکې هر سورت يې په بسم الله سره شروع سوی دی). ② د حديثو د اتباع کولو لپاره؛ ځکه په حديث مبارک کې هم په بسم الله سره د شروع کولو ترغيب ورکول سوی دی؛ په حديث کې راځي: "كُلُّ أَمْرٍ ذِیْ بَالٍ لَمْ يُبْدَأْ بِبِسْمِ اللهِ فَهُوَ أَقْطَعُ" (صحيح ابن حبان. باب من صفته ﷺ و أخباره. حديث شمېره: ٣٦١٧). (يعني کوم اېنه شان والا کار چې په "بِسْمِ اللهِ" سره شروع نه کړل سي. هغه بې برکته وي [يعني ناقص او نابشپړ پاتېږي]). همدارنګه په بل حديث کې راځي "كُلُّ أَمْرٍ ذِیْ بَالٍ لَا يُبْدَأُ بِذِكْرِ اللهِ فَهُوَ أَقْطَعُ" (دار قطني. كتاب الصلاة ج ١، ص: ٢٢٥. حديث شمېره: ٨٧٢). او بسم الله هم ذکر دی. ③ د سلف صالحينو د اتباع کولو لپاره: ځکه مخکينيو اکابرينو او صلحاؤ به هم خپل کتابونه وغيره په بسم الله سره شروع کول. ④ د برکت لپاره. (همدا رنګه په ځينو کتابو کې نوري وجهې هم ليکل سوي دي: مثلاً: ⑤ اولنی وحې چې راغلې. نو په هغه کې د الله په نامه سره د ويلو حکم سوی دی: ﴿اِقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِیْ خَلَقَ﴾. ⑥ او بل دا چې د نبي کريم ﷺ ټول خطوط او ټولې خطبات په بسم الله سره شروع کيږي. ⑦ سليمان ؑ چې وبلقيس ته کوم خط ليکلی دی. نو هغه هم په بسم الله سره شروع کيږي.

بيا مصنف رَحِمَهُ الله تر "بِسْمِ اللهِ" وروسته په "اَلْحَمْدُ لله" سره خپل کتاب شروع کوي. په دې کې يې مقصد هم د قرآن کريم. حديث شريف او د سلف صالحينو تابعداري ده. ځکه په قرآن کريم کې هم تر "بِسْمِ الله" وروسته "اَلْحَمْدُ لله" ذکر سوی ده. همدارنګه په حديث کې د "اَلْحَمْدُ لله" په باره کې راځي: "كُلُّ كَلَامٍ لَا يُبْدَأُ فِيْهِ بِحَمْدِ اللهِ فَهُوَ أَجْذَمُ" (ابو داؤد شريف. باب الهدى في الكلام ج ٢، ص: ٣١٧. حديث شمېره: ٤٨٤٠. ابن ماجه شريف. باب خطبة النكاح. ص: ٢٧٢. حديث شمېره: ١٨٩٤). (يعني هر هغه کلام چې په "حمد" سره شروع نه کړل سي. هغه ناقص او بې برکته وي)

➢ **بَاء:** په بسم الله کې حرف جر دی. او "باء" د پنځلسو (١٥) معانيو لپاره استعماليږي. لېکن په بسم الله کې د "الصاق" لپاره ده. يا د "استعانت" لپاره ده: "الصاق" وايي "مېلولو" ته. نو د الصاق

د باء معنیٰ دا سوه چي: وروستنی کلام به یې د مخکینی کلام سره "مُلصَق" (یعني موښتی) وي، او استعانت وايي "د مرستي طلب کولو" ته، نو د باء استعانت معنیٰ دا سوه چي: وروستنی کلام به یې د مخکیني کلام لپاره مرسته (مدد) او ذریعه وي (یعني دالله د نامه په مدد سره شروع کوم).

ځرنګه چي باء حرفِ جر دی، نو ځکه دلته به یو محذوف فعل مقدّر (پټ) منل کیږي چي دا حرفِ جر تعلّق ور سره ونیسي، او غوره دا ده چي دلته "أَبْتَدِأُ" محذوف ومنل سي، نو مطلب به یې دا وي: دالله په نامه سره شروع کوم.

"ب" خو متعلق سو او "اسم" خو دالله تابع دی، نو ګواکي لفظ دالله تر ټولو مقدّم (مخکي) سو، او په ﴿اقرأباسم ربك﴾ کي همدغه حکم سوی دی چي دالله په نامه سره یې ووایه!، نو ګواکي همدا دالله نوم تر ټولو مقدّم سو.

➤ الله: نوم دی د هغه ذات کوم چي واجبُ الوجود دی او تمام صفاتِ کمالیه ور لره جامع دی، د الله ﷻ نهه نوي (۹۹) صفاتي نومونه دي، او یو یې ذاتي نوم دی چي هغه "الله" دی. دالله د لفظ معنیٰ ده: "معبود" (یعني هغه ذات چي عبادت یې کیږي).

**د "الله" او "إله" په مینځ کي فرق:** د دوی تر مینځ فرق دا دی چي دالله پر لفظ الف لامِ عهدي سته، لېکن پر "إله" نسته، نو ځکه دالله لفظ خاص د "معبودِ برحق" لپاره استعمالیږي او د "إله" لفظ عام دی د هر "معبود" لپاره استعمالېدی سي، هغه که پر حق وي لکه الله ﷻ، او که پر ناحقه وي لکه بُتان او باطل خدایان.

➤ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ: الرَّحْمٰن د مبالغې صیغه ده، د فَعلان پر وزن دی، له رحمت څخه مشتق دی، د رحمت معنیٰ ده: "د زړه نرموالی"، لېکن کله چي یې الله ﷻ ته نسبت وسي، نو د دې معنیٰ راځي: "فضل او مهرباني کول، احسان کول".

"الرَّحِيْم" د فَعِيْل پر وزن دا هم د مبالغې صیغه ده، دا هم له رحمت څخه مشتق دی. خو په دې لفظ کي د "رَحْمٰن" په نسبت مبالغه کمه ده او په "رَحْمٰن" کي مبالغه زیاته ده، ځکه چي د "رَحْمٰن" حروف زیات دي چي ټوله حرف یې پنځه (۵) دي، او د "رَحِيْم" ټوله حروف څلور (۴) دي. نو ځکه په "رَحْمٰن" کي مبالغه زیاته ده. چي د حرف زیاتوب د معنیٰ پر زیاتوب دلالت کوي، لکه قَطْعًا معنیٰ پرېکول او تَقْطِيْعًا معنیٰ په ښه توګه پرېکول. نو د "رَحْمٰن" په معنیٰ کي زیاتوب دی یعني رحم عام دی کافر او مؤمن ټولو لره شامل دی، "الرَّحِيْم" خاص دی، د دې تعلق د آخرت سره دی. یعني په هغه وخت کي به صرف پر مؤمنانو رحم وي.

**د "رَحْمٰن" او "رَحِيْم" په مينځ کې فرق:** صاحب د "كمالاتُ الوحيدية" د رَحْمٰن او رَحِيْم په مينځ کې څلور (۴) فرقه ذکر کړي دي:

① رَحْمٰن: صرف د الله ﷻ د غټو رحمتونو لپاره راځي. او رَحِيْم: د کوچنيو رحمتونو لپاره راځي.

② رَحْمٰن: د دنيا او آخرت دواړو لپاره راځي. او رَحِيْم: صرف د آخرت لپاره راځي.

③ رَحْمٰن: د هغه عمومي او خصوصي صفاتو لپاره راځي چې هغه د ټوله انسانيت لپاره عام دي. او رَحِيْم: د هغه خصوصي صفاتو لپاره راځي چې هغه فقط د مؤمنانو لپاره خاص دي. او هغه چې په ځانګړې توګه د قيامت په ورځ څرګنديږي: لکه څرنګه چې د نبي کريم ﷺ په دعاء کې ذکر سوي دي: «يَا رَحْمٰنَ الدُّنْيَا وَ رَحِيْمَ الآخِرَة».

④ رَحْمٰن: د "الله" د لفظ په څېر اسمِ عَلَمْ دی. پر مخلوق د دې اطلاق نه سي کېدلای. لېکن رَحِيْم: اسمِ علمْ نه دی. بلکې صفت دی او پر مخلوق يې اطلاق کېدلای سي.

> اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ټوله تعريفونه (صفتونه [خاص]) الله تعالیٰ لره دي رَبِّ الْعَالَمِيْنَ چې رب (پالونکی) د ټولو مخلوقاتو دی وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ او درود (رحمت) او سلام دې وي عَلٰى سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ زموږ پر سردار محمّد ﷺ باندې کوم چې خَاتَمِ النَّبِيِّيْنَ آخر (آخري) د نبيانو دی وَعَلٰى آلِهِ الطَّاهِرِيْنَ وَصَحَابَتِهِ أَجْمَعِيْنَ او (درود او سلام دې وي) د هغوی پر پاک آل او پر ټولو صحابه کرامو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ (يعني د نبي ﷺ پر اولاد او کورنۍ او د هغوی پر ټولو صحابه کرامو دې د الله تعالیٰ رحمت او سلامتيا وي).

**تشريح:** تر بسم الله وروسته په حمد سره د شروع کولو وجه مخکې د بسم الله په بحث کې بيان سوه.

**د "حمد" تعريف:** د "حَمْد" لغوي معنیٰ ده: "تعريف کول" (ستاينه). او اصطلاحي معنیٰ يې ده: "د يو ښه اختياري ښېګڼه (صفت) په ژبه سره بيانول (يا په بله وينا: د تعظيم او اکرام په اراده سره په ژبه [په خوله] تعريف کول). هغه که د نعمت په بدله کې وي او که نه وي"؛ د الله له طرفه هر وخت پر موږ د بېلابېلو نعمتونو او انعامونو باران اوريږي، نو موږ چې د الله ﷻ لپاره کوم حمد هم وايو، هغه د نعمت په بدله کې دی. يو لفظ د "مَدْح" او "شُکر" دی چې د هغه تعريف به څه وروسته ذکر سي.

**د "الحمد" الف لام:** په الحمد کې چې کوم الف لام دی، په دې کې شو احتمالات سته.

(۱) اللام للجنس: يو احتمال دا دی چې دا الف لام د جنس لپاره دی. يعني تمام جنس د حمد يا په بله وينا جنسِ ثناء او صفت الله تعالیٰ لره دي. صاحب د کشاف دغه قول خوښ کړی دی.

(۲) اللام للعهد: دویم دا چي دا الف لام دعهد لپاره (معهود) دی، یعني مراد ورڅخه هغه حمد دی کوم چي الله تعالیٰ پخپله پر خپل ځان ویلی دی، لکه په حدیث شریف کي چي راغلي دي "کما أثنیتَ علی نفسك" (مشکوة المصابیح ج۱)، یا په بله وینا دا چي الف لام معهود ذهني دی، یعني کوم چي د متکلم په ذهن کي دي هغه مراد دی، صاحبِ دمجمع الف لام دعهد لپاره کېدل خوښ کړي دي؛ ځکه چي عهد پر استغراق باندي مقدّم وي.

(۳) اللام للاستغراق: او دریم احتمال دا دی چي داستغراق لپاره دی، یعني هر قسم تعریف او تحسین (تمام تعریفونه) الله تعالیٰ لره خاص دي، برابره ده د هغه تعلق د خالق تعالیٰ د ذات سره وي او که د مخلوق سره وي، ټوله به د رب تعالیٰ مِلک کیږي ټوله په حقیقت کي د الله تعالیٰ تعریف دی.
یا په بله وینا: هغه تعریف برابره ده بلاواسطه وي یعني چي خاص د الله تعالیٰ د ذات تعریف وکړي.
او که بالواسطه وي، لکه په مخلوق کي په یو کمال باندي د چا تعریف او صفت وکړل سي، نو دا په حقیقت کي د الله تعالیٰ تعریف دی؛ ځکه دغه صفت الله تعالیٰ ورکړی دی. جمهوره عالمان الف لام داستغراق لپاره کېدل خوښوي.

**د "مدح" او د "شکر" تعریف:** د یو چا ښېګڼه (صفت) په ژبه سره بیانول، دا ښېګڼه که د هغه په اختیار کي وي او که نه وي، لکه د ملغلري د ښېګڼي او ښایسته والي تعریف کول، او ښکاره ده چي دا ښېګڼه د هغې په اختیار کي نه ده. بل لفظ د "شُکر" دی:

**د "شکر" تعریف:** هغه فعل (کار) ته وایي چي د مُنعِم (انعام کونکي) د تعظیم خبر ورکړي. هغه فعل که په ژبه سره وي او که په زړه یا په اندامو سره وي.

نو د شکر او حمد په مینځ کي فرق دا سو چي په حمد کي نعمت او انعام شرط نه دی، لېکن په شکر کي شرط دی، همدارنګه حمد صرف په ژبه سره ویل کیږي او شکر عام دی له ژبي څخه پرته په زړه او نورو اندامو سره هم کېدلای سي.

➤ رَبِّ: داسم فاعل صیغه ده، په اصل کي "رَابِبٌ" دی، الف حذف کړی سو او باء په باء کي مدغم کړل سوه، د "رَبّ" معنیٰ ده: "پالونکی". او بعضو ویلي دي چي مصدر دی. په اصل کي د تربیه په معنیٰ سره دي (یعني د تفعیل د باب اسم مصدر دی) او تربیه وایي "په کراره کراره د یو شي پالنه کول او د کمال حد ته رسول". او که سوال وسي چي کله رب مصدر دی، نو دا د الله صفت څنګه وګرځول سو. نو جواب دا دی چي دا د "زَیْدٌ عَدْلٌ" له قبیل څخه دی، یعني بطور مبالغه د رب صفت ګرځول سوی دی. او الله جَلّ جلاله و ټولو جهانو او مخلوقاتو ته په کراره کراره (او په تدریج) خوراک او

غذا ورکوي او د هغوی پالنه کوي. نو ځکه هغه ته "رَبّ" وايي. "رَبّ" بغير له اضافت څخه صرف د الله لپاره استعماليږي او د اضافت سره د نورو لپاره هم استعمالېدی سي، لکه د قرآن کريم په دې آيت کي چي د غير لپاره دی: ﴿اُذْكُرْنِيْ عِنْدَ رَبِّكَ فَأَنْسَاهُ الشَّيْطَانُ ذِكْرَ رَبِّهِ﴾ [سورة يوسف: ٤٢]، دلته "رب" په اضافت سره استعمال سوی دی او مراد ځني "باچا" دی.

➤ الْعَالَمِيْنَ: له الله تعالیٰ څخه ماسوا نور ټوله مخلوق، "عالَمِين" جمع د "عَالَم" ده، "عَالَم" اسم آله ده، يعني "هغه شی چي په هغه سره بل څه پېژندل کيږي (يعني د بل شي د پېژندلو آله)"، لکه "خَاتَم" (د مهر او ټاپې [لګولو آله)؛ وروسته بيا پر هغه شيانو د "عَالَم" اطلاق وسو چي په هغوی سره د "صَانِع" (جوړونکي) يعني د الله تعالیٰ پېژندنه کيږي (يا په بله وينا: هغه شيان کوم چي د خپل خالق اومربي په وجود باندي علامت اودلالت دي)، يعني له الله ﷻ څخه ماسوا هر شي ته "عَالَم" وايي، د دنيا تمام اجناس په دې کي داخل دي، لکه آسمان، سپوږمۍ، لمر او تمام ستوري، فرشتې، جنات، حيوانات، نباتات او داسي نور، يعني د "عالَم" ډېر قسمونه دي: عَالَمُ السَّمٰوٰات، عَالَمُ الأَرْض، عَالَمُ الإِنْس، عَالَمُ المَلَائِكَة، عَالَمُ الجِن، عَالَمُ الحَيَوَانَات او داسي نور، د دغه بېلابېلو قسمونو د ښوولو لپاره يې د جمع صيغه يعني "عَالَمِيْن" ذکر کړه (دا ټوله د خپل خالق اومربي په وجود باندي نښه اودلالت دي).

➤ وَالصَّلَاةُ: بيا مصنف رَحِمَهُ الله تر حمد وروسته په "صلٰوة" (درود) شروع وکړه چي د ټوله انسانيت پر محسن او پر غوره د تمام مخلوق رسولُ الله ﷺ او د هغه پر پاک آل او ټولو صحابه وو باندي يې درود او سلام پېش کړی؛ ځکه په قرآن کي هم پر نبي ﷺ د "صلٰوة و سلام" حکم سوی دی: ﴿إِنَّ اللهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّوْنَ عَلَى النَّبِيِّ يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا صَلُّوْا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا﴾ [سورة الأحزاب: ٥٦]، (بېشکه الله [ﷻ] او د هغه فرشتې درود وايي [رحمت لېږي] پر نبي [ﷺ]، اې مؤمنانو! درود ووايئ! پر هغه [نبي ﷺ] او سلام [پرې] اووايئ په سلام ويلو سره).

په دې آيت کي د صلوة او سلام دواړو حکم سوی دی: د تعجب او فضيلت خبره دا ده چي الله ﷻ خپله پر نبي ﷺ درود او رحمت رالېږي.

همدارنګه په بل آيت کي راځي: ﴿وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ﴾ [سورة الإنشراح: ٤]، (او ستا لپاره موږ پورته کړی ذکر ستا)، په تفسير کي راځي چي د "ذکر له پورته کېدلو" څخه مراد دا دي چي الله ﷻ د خپل نامه سره د نبي کريم ﷺ نوم پيوست کړی دی. لکه په "کشاف" کي چي ذکر سوي دي چي

له دې ځخه مراد دا دي چې الله ﷻ په کلمه، اذان، اقامت، التحیات، خطبه همدارنګه د قرآن په ډېرو آیتونو او په داسې نورو ځایونو کې د خپل نامه سره د نبي کریم ﷺ نوم یو ځای ذکر کړی دی.

او په حدیث کې راځي چې له رسول الله ﷺ ځخه پوښتنه وسوه چې موږ به څرنګه پر تاسو درود وایو. نو نبي ﷺ وفرمایل ووایئ! «اللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَ عَلٰی أَزْوَاجِهٖ وَذُرِّيَّتِهٖ..... (الخ)». (مسلم شریف، ص: ۱۵۷، حدیث شمېره: ۴۰۷)

دویمه وجه دا هم ده چې الله تعالیٰ مُحسنِ حقیقي دی او نبي کریم ﷺ مُحسنِ مجازي دی؛ ځکه چې د الله او بندګانو په مینځ کې وسیله او ذریعه ده. نو کله چې مصنف د مُحسنِ حقیقي حمد او ثناء بیان کړه، نو مناسب یې وګڼله چې د مُحسنِ مجازي د حق اداء کولو لپاره "صلٰوة عَلَی النّبي" هم ذکر کړي.

**د "صلاة" تعریف**: د "صلٰوة" لغوي معنیٰ ده: "دعاء"، او په اصطلاحي معنیٰ کې یې تفصیل دی. هغه دا چې که د "صلٰوة" نسبت الله ﷻ ته وسي، نو مراد ځنې "رحمت" (نزول رحمت) وي، او که ملائکو ته وسي نو مراد ځنې "استغفار" وي، او که بندګانو ته وسي، نو مراد ځنې "دعاء" (طلبِ رحمت) وي، او که مارغانو ته وسي، نو مراد ځنې تسبیح او ذکر وي.

➢ **والسّلام**: په معنیٰ سره د سلامتی (سلامتیا) دی، یعنې هر قسم سلامتي (له هر مکروه ځخه سلامتي)، همدارنګه دا په معنیٰ سره د تحیّه هم کېدلای سي.

➢ **سیّدنا**: په معنیٰ سره د سردار او بادار دی، دا لفظ نبي کریم ﷺ د ځان لپاره او د نورو لپاره هم استعمال کړی دی، لکه د نبي ﷺ دا فرمان "أَنَا سَيِّدُ وُلْدِ آدَمَ وَلَا فَخْرَ"، همدارنګه د سعد بن معاذ ﷺ لپاره یې وفرمایل "قُوْمُوْا لِسَيِّدِكُمْ...الخ"، لهذا د سیّد لفظ د هر لوی او مشر لپاره استعمالیږي، برابره ده د رُتبې په اعتبار سره لوی وي او که د بزرګۍ په اعتبار سره لوی وي، خو (عموماً) د سیّد لفظ د نبي کریم ﷺ د خاندان والا وو لپاره ویل کېږي.

➢ **مُحَمَّد**: له "حمد" ځخه مشتق دی، معنیٰ یې ده: "تعریف کړی سوی"، یعنې چې د هغه د غوره صفاتو او ښېګنو په وجه یې تعریف کېږي، چې په هغه کې فضائلِ محموده او ښه اوصاف په کثرت سره جمع وي. د نبي کریم ﷺ صفاتي نومونه ښېخي ډېر دي، لیکن تر ټولو مشهوره یې "محمد او احمد" دي، د "محمّد" نوم پر نبي کریم ﷺ خپل نیکه یا مور ایښی وو.

مصنف رَحِمَهُ الله نور نومونه پرېښوول او لفظ د "محمد" یې راوړی، د دې لپاره چې د کلامُ الله اتباع وسي، یعنې د قرآن کریم مطابق سي. الله تعالیٰ فرمایلي دي ﴿مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللهِ وَالَّذِیْنَ آمَنُوْا مَعَهٗ أَشِدَّاءُ عَلَی الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ...الخ﴾.

خاتَم: د دې لفظ له معناوو څخه یوه معنیٰ ده: (د هر شي) آخر، آخري، د نبي کریم ﷺ له کمالاتو څخه یو کمال خاتمُ النبي کېدل دي چې تر نبي کریم ﷺ وروسته به بل هیڅ نبي او رسول نه راځي، نبوت پر نبي کریم ﷺ ختم سو، وروسته تر دې چې هر څوک دعوه د نبوت کوي، هغه دروغجن، دجّال او کافر مطلق دی لکه څرنګه چې خپله د نبي کریم ﷺ فرمان دی "لَا نَبِيَّ بَعْدِيْ"، او دا د نبي کریم ﷺ یو داسې صفت دی کوم چې پر ټولو صفاتو درونددی؛ ځکه رسول الله ﷺ ته یو داسې شریعت ورکول سو چې تر هغه وروسته بل هیڅ کتاب او شریعت ته ضرورت پاته نه سو، دا صفت فقط د محمد مصطفیٰ ﷺ لپاره مخصوص دی، نو ځکه مصنف رَحِمَهُ الله همدا صفت اختیار کړی.

النبیّین: جمع د نبی ده، نبي له نبأ څخه مأخوذ دی چې د هغه معنیٰ ده "خبر ورکول" او د نبي لغوي معنیٰ ده "دالله له طرفه خبر ورکونکی" (دغیبو خبر ورکونکی)، د مفعول په معنیٰ سره هم راځي (یعني خبر ورکړل سوی)، لکه څرنګه چې د قتیل معنیٰ قاتل او مقتول دواړه راځي، او اصطلاحي معنی یې داسې نقل سوې ده: "من أوحی إلیه وحیا خاصا من الله بتوسط ملك أو بإلهام في قلبه أو بالرؤیا الصالحة".

په نبي او رسول کې فرق سته، که نه؟ بعضې علماء فرمایي چې دواړه یو دي، او بعضې فرمایي چې په دواړو کې فرق دی، هغه دا چې رسول هغه دی چې نوی شریعت او کتاب ورکول سوی وي، او نبي هغه دی چې نوی شریعت او نوی کتاب نه وي ورکول سوی، بلکې هغه د مخکیني شریعت تبلیغ کوي.

دلته مصنف رَحِمَهُ الله لفظ د "نبي" ځکه ذکر کړی دی چې دا مقام د رسولُ الله ﷺ په نعت کې دی یعني د درود او سلام تذکره کوي او په قرآن کې چې چیرې هم "صلاة" ذکر سوی دی، هلته لفظ د نبي دی لکه څرنګه چې د الله تعالی فرمان دی ﴿إِنَّ اللَّهَ وَمَلَٰئِكَتَهُۥ يُصَلُّونَ عَلَى ٱلنَّبِيِّ، يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ صَلُّوا۟ عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا۟ تَسْلِيمًا﴾.

آلِه: داله "أهل" څخه مشتق دی، له "آل" څخه څوک مراد دي، په دې کې اختلاف دی. ① د بعضې حضراتو (لکه د حضرت جابر بن عبد الله، ابو سفیان او داسې نورو) قول دا دی چې په آل کې هغه ټوله خلک شامل دي کوم چې د نبي ﷺ اتباع او پیروي کوي، یا په بله وینا له "آل محمد" څخه مراد هغه ټوله اُمت دی کوم چې د نبي کریم ﷺ دعوت قبول کړی دی، په دې کې له صحابه وو څخه واخله تر

قيامته پورې ټوله مؤمنان شامل دي (يالکه بعضو چې ويلي دي چې له دې څخه هر تقوىٰ داره مؤمن مراد دى).
او څرنګه چې دا مقام د دعاء دى، نو ځکه له دې څخه عام مؤمنان مرادول زيات ښه دي. (۲) دامام
شافعي رحمه الله قول دا دى چې له آل څخه بنو هاشم او بنو عبد المطلب مراد دي، (۳) دامام صاحب رحمه
الله قول دا دى چې صرف بنو هاشم ور څخه مراد دي، يعني دنبي ﷺ هغه خاندان چې د هغو لپاره زكاة
اخيستل حرام دي. (۴) د بعضو په نيز په دې كي صرف دنبي ﷺ اهل او عيال او ازواج مطهرات شامل دي.

صاحب د شفاء الارواح ليكلي دي چې دلته ځني مراد تمام مسلمانان دي لکه مخکي چې ذکر
سو، ځکه چې دا مقام د دعاء دى.

**فايده:** دنبي ﷺ د نامه سره د هغه پر آل او اصحابو "صلوٰة" ويل صحيح بلكي مستحب دي. او د هغه له نامه
څخه پرته مکروه دي. خو پر انبياوو او ملائکو جائز دي؛ پر دغه حکم د سلفو اجماع ده. په خلاف د روافضو.

﹤ الطاهرين: په دې كي اشاره كي ده چې دنبي كريم ﷺ آل به هاغه جماعت وي كوم چې له
شبهاتو او شکوکو څخه پاک وي. صاحب د تکميل الايضاح دا خبره په دې توګه کړې ده چې د دې
قيد يعني د "طاهرين" فايده دا ده چې دنبي كريم ﷺ آل متقي دى لکه څرنګه چې حديث دى (وآلِي كُلُّ
مُؤمِنٍ تَقِيٍّ) يعني كوم چې متقي (پرهېزګاره) وي له امراضِ باطنيه او ظاهريه وو څخه. ځکه چې دنبي
كريم ﷺ آل به هاغه جماعت وي كوم چې له شرک څخه پاک وي. او ښکاره ده چې له شرک څخه بچ کېدل
او له هغه څخه پرهېز کول له امراض باطنيه وو څخه د پاکوالي دليل دى. او په دې سره په فرقهٔ باطله باندي رد
هم مقصود دى كوم چې د نبوي آل د عصمت قائله دي چې د دوى وهم و ګومان غلط دى. والله أعلم.

﹤ صحابته: د "صَاحِب" جمع ده. لغوي معنى يې ده "ملګري". او په اصطلاح كي دنبي
كريم ﷺ صحابه وو ته ويل كيږي. صحابي هغه چا ته وايي چې نبي كريم ﷺ يې د ايمان په حالت
كي ليدلى وي او پر هغه ايمان مړ سوى وي؛ نو پر دوى ټولو دي درود او سلام وي.

اولا مصنف رحمه الله آل ذكر كړى چې په هغه كي تمام اُمتِ محمديه راغلي. چې په هغه كي
صحابه كرام هم شامل دي. خو د صحابه وو ځانته مقام او مرتبه ده؛ نو ځکه دوى يې په خاصه توګه
ذكر كړل. ځکه چې الله ﷻ د "رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ" په وينا سره دوى له ټولو خلکو څخه ممتاز
كړي دي. نو ځکه مصنف رحمه الله هم دوى بطور خاص بيان كړل.

﹤ أَجْمَعِيْن: دا د "آل" او "أصحاب" دواړو د تأكيد او سجع لپاره دى؛ د صحابه وو تأكيد ته
ځکه ضرورت سو چې بعضي ګمراه فرقې د اکثره صحابه وو په شان کي بې ادبي او ګستاخي کوي او
د دوى په عدالت کي شک و شبهه کوي لکه روافض يعني صرف د حضرت علي رضي الله عنه له كورني څخه

بغير نور تولو ته ښکنځا کوي، نو "أجمعين" يې ذکر کړی چي په دې قيد سره پر دوی رد وسي. او همدارنګه د خوارجو ترديد هم مقصود دی چي دوی د نبي کريم ﷺ د آل سخت ترين دښمنان دي او هغوی د صلاة مستحق نه ګڼي، په خلاف د اهل سنت والجماعت چي د اهل سنت والجماعت په نېز تولو صحابه عادله دي او تولو پر خپل، خپل ځای قابل د اتباع دي.

قَالَ الْعَبْدُ الْفَقِيْرُ إِلَى مَوْلَاهُ الْغَنِيِّ ويلي دي بنده کوم چي محتاج دی و خپل بادار بې نيازه ته أَبُو الْإِخْلَاصِ حَسَنُ الْوَفَائِيُّ الشُّرُنْبُلَالِيُّ الْحَنَفِيُّ ابو الاخلاص حسن شرنبلالی حنفی (يعني چي د هغه کنيت ابو الاخلاص دی. نوم يې حسن. مشرب يې وفائی. وطن (د پيدايښت) يې شرنبلال او مذهب يې حنفي دی) إِنَّهُ الْتَمَسَ مِنِّي بَعْضُ الْإِخِلَّاءِ [عَامَلَنَا اللهُ وَإِيَّاهُمْ بِلُطْفِهِ الْخَفِيِّ] (هغه ويلي دي) چي زما څخه مطالبه (غوښتنه) وکړه بعضو مخلصو دوستانو [الله تعالىٰ دي پر ما او دوی باندي خپلي پټې مهرباني وکړي] أَنْ أَعْمَلَ مُقَدِّمَةً فِي الْعِبَادَاتِ چي زه د عباداتو په باره کي يوه مقدمه (مختصره کتاب) تيار کړم تُقَرِّبُ عَلَى الْمُبْتَدِئِ مَا تَشَتَّتَ مِنَ الْمَسَائِلِ فِي الْمُطَوَّلَاتِ کوم چي نژدې کړي پر ابتدائي طالب (يعني د شروع کونکي طالب العلم و ذهن ته نژدې کړي) هغه مسائل کوم چي بېلا بېلي ذکر سوي (پاشل سوي) دي په اوږدو (لويو) کتابونو کي (يا په بله وينا داچي: نژدې کړي مبتدي طالبان د عباداتو او هغه بېلابېلو مسئلو ته کوم چي په لويو کتابونو کي دي) فَاسْتَعَنْتُ بِاللهِ تَعَالَى نو ما له الله تعالىٰ څخه مدد وغوښتی وَأَجَبْتُهُ طَالِبًا لِلثَّوَابِ او (د دوستانو) مطالبه مي قبوله کړله په داسي حال کي چي د ثواب طلبګار يم (يعني د ثواب حاصلولو په غرض سره) وَلَا أَذْكُرُ إِلَّا مَا او زه به نه ذکر کوم (په دې کتاب کي) مګر صرف هغه مسائل جَزَمَ بِصِحَّتِهِ أَهْلُ التَّرْجِيحِ چي د هغوی په صحيح والي باندي صاحبانو د ترجيح يقين کړی وي (يا په بله وينا چي اهل الترجيح د هغه مسئلو د صحيح والي قطعي فيصله کړې وي. يعني کوم علماء چي تحقيق والا دي او په اختلافي مسئلو کي ترجيح ورکولای سي. هغو چي کوم مسائل بالکل صحيح ګرځولي دي. صرف هغه مسائل په دې کتاب کي ليکم) مِنْ غَيْرِ إِطْنَابٍ بغير له اوږدوالي څخه (يعني په مختصره عبارت سره. چي بلا ضرورت ته اوږدوالی به پکښي نه وي) وَسَمَّيْتُهُ: "نُوْرَ الْإِيْضَاحِ وَنَجَاةَ الْأَرْوَاحِ" او ما نوم کېښود

دغه كتاب ته نور الايضاح (درڼاكرځندونكى) و نجاة الأرواح (او روحونو ته نجات وركوونكى) وَاللهَ أَسْأَلُ او صرف له الله تعالىٰ څخه سوال كوم أَنْ يَّنْفَعَ بِهِ عِبَادَهُ چي ددې كتاب په ذريعه خپلو بندګانو ته نفع (فايده) ورسوي وَيُدِيْمَ بِهِ الإِفَادَةَ او ددې كتاب په ذريعه فايده رسول همېشه جاري وساتي.

تشريح: په دې عبارت كي مصنف رَحِمَهُ الله اولاً د خپل نوم، كنيت، مذهب او وطن يادونه كړې ده، چي د تأليف او تصنيف حقيقت معلوم سي؛ ځكه د كتاب مؤلف چي معلوم كړل سي، نو د مؤلف د حالت سره سم د راوان مضمون او راروان كلام معتمد يا غير معتمد مقام هم ښكاره كيږي.

بيا يې وروسته د تأليف وجه بيان كړې ده چي دا كتاب يې د خپلو بعضو مخلصو ملګرو په خواست او غوښتنه باندي تصنيف كړى دى.

ابو الاخلاص: دا د مصنف رَحِمَهُ الله كنيت دى، حسن: د مصنف رَحِمَهُ الله نوم دى، الوفائي: دا (نسبت) د تصوف او طريقت په اعتبار سره دى، الشرنبلالي: د مصنف رَحِمَهُ الله وطن ته اشاره ده، په "مصر" كي د يو سيمي نوم دى، شرنبلالي خلاف القياس دى؛ ځكه د قياس په اعتبار سره "شبرابلولي" كېدل پكار دي. لكه څرنګه چي خپله مصنف رَحِمَهُ الله د خپل كتاب "دُرّ الكنوز" په آخر كي د دې صراحت كړى دى.

الأَخِلَّاء: جمع د خَلِيْلٌ ده، لكه څرنګه چي أَطِبَّاء او أَحِبَّاء جمع د طَبِيْبٌ او حَبِيْبٌ ده، معنىٰ يې ده: دوست.

عاملنا الله: دا جملهٔ معترضه او جملهٔ دعائيه ده، په دې سره يې وهغه ملګرو ته دعاء كړې ده كومو چي ددې تأليف مطالبه كړې وه، في العبادات: هغه احكام او مسائل چي د هغوى تعلق د عباداتو سره دى، تَشَتَّتَ: د تفعّل له باب څخه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده؛ متفرق كېدل، بېلېدل، المطوّلات: د فن لوى كتابونه مراد دي، يعني د عباداتو سره متعلق هغه اهم مسائل كوم چي په لويو كتابونو كي موجود دي، چي هغوى په اختصار سره بلا يو ځاى كړل سي چي مبتدي ته آسانه سي.

استعنت: ما د كتاب په تصنيف كي له الله ﷻ څخه مدد وغوښتى، ځكه چي د الله ﷻ له مدد او نصرت څخه بغير هيڅ يو كار سر ته نه سي رسول كېداى، موږ ته پكار دي چي كله هم يو كار كوو، نو له الله ﷻ څخه مدد طلب كړو او د كار تر پوره كېدلو وروسته د الله ﷻ شكر ادا كړو.

طالبًا للثواب: د دې تصنیف غرض معلمینو او متعلمینو ته فایده رسول دي. کوم چې یو ډېر لوی نېک کار دی او د دې نېک کار په ترسره کولو کې بنده ته د الله ﷻ له طرفه ثواب حاصلېږي.

أهل الترجیح: دا د فقهاوو له اُوو طبقو څخه یوه طبقه ده. یعنې هغه علماء چې هغو د احنافو مختلفه روایات د راجح او مرجوح په نوموړو سره جمع کړي دي او دا یې ښوولي دي چې له دې روایاتو څخه کوم یو افضل دی او کوم یې مفضول دی. کقولهم: هٰذا اولیٰ، هٰذا أصحّ روايةً، هٰذا أوضح، هٰذا أوفق بالقیاس، هٰذا أرفق للناس (شرح عقود رسم المفتي ص: ۵۶). داسې علماوو ته اهل الترجیح ویل کیږي. لکه امام قدوري رَحِمَهُ الله، علامه مرغیناني (صاحب الهدایه) رَحِمَهُ الله او داسې نور.

إطناب: د إطناب معنیٰ ده: په زیاتو الفاظو سره مراد پوره کول یا په بله وینا خبره اوږدول. نو د "من غیر إطناب" مطلب دی: په مختصره عبارت سره.

سمیّتُه نور الایضاح إلخ: د نُور معنیٰ ده: رڼا، ځلا. کوم څه چې نور شیان ښکاره کړي. د دې جمع انوار ده. د ایضاح معنیٰ ده: واضح کول، څرګندول، ښکاره کول. نو د نُور الایضاح معنیٰ سوه: ښکاره کونکې رڼا. او ارواح جمع د روح ده. د نجات معنیٰ ده: خلاصون. او عذاب روح لره وي. مطلب یې دا سو چې کوم څوک د عباداتو له مسائلو او طریقه څخه ناواقفه وي؛ د هغه لپاره دا مسائل نُور او لارښوونه ده چې په دې بلدي په عمل کولو سره انسان د الله له عذاب څخه نجات ترلاسه کولای سي (خلاصون موندلای سي).

مصنف رَحِمَهُ الله فرمایي چې په دې کتاب کې مونږ صرف اقوال مرجحه بیان کړي دي چې "وَلَا أذکر إلا ماجزم بصحته أهل الترجیح" یعنې زه په دې کې صرف هاغه قول نقل کوم چې د هغه پر صحت اهل ترجیح اعتماد او وثوق کړی وي.

والله أسئل إلخ: یعنې اهلِ علم حضرات کوم چې له دې کتاب څخه استفاده کوي. نو چې هغوی نورو ته هم فایده ورسوي، د دې لپاره چې دا سلسله جاري پاته سي.

د مصنف رَحِمَهُ الله دا دعاء داسې قبوله سوه چې د تصنیف له دَور څخه تر ننه پوري په لکاوو بندګانو له دې څخه نفع اخیستې ده او د دې فایده دامت ومخ ته ښکاره ده. له رب تعالیٰ څخه خواست کوو چې زمونږ دا حقیر کوښښ هم په خپل دربار کې قبول کړي او خلک له دې څخه استفاده وکړي او زمونږ د نجات ذریعه هم وګرځي. آمین یا أرحم الرّاحمین.



# كِتَابُ الطَّهَارَةِ

(دا) کتاب د " پاکی " (داحکامو په بیان کې) دی

**تشریح:** دفقهاؤ او محدثینو دا طریقه ده چې کله دوی یو کتاب لیکي، نو دعنوان (سرلیک) په توګه یو ځو شیان ذکر کوي: "کتاب، باب، فصل"، چیرې چې لفظ د "کتاب" ذکر کړي، هلته جنس مسائل په لحاظ کې ساتي. مثلاً د طهارت (پاکۍ) داحکامو جلا جنس دی چې تر هغه لاندې ځو انواع دي، د صلاة (لمانځه) داحکامو یو جلا جنس دی، او زکاة، روژه او داسې نور جلا، جلا جنس دی. او چیرې چې لفظ د "باب" استعمال کړي، هلته انواع مسائل په لحاظ کې ساتي. مثلاً د طهارت په مسائلو کې د وضوء (اودسه) مسائل، د تیمم مسائل او داسې نور، دا یې انواع دي. او چیرې چې لفظ د "فصل" استعمال کړي، نو هلته له ماقبل مسائلو ځخه جدایې په لحاظ کې ساتي. یعنې له ماقبل ځخه بعضې جزئیات جلا کوي او جلا یې بیانوي، مثلا د وضوء (اودسه) په بیان کې فرائض وضوء له سنن وضوء ځخه د فصل په ذریعه جلا کوي.

په لنډه وینا دا چې د فقهې په کتابو کې د عنوان (سرلیک) لپاره درې قسمه الفاظ ذکر کیږي: ① کتاب ② باب ③ فصل. په کتاب کې د یوه جنس د مختلفو اقسامو او انواعو مسئلې ذکر کیږي. په باب کې د مخکینې جنس سره اړوند د یوه قسم بحث او مسئلې ذکر کیږي او په فصل کې د هغه مخکینې قسم سره اړوند جلا بحث او مسئلې (جزئیات) ذکر کیږي.

كتاب الطهارة: په دې جمله کې درې خبرې دي: (۱) نحوي ترکیب. (۲) د كِتَاب د لفظ مطلب. (۳) د طهارة د لفظ مطلب.

(۱)... **نحوي ترکیب:** د نحوي ترکیب په اعتبار سره (په دې جمله کې) درې احتماله دي: ① اول دا چې كتابُ الطهارة خبر دی د محذوفې مبتداء چې "هٰذا" دی یعنې: هٰذا كتابُ الطهارة. ② دویم دا چې مبتداء ده د محذوف خبر یعنې كتابُ الطهارة هٰذا. ③ دریم دا چې مفعول دی د محذوف فعل یعنې: خذ كتابَ الطهارة یا اِقرأ كتابَ الطهارة.

(۲)...کتاب:

**د کتاب لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** د کتاب او کتابت لغوي معنی ده: "یو شی سره جمع کېدل" "جمع کول". لکه کَتَبْتُ الشَّيْءَ أَيْ جَمَعْتُهُ. او کتاب ته هم ځکه کتاب ویل کیږي چي په دې کي حروف سره را جمع کیږي، او کتاب د مکتوب په معنیٰ سره هم استعمالیږي. لکه څنګ چي د مجموع په معنیٰ سره استعمالیږي (په کتابُ الطهارة کي د مجموع په معنی سره دی). نو د کتابُ الطهارة معنی ده "جَمْعُ(مَجْمُوْعُ) مَسَائِلِ الطَّهَارَةِ".

او په اصطلاح کي کتاب د مسائلو هغه "مجموعه" ته وايي چي هغه مستقله عنل سوي وي (مستقلاً معتبره وي)، برابره ده مختلفه انواعو لره شامله وي. لکه کتابُ الطهارة چي په دې کي طهارة الوضوء، طهارة الغسل، طهارة بالماء او طهارة بالتراب یعني د طهارت (پاکی) ټوله نواع په کتاب الطهارة کي داخل دی. یا مختلفه انواعو لره شامله نه وي. لکه کتابُ اللقطه، یا کتابُ الآبق، یا کتاب المفقود چي تر دې هر کتاب لاندي نه یو باب سته او نه یو فصل.

(۳).... طهارة:

**د طهارت لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** طَهارت مصدر دی معنیٰ یې ده: پاکول، پاکوالی. او په اصطلاح کي طهارت له حدث (حکمي مرداري) یا له نجاست او خبث (حقیقي مرداري) څخه پاکېدلو ته وايي. او ځیني علماؤ ویلي دي چي طهارت د دریو (۳) اندامونو پرېوللو او د سر مسح کولو ته وايي. کتابُ الطَّهارة اضافت په معنیٰ سره د لام دی او تر لام وروسته دوه مضافه محذوف دي. ټوله عبارت به داسي وي "هٰذا كتابٌ لبيانِ أحكامِ الطَّهارة" (دا کتاب د پاکی د احکامو په بیان کي دی).

او طُهارت د طاء په ضمه سره هغه اُوبو ته ویل کیږي چي په هغوی سره پاکي حاصله کړل سي، او طِهارت په کسره د طاء سره د پاکولو آلې ته ویل کیږي. لکه اوبه او خاوري.

**کتابُ الطهارة ولي مخکي کړی سو؟:** مصنف رَحِمَهُ الله په شروع کي وویل چي دا مختصره کتاب په عباداتو کي لیکل کیږي، په عباداتو کي یې خپل کتاب په کتابُ الطهارة سره شروع کړی. نه په کتابُ الصلاة، کتابُ الصوم او داسي نورو سره (حال دا چي صلاة، صوم او داسي نور هم عبادات دي). د دې څه وجه ده؟.

د دې جواب دا دی چي د لمانځه لپاره طهارت ضروري دي، له هغه څخه بغیر لمونځ نه سي کېدلای. نو ځکه یې اول طهارت ذکر کړی او تر هغه وروسته به په عباداتو کي لمونځ ذکر کړي.

او کله چي دا خبره معلومه سوه چي د لمانځه لپاره طهارت ضروري دی، نو اوس دا ښوول ضروري دي چي په کومو، کومو شیانو سره طهارت حاصلول کېدای سي؟، لهذا مصنف رَحِمَهُ الله هغه شیان ذکر کوي چي په هغوی سره طهارت حاصلول کېدای سي.

## په کومو اوبو سره طهارت (پاکي) حاصلول جائز دي؟

﴿۱﴾ اَلْمِيَاهُ الَّتِيْ هغه اوبه يَجُوْزُ التَّطهِيْرُ بِهَا چي په هغوی سره پاکوالی (پاکي حاصلول) جائز دي سَبْعَةُ مِيَاهٍ اووه قسمه اوبه دي مَاءُ السَّمَاءِ ① د آسمان اوبه (یعني بارانې اوبه) وماءُ الْبَحْرِ ② د سمندر (دریاب) اوبه وَمَاءُ النَّهْرِ ③ د ویالې (والې) اوبه وَمَاءُ الْبِئْرِ ④ د څاه اوبه وَمَاءٌ ذَابَ مِنَ الثَّلْجِ وَالْبَرَدِ ⑤ .⑥ او هغه اوبه چي له واورې او ږلیو څخه ویلي سوي (ترلاسه سوي) وي وماءُ العَيْنِ ⑦ او د چینې اوبه (دغه پورته ذکر سوي اووه قسمه هغه اوبه دي چي په هغوی سره پاکي حاصلېدلی سي).

**لغات:** ﴿میاه﴾ جمع د مَاءٌ ده، اوبه. ﴿یجوز﴾ د "یصح" په معنیٰ سره دی، یعني په دغو اوبو سره پاکي حاصلول صحیح دي، د "یَحِلُّ" په معنیٰ سره نه دی؛ ځکه خبره د هغو اوبو په باره کي ده چي په هغوی سره پاکي حاصلول صحیح دي که څه هم په یوه وجه حلالي (روا) نه وي، لکه یو چا چي د ځان لپاره د باران یا د سمندر یا د لسي نوري اوبه جمع کړي وي، نو د هغه له اجازې څخه بغیر دا اوبه استعمالول حلال (روا) نه دي، لېکن که بیا یې هم دا اودس لپاره استعمال کړي، نو اودس یې صحیح کیږي. ﴿بحر﴾ سمندر، دریاب. جمع: بِحَار. ﴿بئر﴾ څاه. جمع: آبَار. ﴿ذاب﴾ د نصر له بابه د واحد مذکر غائب ماضي معلومي صیغه ده. ذَابَ يَذُوْبُ ذَوْبًا و ذَوَبَانًا: ویلي کېدل (ویلېدل)، مایع کېدل، تیښگه ماده د حرارت په واسطه اوبه کېدل. ﴿عَيْن﴾ په عربي ژبه کي بعضي الفاظ لسکونه معناوي لري او بعضي سلگونه معناوي لري. عَین له هماغه الفاظو څخه یو لفظ دی چي زیاتي معناوي لري چي د لغتپوهانو د وینا مطابق تقریبا سلو معناو ته رسیږي، چي له هغوی څخه صاحب د تاج العروس پنځوس معناوي ذکر کړي دي. مثلاً سترگه. مُخبِر (جاسوس). متعیّن شی. ذات. دلته د دې لفظ معنیٰ ده: د اوبو چینه. ﴿البَرَد﴾ (د راء په فتحه سره) ږلۍ. واحد: البَرَدَةُ (یوه ږلۍ). (مصباح اللغات)

**یادونه:** په عبارت کي له "مَاءُ السَّماء" څخه تر "مَاءُ العَيْن" پوري د "مَاء" لفظ مرفوع او مجرور دواړه ویل کېدای سي. د مرفوع ویلو په صورت کي به د مبتداء محذوف لپاره خبر وي چي هغه "أحدها"، "ثانيها" تر "سابعها" پوري دي (یعني أَحَدُهَا مَاءُ السَّماء، ثَانِيهَا مَاءُ البَحْرِ... الخ). او د مجرور په صورت کي به له "مِيَاهٍ" څخه بدل وي.

**تشريح:** په دې عبارت كې مصنف رَحِمَهُ الله د هغه اُوبو اقسام بيانوي چې په هغوى سره طهارت او پاكي حاصلول جائز دي، نو فرمايي: په كومو اوبو سره چې پاكوالى جائز دى، هغه اُووه قسمه اوبه دي: ① دآسمان اوبه (مراد ترې د باران اوبه دي). ② د سمندر اوبه. ③ د نهر (لويې ويالې) اوبه. ④ د څاه اوبه. ⑤ د واوري اوبه. ⑥ د ژليو اوبه. ⑦ د چينې اوبه.

دغه اُووه قسمه اوبه دي كوم چې پاكي دي او په دوى سره جسم، جامه او داسې نور پاكول جائز دي، يا په بله وينا دا چې دوى خپله هم پاكي دي او بل لره هم پاكونكي دي، برابره ده دا اوبه خوږې وي او كه ترخې وي.

## د اوبو قسمونه

﴿۲﴾ ثُمَّ الْمِيَاهُ بيا اوبه عَلٰى خَمْسَةِ أَقْسَامٍ پر پنځه قسمه دي طَاهِرٌ (اول قسم هغه اوبه دي) چې (په خپل ذات كې) پاكي وي مُطَهِّرٌ (او بل شي لره هم) پاكوونكي وي (يعني بل شى چې په پرېولل سي، نو هغه هم پاک گرځوي) غَيْرُ مَكْرُوْهٍ مكروه نه وي (استعمالول يې) وَهُوَ الْمَاءُ الْمُطْلَقُ او هغه مطلقې اخالص ا اوبه دي (يعني چې څه داسې شى ورسره گډ سوى نه وي چې هغه مُقَيدې وگرځي).

**تشريح:** د طهارت او نجاست په اعتبار سره د اوبو لاندېني پنځه قسمونه دي: ① "طاهر مطهر" يعني هغه اوبه كوم چې خپله هم پاكي وي او د بل څه د پاكولو صلاحيت هم لري، لكه "ماء مطلق" (يعني "علمي خالص اوبه"، په دې شرط چې له پورتني مذكوره اُوو قسمونو څخه وي) چې په هغوى بل شى گډ سوى نه وي، مثلاً: د سمندر او نهر اوبه يا د چينې اوبه.

﴿۳﴾ وَطَاهِرٌ او (دويم قسم هغه اوبه دي) چې (په خپله) پاكي وي مُطَهِّرٌ (بل شي لره هم) پاكوونكي وي مَكْرُوْهٌ (لېكن استعمالول يې) مكروه وي وَهُوَ مَا شَرِبَ مِنْهُ الْهِرَّةُ وَنَحْوُهَا او دا هغه اوبه دي چې پيشي اوبه ورڅخه چيښلي وي او ياد پيشي په څېر بل حيوان وَكَانَ قَلِيْلًا حال دا چې هغه اوبه لږ (هم) وي.

**لغات:** ﴿هِرَّة﴾ پيشي، جمع: هِرَرٌ، او د بعضو په وينا د هِرٌّ اطلاق په مذكر او مؤنث دواړو باندي كيږي او د هِرَّةٌ اطلاق صرف په مؤنث باندي كيږي.

**تشريح:** په دې عبارت كې د طهارت او نجاست په اعتبار سره د اوبو دويم قسم بيان سوى دى ② "طاهر مطهر مكروه"، لكه هغه لږ اوبه چې كورنۍ پيشي خوله پكښې ووهي، يا مثلاً چرگه (كوم چې آزاده پر ېښوول سوې وي) يا موږک او داسې نور خوله پكښې ووهي، د دې اوبو حكم دا دى چې كه

نوري نامکروه اوبه موجوده وي، نو دا اوبه استعمالول مکروه تنزیهي دي، لېکن که له دوی څخه بغیر نوري اوبه نه وي، نو بیا په دوی سره پاکي حاصلول صحیح دي، هیڅ پروا پکښې نشته.

## ماء مستعمل

﴿۳﴾ وَطَاهِرٌغَيْرُمُطَهِّرٍ او (درېیم قسم هغه اوبه دي) چې (په خپل ذات کي خو) پاکي وي (لېکن بل شي لره) پاکونکي نه وي وَهُوَمَا اسْتُعْمِلَ لِرَفْعِ حَدَثٍ او دا هغه اوبه دي کوم چې استعمال سوي وي د بې اودسیالیري کولو لپاره (مثلاً بې اودسه کس اودس په وکړي) أَوْلِقُرْبَةٍ كَالْوُضُوْءِ عَلَى الْوُضُوْءِ بِنِيَّتِهِ یا (استعمال سوي وي) د ثواب حاصلولو لپاره لکه په اوداسه د پاسه (بل) اودس کول د اوداسه په نیت سره.

**لغات:** ﴿رفع﴾ د فتح د باب مصدر دی: پورته کول، لیري کول (ختمول)، ﴿حدث﴾ نجاست حکمي، بې اودسیا (بې اودسي)، ﴿قربة﴾ د نېکۍ او ثواب کار چې په هغه سره د خدای تعالیٰ قربت (نژدېکت) او ثواب حاصلول کېږي (یا په بله وینا هغه څه چې په هغه سره د الله تعالیٰ قربت او رضاء ترلاسه کول کېږي)، نېکي او ثواب، عبادت، جمع: قُرَب و قُرُبَات.

**تشریح:** په دې عبارت کي د اوبو درېیم قسم بیان سوی دی ③ "طاهر غیر مطهر" یعني هغه اوبه کوم چې خپله خو پاکي وي، لېکن هغوی د حدث (بې اودسیا) لیري کولو صلاحیت نه لري، لکه ماء مستعمل (استعمال سوي اوبه) یعني چې په هغوی سره یو حکمي حدث (حکمي بې اودسیا) لیري کړل سوې وي یعني کوچني بې اودسیا یا لویه بې اودسیا، یا په بله وینا دا چې په هغوی سره اودس یا د جنابت غسل کړل سوی وي، همدارنګه هغه اوبه چې بې اودسیا خو په لیري نه کړل سي. بلکي د اوداسه د پاسه بل اودس په وکړل سي د ثواب او عبادت په نیت سره، همدارنګه هغه اوبه چې لاس په پرېولل سي د خوراک او داسي نورو لپاره، نو د هغوی هم دغه حکم دی (چې طاهر غیر مطهر دي)، خو په ماء مستعمل سره نجاست حقیقي (حقیقي نجاست) لیري کول مثلاً مرداره کپړه په پرېولل صحیح دي.



## د اودس د پاسه بل اودس کول

**مسئله:** که څوک په اول اوداسه باندي یو عبادت وکړي، نو نوی اودس کول (تازه کول) [illegible] دی

همدارنګه که یې د اول اوداسه ډېر وخت کېږي، نو هم نوی اودس کول مستحب دي، که څه هم په اول اوداسه

يې يو عبادت نه وي کړی، او که چيرې وخت هم زيات نه وي تېر سوی او يو مقصودي عبادت يې هم په اوداسه نه وي کړی، نو بيا اودس کول مکروه کاردی؛ ځکه چې دا اسراف دی. (تحفة الالمعي. جلد١ ص ٢٩٢، طحطاوي. ص١٤)

## اوبه کله مستعملې ګرځي؟

﴿٥﴾ وَيَصِيْرُ الْمَاءُ مُسْتَعْمَلًا او ګرځي اوبه مستعملې بِمُجَرَّدِ انْفِصَالِهٖ عَنِ الْجَسَدِ محض له بدن څخه په را جلا کېدلو سره (يعني هر کله چې اوبه مازې له بدن څخه را جلا سي، نو مستعملې سوې).

**لغات:** ﴿انفصال﴾ دانفعال د باب مصدر دی: جلا کېدل، بېلېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کې مصنف رَحِمَهُ الله دا خبره بيانوي چې اوبه کله مستعملې شمېرل کيږي؟ نو فرمايي چې له بدن څخه تر جلا کېدلو وروسته سمدستي اوبه مستعملې ګرځي، دويم قول دا دی چې له بدن څخه تر جلا کېدلو وروسته چې کله اوبه يو ځای ودريږي، نو بيا اوبه مستعملې شمېرل کيږي، نه تر هغه مخکې، خو مفتیٰ به اول قول دی. (طحطاوي ج:١. ص:١٤)



## د استعمال سوو اوبو حکم

**مسئله (١):** په اوداسه او غسل کې چې کومې اوبه استعمال سوې وي، که په هغوی يو ښکاره نجاست ګډ سوی نه وي. نو داسې اوبه که څه هم خپله پاکې دي،لېکن په هغوی سره بل وار پاکي حاصلول يعني اودس يا غسل په کول صحيح نه دي. خو ناپاکه جامه په هغوی سره پاکول کېدای سي له نجاست څخه.

**مسئله (٢):** که چيرې د اوداسه يا غسل مستعملې اوبه په جامه او کاليو باندې ولوېږي، نو په هغه سره جامه او کالي نه مردارېږي، خو بيا هم احتياط ضروري دی. (البحر الرائق بيروت ج:١. ص:٩٨. فتاویٰ محموديه جديد ج:٥. ص:١٢٥)

**مسئله (١):** مړي ته د غسل ورکولو لپاره چې کومې اوبه استعمال سي، هغه ناپاکه دي. لهذا که مړي ته د غسل ورکولو پر مهال پر کاليو زيات څاڅکي ولوېږي، نو کالي ناپاکه کيږي. (كتاب المسائل. مطبع عثمانيه ج:١. ص١٨٣. زكريا ج:١. ص:٣٢٩)

## په کومو اوبو سره پاکي حاصلول جائز نه دي؟

﴿٦﴾ وَلَا يَجُوْزُ او جائز نه دي (پاکي حاصلول) بِمَاءِ شَجَرٍ وَثَمَرٍ د درختې (ونې) په اوبو سره او د مېوې په اوبو سره وَلَوْ خَرَجَ بِنَفْسِهٖ مِنْ غَيْرِ عَصْرٍ که څه هم هغه بغير له نڅوړلو څخه په خپله (له درختې يا مېوې څخه) وتلې وي فِي الْأَظْهَرِ د ظاهر روايت مطابق (يعني ظاهر روايت همدا دی چې دا اوبه که څه هم په خپله راوتلې وي، نو هم په دوی سره پاکي حاصلول جائز نه دي).

**لغات**: ﴿شَجَر﴾ درخته (ونه). اسم جنس دی، پر واحد، تثنیه او جمع ټولو یې اطلاق کیږي، واحد: شَجَرَةٌ، جمع: اَشْجَارٌ و شَجَرَاتٌ. همداسې ثَمَرٌ هم اسم جنس دی، واحد: ثَمَرَةٌ، جمع: ثِمَارٌ.
﴿عصر﴾ د ضرب د باب مصدر دی: نڅوړل (په فشار او زور له مېوې او داسې نورو څخه اوبه کښل).

**تشریح**: کومې اوبه چې له درختې یا مېوې څخه ایستل سوې (کښل سوې) وي، مثلاً د کېلې له درختې څخه اوبه ایستل سوې وي، یا مثلاً له ګنې څخه ایستل سوې اوبه (رَسْ) یا د هینداوانې اوبه، نو په دا قسم اوبو سره بالاتفاق اودس او غسل جائز نه دي، همدارنګه که له درختې یا مېوې څخه خپله په قطره، قطره اوبه را څڅېدلې وي، نو د اصح قول پر بناء په هغه سره هم اودس او غسل جائز نه دي او غیر اصح قول دا دی چې جائز دي.

**یادونه**: له دې ځایه د هغه اوبو یادونه سوې ده کوم چې په اضافت تقییدي سره نومول کیږي یعني "ماء مقید"، یعني هغه اوبه چې پر خپل اصلي طبیعت پاته نه وي، بلکې د هغوی سره داسې شی ګډ سوی وي چې اوبه د هغه شي د نوم (په قید) سره یادول کیږي، مثلاً له هینداوانې یا له انګورو څخه ایستل سوې اُوبو ته د هینداوانې یا انګورو اوبه (رَسْ) ویل کیږي، همدارنګه له درختې څخه ایستل سوې اُوبو ته عرق او رَسْ ویل کیږي، نو فرمایي چې د ظاهر روایت مطابق په داسې اُوبو سره اودس او غسل کول او پاکي حاصلول جائز نه دي.

> ﴿۷﴾ وَلَا بِمَاءٍ زَالَ طَبْعُهُ او نه په هغه اوبو سره (پاکي حاصلول جائز دي) چې د هغوی طبیعت زائل سوی (ختم سوی) وي بِالطَّبْخِ د پخولو په وجه (زائل سوی وي) أَوْ بِغَلَبَةِ غَيْرِهِ عَلَيْهِ یا پر هغوی د بل شي د غالب کېدلو په وجه (زائل سوی وي).

**لغات**: ﴿طبخ﴾ د فتح د باب مصدر دی: پخول، غیره، علیه: د دواړو ضمیر مَاء ته راجع دی.

**تشریح**: د اوبو دوه طبیعته دي: ① رِقّة (باریکوالی، نری والی). ② سیلان (بهېدل، جاري کېدل).
صورت د مسئلې دا دی چې که په اوبو کې یو شی مثلاً لوبیا یا داسې بل شی واچول سي او پوخ کړل سي چې د هغه په وجه اوبه ګاټه (خندي) سي او د رقت او سیلان طبیعت یې ختم سي، نو داسې اوبه "ماء مطلق" پاته نه سوې، لهذا طهارتِ حکمي یعني اودس او غسل په داسې اوبو سره نه جائز کیږي.

همدارنګه په هغه اوبو سره هم طهارتِ حکمي حاصلول جائز نه دي چې په هغوی کې له اوبو څخه بغیر بل پاک شی په زیات (غالب) مقدار ګډ سوی وي چې اوبه یې له خپل طبیعته ایستلي

وي، لکه هر ډول شربت، سرکه، ښوروا، دلوبیا اوبه، دزردکي او ګلاب اوبه، ځکه پر دې شیانو عرفاً د اوبو اطلاق نه کول کیږي. په متن کي د "غلبة غیرة" قید ځکه لګول سوی دی چي که اوبه مغلوبه نه وي بلکي غالبه وي، نو په هغوی سره طهارت جائز دی.

﴿۸﴾ وَالْغَلَبَةُ فِيْ مُخَالَطَةِ الْجَامِدَاتِ او غالب والی د جامدو (وچو) شیانو په ګډېدلو کي (یعني کله چي په اوبو یو جامد وچ شی ګډ سي لکه اوړه، زعفران، رنګ او داسي نور جامدات، نو په دې صورت کي دې جامد شي د غالب والي اعتبار) بِإِخْرَاجِ الْمَاءِ عَنْ رِقَّتِهِ وَسِيْلَانِهِ په ایستلو سره د اوبو دی له خپل باریک والي او بهېدلو څخه (یعني کله چي د هغه جامد شی په وجه اوبه خټي لو کاټه سي او رقت او سیلان یې ختم سي، نو په دې صورت کي هغه شی غالب شمېرل کیږي) وَلَا يَضُرُّ تَغَيُّرُ أَوْصَافِهِ كُلِّهَا بِجَامِدٍ او نقصان نه کوي د جامد شي په وجه داوبو د ټولو اوصافو بدلېدل (یعني که د هغه جامد شي په وجه داوبو ټوله لوصاف (رنګ، خوند او بوی) بدل سي، خو رقت او سیلان یې باقي پاته سي، نو پاکي په حاصلول جائز دي) كَزَعْفَرَانٍ وَفَاكِهَةٍ وَوَرَقِ شَجَرٍ (جامد شیان) لکه زعفران، مېوه او د درختو پاڼي (بلګونه).

**لغات**: ﴿مخالطة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: یو د بل سره ګډېدل. ﴿زعفران﴾ مشهوره خوشبویه ژړ رنګ لرونکی ګل دی، جمع: زَعَافِرُ.

**تشریح**: مخکي دا خبره تېره سوه چي په ماء مطلق سره طهارت (پاکي) حاصلول جائز دي او که ماء مطلق نه وي، نو په هغه سره طهارت حاصلول جائز نه دی. اوس دلته دا خبره بیانوي چي اوبه کله مطلقي "ماء مطلق" (خالص اوبه) شمېرل کیږي او کله نه شمېرل کیږي، نو په دې باره کي اعتبار غلبې لره دی یعني چي په اوبو ګډېدونکی شی په زیات مقدار سره وي چي پر اوبو غالب وي. اوس دلته صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د غلبې صورت د قاعدهٔ کلیه په توګه بیانوي، او د ټولو شیانو یې دوه قسمه بیان کړي دي: ① جامد یعني سخت شی یا په بله وینا وچ شی، ② مائع یعني بهېدونکی شی.

په دغه عبارت کي د جامداتو بیان دی، حاصل یې دا دی چي که یو جامد یعني وچ شی مثلاً اوړه، نینې یا داسي بل شی په اوبو ګډ سي چي د هغه په وجه داوبو رقت او سیلان دواړه طبیعتونه ختم سي، نو هغه ته مطلقي اوبه "ماء مطلق" نه ویل کیږي او په هغوی سره اودس او غسل جائز نه دي، لېکن که دا مذکوره شیان په دومره لږ مقدار په اوبو ګډ سي چي د هغه په وجه خو داوبو رنګ یا بوی بدل سي، لېکن داوبو رقت او سیلان باقي پاته وي، مثلاً د جاري (بهېدونکو) اوبو سره چي څه

رنګ ګډ سي. يا مثلاً په اوبو کي زعفران واچول سي او د هغوی له رنګ ښکاره سي، يا مثلاً د مَني (خزان) په موسم کي د پاڼو د رالوېدلو په وجه د حوض د اوبو ټول اوصاف بدل سي، نو په دې ټولو صورتونو کي په هغه اوبو سره اودس او غسل جائز دي. (مراقی الفلاح: ۱۵)

﴿۹﴾ وَالْغَلَبَةُ فِي الْمَائِعَاتِ او غالب والی په بهېدونکو شيانو کي (يعني کله چي په اوبو يو مائع ابهېدونکی شی ګډ سي لکه شيدې، نو د غالب والي اعتبار) بِظُهُوْرِ وَصْفٍ وَاحِدٍ ديوه وصف په ښکاره کېدلو سره دی (يعني کله چي د هغه مائع شي يو وصف (مثلا رنګ) په اوبو کي ښکاره سي. نو پر اوبو غالب شمېرل کيږي) مِنْ مَّائِعٍ لَهُ وَصْفَانِ فَقَطْ له هغه بهېدونکي شي څخه [يعني مراد هغه مائع شی دی] چي هغه لره صرف دوه وصفونه وي كَاللَّبَنِ لَهُ اللَّوْنُ وَالطَّعْمُ لکه شيدې چي هغه لره رنګ او خوند ستنه وَلَا رَائِحَةَ لَهُ او بوی ورلره نسته (بوی نه لري).

**لغات**: ﴿لبن﴾ شيدې، جمع: أَلْبَانٌ، ﴿لون﴾ رنګ، جمع: أَلْوَان، ﴿طعم﴾ خوند، لذت (مزه).

**تشريح**: مخکي په جامداتو کي د غلبې صورت بيان سو، اوس له دې ځايه په مائعاتو کي د غلبې صورتونه بيانوي، مايعات (بهيدونکي شيان) درې قسمه دي: ① يو هغه چي درې سره وصفه پکښې وي (يعني خوند، رنګ او بوی)، ② دوېم هغه چي صرف دوه وصفه پکښې وي (مثلا خوند او بوی)، ③ درېيم هغه چي هيڅ وصف پکښې نه وي.

په دغه عبارت کي د دوېم قسم بيان دی، حاصل يې دا دی چي که په اوبو ګډ سوی شی مايع (بهېدونکی) وي او د اوبو له جنس څخه نه وي، نو د غلبې اعتبار به د اوصافو په لحاظ سره کيږي، لکه شيدې چي مايع شی دي او د اوبو له جنس څخه نه دي. او په شيدو کي صرف دوه وصفه دي (رنګ او خوند. درېيم وصف "بوی" پکښې نسته). نو که د شيدو يو وصف پر اوبو غالب سي، نو هغه اوبه نه پاتېږي، بلکي اوس د اوبو پر ځای هغه ته شيدې ويل کيږي، نو ځکه په هغه سره اودس او غسل نه صحيح کيږي.

﴿۱۰﴾ وَبِظُهُوْرِ وَصْفَيْنِ مِنْ مَّائِعٍ لَهُ ثَلَاثَةٌ او (د غالب والي اعتبار) د دوو وصفونو په ښکاره کېدلو سره دی له هغه بهېدونکي شي څخه چي هغه لره درې وصفونه وي (يعني کوم مائع شي لره چي درې سره وصفه وي، که د هغه دوه صفته په اوبو کي ښکاره سي. نو هغه پر اوبو غالب شمېرل کيږي) كَالْخَلِّ لکه سرکه.

**لغات**: ﴿خل﴾ سرکه، جمع: اَخُل و خِلَالٌ.

**تشریح:** په دې عبارت کې د اول قسم بیان دی، فرمایي چې په کوم مایع شي کې چې درې سره وصفونه وي (خوند، رنګ او بوی)، که هغه شی په اوبو ګډ سي او دوه وصفه یې پکښې ښکاره سي، نو په هغه اوبو سره او دس او غسل جائز نه دي، لکه سرکه چې هغه یو مایع (بهېدونکی) شی دي او په هغه کې خوند، رنګ او بوی درې سره اوصاف سته، لهذا که سرکه په اوبو کې واچول سي او په اوبو کې د سرکې دوه وصفه ښکاره سي، نو هغه اوبه نه پاتېږي، بلکې د سرکې په حکم ګرځي (ګواکې سرکه سوه)، خو که صرف یو وصف یې پکښې ښکاره سي، نو بیا په هغه اوبو سره اودس او غسل جائز کېږي. (مراقی الفلاح: ۱۶)

﴿۱۱﴾ وَالْغَلَبَةُ فِي الْمَائِعِ الَّذِيْ لَا وَصْفَ لَهٗ او غالب والی په هغه بهېدونکي شي کې کوم لره چې هیڅ وصف نه وي (یو صفت هم نه لري) كَالْمَاءِ الْمُسْتَعْمَلِ لکه مستعملې اوبه وَمَاءِ الْوَرْدِ الْمُنْقَطِعِ الرَّائِحَةِ او لکه د ګلاب (ګل ګلاب) هغه اوبه چې خوشبويي یې ختمه سوې وي (هیڅ خوشبويي نه لري) تَكُوْنُ بِالْوَزْنِ (نو په داسې اوبو کې غالب والی) په وزن سره کېږي (یا په بله ربنا دا چې په داسې مائع شي کې به د غالب والي اعتبار په وزن سره کول کېږي، یعنې په داسې مائع اوبو کې غلبه د وزن په اعتبار سره حاصلېږي کوم لره چې هیڅ وصف نه وي) فَإِنِ اخْتَلَطَ رِطْلَانِ مِنَ الْمَاءِ الْمُسْتَعْمَلِ نو (مثلاً) که ګډې سي دوه رطله (یا مثلاً دوه سېره) مستعملې اوبه بِرِطْلٍ مِّنَ الْمُطْلَقِ په یوه رطل (یا په یوه سېر) مطلقو (خالصو) اوبو لَا يَجُوْزُ بِهِ الْوُضُوْءُ نو په داسې اوبو سره اودس نه جائز کېږي وَ بِعَكْسِهٖ جَازَ او د دې په برعکس صورت کې (مثلاً چې ماءِ مستعمل یو سېر وي او ماءِ مطلق دوه سېره وي) جائز دی.

**لغات:** ﴿رطل﴾ یو خاص وزن دی کوم چې څه کم نیم کېلو کېږي (په پاکستاني حساب سره) څکه نیم کېلو پنځه سوه (۵۰۰) ګرامه کېږي او رطل (۴۴۲) کېږي (نو رطل له نیم کېلو څخه ۵۸ ګرامه کم سو). رطل یو قسم لوښی وو چې په هغه سره به مکیلې شیان یعنې غنم او داسې نور پیمانه کېدل. صاحب د احسن الفتاویٰ لیکلي دي چې یو رطل د اوسني وخت په حساب سره (۴۴۲) ګرامه کېږي او (۸) رطله یو صاع

کیږي او یو صاع (۳۵۳۸) ګرامه کیږي یعنې تقریباً دري نیم کیلو. دا د عراقي رطل مقدار دی کوم چې د فقهاؤ په نیز معتبر دی. ﴿الماء المستعمل﴾ استعمال سوي اوبه (کارول سوي اوبه). برابره ده د نجاست حکمي د زوال لپاره استعمال سوي وي یا د قربت او ثواب لپاره.

**تشریح:** په دې عبارت کې د درېیم قسم بیان دی، فرمايي چې که بې وصفه مايع شی په اوبو ګډ سي (مثلاً ماء مستعمل په خالص اوبو ګډي سي)، نو په دې صورت کې به د وزن په اعتبار سره حکم کول کیږي، د کوم یوه وزن چې زیات وي، نو اوبه د هغه په حکم سره ګرځي؛ ځکه اوس له دې څخه بغیر بل د توپیر صورت ممکن نه دی، مثلاً دوه سېره مستعملې اوبه (ماء مستعمل) یا د ګلاب اوبه په یوه سېر خالص اوبو ګډي سي، نو داسې اوبه له ماء مطلق (خالص اوبو) څخه وځي او ماء مقید ګرځي او په هغه سره اودس او غسل نه جائز کیږي، لېکن د دې په برعکس صورت کې جائز کیږي یعنې چې ماء مقید (یعنې مستعملې اوبه یا د ګلاب اوبه) په لږ مقدار سره وي او ماء مطلق (خالص اوبه) په زیات مقدار سره وي، او که دواړه سره برابر وي، نو په داسې صورت کې مشایخو احتیاطاً د عدمِ جواز حکم کړی دی. (مراقی الفلاح: ۱۶)

## د "ماء نجس" (مردارو اوبو) بیان

﴿۱۲﴾ وَالرَّابِعُ مَاءٌ نَجِسٌ او څلورم قسم ناپاکه (مرداري) اوبه دي وَهُوَ الَّذِىْ حَلَّتْ فِيْهِ نَجَاسَةٌ او دا هغه اوبه دي چې یو ناپاکي (مرداري) پکښې لوېدلې وي وَكَانَ رَاكِدًا قَلِيْلًا حال دا چې هغه ولاړې (درېدلې، لو) لږ اوبه وي وَالْقَلِيْلُ مَا دُوْنَ عَشْرٍ فِيْ عَشْرٍ او لږ هغه اوبه دي کوم چې د لس په لس څخه کم وي (یعنې لس شرعي ګزه الس لاسه اوږدوالی او لس شرعي ګزه پراخوالی نه لري. بلکې له دې څخه کمې اوبه وي. نو هغه ماءِ قلیل دي) فَيَنْجَسُ وَإِنْ لَّمْ يَظْهَرْ أَثَرُهَا فِيْهِ نو داسې اوبه (د نجاست په ورلوېدلو سره) مرداریږي که څه هم د نجاست اثر په اوبو کې ښکاره سوی نه وي أَوْ جَارِيًا وَظَهَرَ فِيْهِ أَثَرُهَا یا اوبه جاري (بهېدونکې) وي او په هغوی کې د نجاست اثر ښکاره سوی وي (نو هم اوبه مرداریږي) وَالْأَثَرُ طَعْمٌ أَوْ لَوْنٌ أَوْ رِيْحٌ او اثر خوند یا رنګ یا بوی دی.

**لغات:** ﴿راكِدًا﴾ د نصر له بابه فاعل دی، ولاړ، درېدلی، رَكَدَ يَرْكُدُ رُكُودًا: درېدل، حرکت بندېدل (ساکن کېدل). ﴿لَمْ يَظْهَرْ﴾ (بفتح الهاء دی، او بضم الهاء ویل د قاعدی مطابق نه دي) د فتح له بابه د واحد مذکر غائب جحد نفي بِلَمْ صیغه ده، مصدر: ظُهُوْرًا: ښکاره کېدل، بهر راتلل.

**تشریح:** له دې ځایه د طهارت او نجاست په اعتبار سره د اوبو څلورم قسم بیانوي او هغه "ماء نجس" (مرداري اوبه) دي، یعني هغه اوبه چې یو نجاست (مرداري) په ګډه سوې وي، اوس که هغه ولاړې اوبه وي او لږ وي نو د نجاست په ورلوېدلو سره سملستي تو له اوبه مرداربږي، که څه هم د هغه هیڅ وصف بدل نه سي، مثلاً په لوی ستل یا ټپ کي یو څاڅکی متیازي ولوېږي نو هغه مرداربږي، که څه هم د متیازو اثر پکښې ښکاره نه سي.

او که چیري ماء کثیر وي لکه د لوی حوض یا تالاب اوبه، نو د نجاست حکم به هغه وخت کول کېږي کله چې د نجاست اثر یعني رنګ، خوند، بوی په اوبو کي ښکاره سي.

**د ماء کثیر تعریف:** "د کومو اوبو مقدار چي لس په لس کي وي (یعني لس ګزه يې اوږدول وي او لس ګزه يې بَر وي)". لکه لوی حوض یا لوی تالاب، نو هغه ماء کثیر (زیاتي اوبه) دي، یا په بل تعریف "دومره اوبه چي د لیدونکي په نظر کي کثیر (زیاتي) وي چي د هغه اندازه لس په لس کي تاکل سوې ده". ماء کثیر هم د ماء جاري په حکم کي دي. (کتاب المسائل ص: ۸۶)

ځیني علماء وايي چي ماء کثیر یا غټ حوض یا تالاب هغه دی چي د یوه طرف په ښورلو سره يې بل طرف نه ښوري، مثلاً که یو څوک يې په یوه طرف کي اودس وکړي، نو هغه بل طرف يې په هغه ګړي نه ښووري (وروسته ښورېدل معتبر نه دي؛ ځکه اوبه نرم بلربک شی دی چي د باد وغیره له امله هم په حرکت کي راځي).

**د ماء قلیل تعریف:** "د کومو اوبو مقدار چي د لس په لسه څخه کم وي". لکه د څاه اوبه یا د کوچني تالاب اوبه، نو هغه ماء قلیل (لږ اوبه) دي، داسي اوبه د لږ نجاست په ورلوېدلو سره هم مرداربږي، که څه هم وصف يې بدل نه سي. (در مختار ج:۱، ص:۱۷۱، طبع: مصري)

**د ماء جاري تعریف:** بهېدونکي اوبه کوم چي جاري او رواني لیدل کېږي، چي یو علامت يې دا هم دی چي که خاشه یا پاڼه ور واچول سي، نو هغه وړي، او که دومره رفتار هم په اوبو کي نه وي (چي خاشه یا پاڼه یوړل سي) نو هغوی ته جاري نه ویل کېږي. (در مختار ج:۱، ص:۱۷۱)

**د اوسنی زماني په حساب سره د ماء کثیر اندازه:** دلته له ګز څخه مراد شرعي ګز دی. کوم چي یو لاس کېږي (یعني د ګوتو له سر څخه تر څنګلي پوري)، نو مطلب دا چي د کومو اوبو مقدار په اوږدول هم

لس لاسه وي او په پلنوالي هم لس لاسه وي، نو هغه ماء كثير دي، او د اوسنی زمانې د ګز په اعتبار سره يو لاس نيم ګز کيږي، نو لس لاسه پنځه ګزه سوه، لهذا که داوبو مقدار پنځه ګزه اوږد او پنځه ګزه پراخ وي، هغه ماء کثير دي، او د "فوټ" په حساب سره يو لاس "يو نيم فوټ" کيږي کوم چې اتلس (۱۸) اينچه کيږي، نو د کومو اوبو مقدار چې پنځلس فوټه اوږد او پنځلس فوټه پراخ وي، هغه ماء کثير دي او داسې حوض يا تالاب ته لوی حوض او لوی تالاب (غدیرِ عظیم) ویل کیږي.

## د "ماء مشکوک" بیان

﴿ ۱۲ ﴾ وَالْخَامِسُ مَاءٌ مَشْكُوكٌ فِيْ طُهُوْرِيَّتِهٖ او پنځم قسم هغه اوبه دي چې د هغوی په پاکونکي کېدو کې شک سوی وي (یعني په دې کې شک وي چې دا اوبه بل شی پاکوي او که نه) وَهُوَ مَا شَرِبَ مِنْهُ حِمَارٌ أَوْ بَغْلٌ او دا هغه اوبه دي چې چیښل (څښل) ور څخه کړي وي خره یا غاټري.

**لغات:** ﴿طهوريّة﴾ مُطهِر کېدل، پاکونکي کېدل، یعني چې خپله هم پاک وي او بل لره هم پاکونکي وي، هر طهور طاهر دی لېکن هر طاهر طهور نه دی، ﴿حمار﴾ خر، د دې دوه قسمه دي: اهلي او وحشي (یعني کورنی خر او ځنګلي خر)، دلته اهلي (کورنی) خر مراد دی، جمع: حُمُر، ﴿بغل﴾ غاټره، یعني چې له خرې او آس څخه پیدا وي (یا په بله وینا دا چې پلار یې آس وي او مور یې...)، نو پسخورده یې مشکوک ده، او که له خره او آسې څخه پیدا وي، نو په دې صورت کې د غاټري پسخورده پاکه ده؛ ځکه د حیواناتو په نسبت کې اعتبار مور لره دی، نه پلار لره.

**تشریح:** په دې عبارت کې داوبو د پنځم قسم بیان دی او هغه ماء مشکوک دي یعني هغه اوبه چې په مُطهِر والي کې یې شک وي او دا هغه اوبه دي چې خره یا غاټري خوله پکښې وهلې وي، د دې حکم دا دی چې که نوري پاکې اوبه وي، نو په دوی سره دې اودس وغیره نه کوي او که نوري اوبه نه وي، نو په دوی سره دې اودس وکړي، لېکن وروسته دې تیمم هم وکړي، (شامي ج:۱، ص:۲۰۹، طبع: مصري)

مشکوک ځکه ورته وایي چې په پاکوالي او ناپاکوالي کې یې شک دی، یعني دا شک هم پکښې سته چې دا اوبه به پاکې وي، نو ځکه اودس په جائز دی، او دا شک هم پکښې سته چې ناپاکه به وي، نو ځکه اودس په جائز نه دی او تیمم به وهي.

او د مشکوک کېدلو وجه يې دا ده چې د خره د غوښو او خولې (عرق) په باره کې دوه قسمه دلائل سته، يو دا چې نبي ﷺ د خره د غوښو له خوړلو څخه منع وکړه (بخاري شريف، باب غزوة خيبر ج: ۲، ص: ۶۰۶، حديث رقم: ۴۲۱۹)، او کله چې د خره غوښه حلاله نه ده، نو د خره ناړي (لاړې) به هم مرداري وي؛ ځکه چې ناړي له غوښې څخه پيدا کېږي، نو په دې اعتبار سره پکار دا ده چې د خره پسخورده دې مرداره وي، او بل روايت دا دی چې نبي کريم ﷺ پر خره سپور سوی دی (بخاري شريف، باب اسم الفرس والحمار، حديث رقم: ۲۸۵۶)چې د هغه په وجه به د نبي کريم ﷺ پر جامه د خره خوله (عرق) لګېدلې وي، او خوله هم له غوښې څخه پيدا کېږي او حکم يې هماغه دی کوم چې د ناړو حکم دی. لهذا کله چې نبي ﷺ د خره له خولې څخه جامه نه ده مينځلې او خوله يې پاکه ده، نو په دې اعتبار سره د هغه ناړي هم پاکېدل پکار دي (او له دې څخه بغير يو بل حديث هم په ابو داؤد شريف کې نقل سوی دی کوم چې د خره د غوښې پر حلت دلالت کوي. (ابو داؤد شريف، باب في اكل لحوم الحمر الاهلية ص: ۱۵۲۳)، ګواکې د خره په باره کې دوه قسمه دلائل نقل سوي دي، نو ځکه د خره پسخورده مشکوکه ګرځول سوې ده.



# فَصْلٌ (فِیْ بَیَانِ أَحْکَامِ السُّؤْرِ)

(دا) فصل (د پسخوردې داحکامو په بیان کې) دی

## د پسخوردې بیان

۱۴ وَالْمَاءُ الْقَلِیْلُ إِذَا شَرِبَ مِنْهُ حَیَوَانٌ او لږ اوبه کله چې چیښل کړې وي له هغه څخه یو حیوان یَکُوْنُ عَلٰی أَرْبَعَةِ أَقْسَامٍ نو هغه پر څلور قسمه کیږي (یعني داسې اوبه پر څلور قسمه دي) وَیُسَمّٰی سُؤْرًا او هغه په پسخورده سره نومول کیږي (یعني داسې اوبو ته پسخورده اوبه وایي).

**تشریح:** په دې فصل کې مصنف رَحِمَهُ الله د پسخوردې احکام بیانوي، کله چې اوبه لږ وي مثلاً په یو لوښي کې وي او له هغه څخه یو حیوان (ساکن)اوبه وچیښي، نو تر چیښلو وروسته چې کومې اوبه پاته سي، هغه ته پسخورده اوبه وایي، دلته یې ځکه دلږو اوبو "ماء قلیل" قید لګولی دی چې که اوبه ډیرې وي او له هغه څخه یو حیوان اوبه وچیښي، مثلا یو حیوان په نهر (ویاله) کې خوله ووهي، نو هغه ته پسخورده اوبه نه وایي. او څرنګه چې د پسخوردې په پاکوالي او ناپاکوالي او د پسخوردې په مکروه والي او مشکوک والي کې د حیوان اعتبار کول کیږي، نو ځکه پسخورده څلور قسمه کیږي.

## څلور قسمه پسخورده په یوه جدول کې

| شمېر | پسخورده | حکم |
|---|---|---|
| (۱) | د انسان پسخورده | پاکه ده |
| (۲) | د سپي، خنزیر وغیره پسخورده | مرداره ده |
| (۳) | د پیشي او آزادې (ایله) چرګې وغیره پسخورده | مکروه ده |
| (۴) | د خره او غاترې پسخورده | مشکوکه ده |

## د انسان د پسخوردې حکم

۱۵ اَلْأَوَّلُ طَاهِرٌ مُطَهِّرٌ اول قسم (هغه پسخوره اوبه دي چې خپله هم) پاکې دي او (بل لره هم) پاکونکې دي وَهُوَ مَا شَرِبَ مِنْهُ آدَمِیٌّ او دا هغه اوبه دي چې چیښل ور څخه کړي وي انسان

أَوْ فَرَسٌ أَوْ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ یا آس یا هغه حیوان چې غوښه یې خوړل کیږي (یعني حلال ځاروی) چېنل ور څخه کړي وي).

**لغات:** ﴿مُطهِر﴾ د تفعیل د باب فاعل دی کوم چې متعدي باب دی: (بل څه لره) پاکونکی. ﴿ما یؤکل﴾ دلته مَا د حیوان په معنیٰ سره دی.

**تشریح:** د انسان پسخورده او د هغه ناړي (لاړي) شرعاً پاکي دي او په دې کې د مسلمان [illegible] حائضه او غیرِ حائضه، باأودسه او بې اودسه ترمینځ هیڅ فرق نشته. د ټولو پسخورده او نارې [illegible] دي، په دې شرط چې په خوله کې یې ښکاره مرداري نه وي، همدا وجه ده که څوک شراب وڅښي، یا یې په خوله کې وینه راسي او بیا سملستي له یو لوښي څخه اوبه وڅښي. نو د هغه پسخورده مرداره شمېرل کیږي، ها! که څه ګړی وروسته یا د لاړو (نارو) له تېرولو څخه وروسته اوبه وڅښي، نو بیا نه مرداریږي. لیکن که د شراب خوره برېتونه اوږده وي، نو هغه که څه هم لږ ګړی وروسته اوبه وڅښي بیا هم پسخورده یې مرداره ګرځي؛ ځکه په دې حالت کې د برېتو د ککړ تیا احتمال سته. همدا رنګه د حلال حیوان او حلال مرغه پسخورده پاکه ده. لکه پسه، بزه، غوا، کمینه، طوطي، کوتره یا داسي نور، همدارنګه د آس پسخورده هم پاکه ده. (البحر الرائق ج:۱، ص:۱۳۳، مراقی الفلاح مع الطحطاوي ص:۱۷)



## د مړي او بیده کس د نارو (لاړو) حکم

**مسئله (۱):** تر مرګ وروسته چې د مړي له خولې څخه کومې نارې او اوبه را ووځي. هغه شرعاً ناپاکه دي.

**مسئله (۲):** د بیده کس له خولې څخه راتونکې اوبه پاکي دي. (در مختار ج:۱، ص:۱۲۸، ط: مصري)

## د سپي وغیره د پسخوردې حکم

﴿۱۶﴾ وَالثَّانِيْ نَجِسٌ لَايَجُوْزُ اِسْتِعْمَالُهُ او دویم قسم (هغه پسخورده اوبه دي چې) ناپاکه دي چې د هغوی استعمالول (کارول) جائز نه دي وَهُوَ مَا شَرِبَ مِنْهُ الْكَلْبُ أَوِ الْخِنْزِيْرُ او دا هغه اوبه دي چې چېنل ور څخه کړي وي سپي یا خنزیر أَوْ شَيْءٌ مِّنْ سِبَاعِ الْبَهَائِمِ كَالْفَهْدِ وَالذِّئْبِ یا له درندګانو څخه یو درنده (چېنل ور څخه کړي وي) لکه پړانګ او لېوه (شرمښ).

**لغات:** ﴿کلب﴾ سپی، برابره ده ښکاري سپی وي، یا د حفاظت لپاره ساتل سوی وي، عام دی. جمع اکلاب. ﴿خنزیر﴾ خنزیر (خنځیز)، خوګ، سوډر، جمع: خنازیر. ﴿شيء﴾ دلته د حیوان په

معنی سره دی، او د سباعُ البهائم قید احترازي دی؛ چې په دې سره ځیرونکي مرغان (ښکاري مرغان) ایستل مقصود دي، ﴿سباع﴾ جمع د سَبُعٌ ده؛ درنده، ځیرونکی حیوان، (ځناور)، ﴿البهائم﴾ جمع د بَهِیْمَةٌ ده؛ چارپای، څاروی، ﴿فهد﴾ پړانګ، یو ځیرونکی ځنګلي ځناور دی چې برګه څرمن لري، یا په بل وینا: ټکي ټکي څرمن لرونکی یو ځیرونکی ځناور (پښتو قاموسونه)، یادونه: پړانګ څو قسمه دی چې له هغوی څخه یو قسم پر بدن تور ټکي (تور خالونه) لري کوم چې زیاتره وخت د هوسیو ښکار کوي په عربي کې همدې قسم ته "فَهد" وایي او په انګریزي کې ورته "Cheetah" وایي، او بل قسم یې پر بدن توري اوږدې لکې لري او په عربي کې هغه ته "نَمِر" وایي او په انګریزي کې ورته "Tiger" وایي، خو په پښتو قاموسونو کې د دواړو قسمونو لپاره د پړانګ لفظ استعمال شوی دی، صرف یو قاموس مې داسې ولیدی چې د "فهد" (Cheetah) لپاره یې په پښتو کې د "یُوز" نوم استعمال کړی دی، د قاموس نوم دی "د پښتو دلغتونو قاموس".

**تشریح**: د احنافو په نیز د هر قسم درنده (ځیرونکي حیوان) پسخورده مرداره ده، برابره ده سپی وي، یا زمری وي، یا پړانګ او داسې نور وي، لهذا د درنده په پسخوره سره پاکي حاصلول، یا هغه استعمالول جائز نه دي.



**مسئله**: په کوم لوښي کې چې درنده خوله وهلې وي، هغه لوښی په درې ځله پرېوللو سره پاکیږي، خو اُووه ځله پرېوللل یې مستحب دي او په خاورې سرې پاکول هم ضروري نه دي، صرف مستحب دي. (مراقی الفلاح مع الطحطاوي ص:۱۸)

﴿۱۷﴾ وَالثَّالِثُ مَكْرُوْهٌ اِسْتِعْمَالُهٗ مَعَ وُجُوْدِ غَيْرِهٖ او دریم قسم هغه (پسخورده لوبه) دي چې استعمالول یې مکروه دي د نورو اوبو د موجود والي سره (یعني د نورو اوبو د شتون په وخت کې یې استعمالول مکروه دي) وَهُوَ سُؤْرُ الْهِرَّةِ وَالدَّجَاجَةِ الْمُخَلَّاةِ او هغه پسخورده ده د پیشي او د ایله کړي (کوشه ګښتي) چرګې وَسِبَاعِ الطَّيْرِ كَالصَّقْرِ وَالشَّاهِيْنِ وَالْحِدَاءَةِ او د درنده (ځیرونکو) مرغانو لکه باز، شاهین او تپوس وَسَوَاكِنِ الْبُيُوْتِ كَالْفَأْرَةِ لَا الْعَقْرَبِ او (همدارنګه) په کورونو کې د اوسېدونکو حیواناتو (پسخورده) لکه موږک، نه لړم.

**لغات**: ﴿الهرة﴾ پیشي، دلته مراد کورنۍ پیشي ده، نه وحشي او ځنګلي پیشي، ځکه د هغې حکم جلا دی ﴿الدَّجَاجَة﴾ او دُجَاجَة او دِجَاجَة (یعني پر دال درې سره حرکات ویل کېدای شي)؛ چرګه.

﴿الدجاجة المخلاة﴾ هغه چرګه چې آزاده (خوشې) ګرځي راګرځي، چې په کور کې یا دباندې په مردارېو او په هر شي کې خوله وهي، ﴿سباع الطیر﴾ ښیرونکي ښکاري مرغان (کوم چې نور حیوانان ښکاروي او خوري)، ﴿صقر﴾ د باز په قسم یو ښکاري مرغه دی، بعضو د دې معنیٰ په باز او بعضو په باښه او بعضو په ځرخک سره کړې ده، ﴿شاهین﴾ یوه سپین رنګه ښکاري مرغه دی. شاهین. شند. جمع: شَوَاهِیْن. ﴿حداة﴾ ټپوس (ټپوغ)، جمع: حِدَأٌ، حِدَاءٌ، حِدْآنٍ. ﴿فأرة﴾ او فَأرَة: موږک جمع: فِیْران. ﴿عقرب﴾ لړم، نر او ماده دواړو لره شامل دی، اکثره مؤنث راځي، اسم کنیت یې اُمُّ عریط او اُمُّ ساهرة دی، ویل سوي دي چې نر ته یې عُقْرُبَانٌ او ماده (ښځې) ته یې عَقْرَبَةٌ وېل کیږي جمع یې عَقَارِبُ ده.

**تشریح**: په دې عبارت کې د ماء سُؤر درېیم قسم "مکروه" بیان سوی دی، درېیم قسم هغه ... اوبه دي چې د هغه استعمالول او څښل مکروه تنزیهي دي، د هر یوه تفصیل په لاندې ډول دی:

**(۱) د کورني پیشي د پسخوردې حکم**: که کورنۍ پیشي په اوبو کې یا د خوړ ... کې خوله ووهي، نو هغه اوبه او شی خو نه مرداریږي، لېکن مکروه کیږي. غوره دا ده چې په هغه ... سره اودس نه وسي، بیا هم که اودس په وکړي، نو صحیح کیږي، لېکن که پیشي پر موږک حمله وکړي او هغه وخوري او بیا سمدستي په لوښي کې خوله ووهي، نو هغه لوښی او اوبه ... مرداریږي. (المحیط البرهاني ج:۱، ص:۲۸۶، تبیین الحقائق ج:۱، ص:۳۳)

**(۲) د آزادې چرګې حکم**: کومه چرګه چې آزاده (خوشې) پرېښودل سوې وي، د هغې پسخورده هم مکروه ده؛ ځکه هغه له مردارېو ځخه ځان نه ساتي او په هر شي کې منوکه وهي. هـا! که چرګه تړل سوې وي او د هغې منوکه مردارېو ته نه رسیږي، نو بیا مکروه نه ده، ځکه په دې صورت کې پورتنۍ خطره نسته. (شامي ج:۱، ص:۲۰۶)

**(۳) د ښکاري مرغانو حکم**: ښکاري مرغان لکه باز، شاهین وغیره، د هغوی پسخورده هم مکروه ده، لېکن کوم ښکاري مرغان چې کورني وي (چې په کور کې پالل کیږي) او مردار شی نه خوري او نه یې په منوکه کې د مرداري (نجاست) شبهه وي، نو د هغوی پسخورده پاکه ده. او کوم شیان چې په کور کې اوسیږي لکه مار، موږک، ځرمښکی وغیره، د هغوی پسخورده هم مکروه ده.

مصنف رحمه الله د لړم حکم جلا بیان کړی دی چې د هغه پسخورده مکروه نه ده: ځکه چې د هغه ناري (لاړې) مرداري نه دي. (مراقی الفلاح ص:۱۸)



## د وحشي او ځنګلي پیشي حکم

**مسئله (۱)**: د وحشي او ځنګلي پیشي پسخورده مطلقاً مرداره ده. لهذا که هغه په اوبو کې خوله ووهي، نو اوبه مرداريږي. (مراقي الفلاح ص:۱۸)

## د پیشي د پسخورده خوراک حکم

**مسئله (۲)**: که پیشي د شیدو په لوښي کې خوله ووهي او څه شیدې ځني وخوري، یا له کټغ (سالن) څخه څه وخوري، نو پاتې شیدې او پاتې کټغ خوړل مکروه دي، غوره دا ده چې پرهیز ځني وسي. (کتاب المسائل ص:۱۰۲، تبیین الحقائق ج:۱، ص:۳۲)

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَالرَّابِعُ مَشْكُوكٌ فِيْ طُهُوْرِيَّتِهٖ او څلورم قسم هغه (پسخورده اوبه) دي چې د هغه په پاکونکي کېدو کې شک سوی دی (یعني چې هغه بل شي لره پاکونکي دي که نه؟) وَهُوَ سُؤْرُ الْبَغَلِ وَالْحِمَارِ او هغه د قاطري او خره پسخورده ده فَإِنْ لَّمْ يَجِدْ غَيْرَهٗ نو که چیرې له هغه څخه بغیر نوري اوبه پیدا نه کړي تَوَضَّأَ بِهٖ وَتَيَمَّمَ ثُمَّ صَلّٰى نو په هغه سره دې اودس وکړي او تیمم دې (هم) وکړي، بیا دې لمونځ وکړي. |

**لغات**: ﴿لم یجد﴾ د ضرب له بابه د جحد صیغه ده، فاعل یې اَلْمُحْدِثُ (بې اودسه کس) محذوف دی او په غَيْرَهٗ کې هاء ضمیر و سُؤْر البغل والحمار ته راجع دی.

**تشریح**: ددې تفصیل په ﴿۱۲﴾ نمبر مسئله کې تېر سو.



# فَصْلٌ (فِي التَّحَرِّيْ)

## (دا) فصل (د تحرّي په بيان کې) دی

**تشريح**: التحرّی د تفعّل د باب مصدر دی، اصل معنیٰ یې ده: طلبُ الأحریٰ، د زیات لایق، اولیٰ شي طلب او پلټنه کول. یعني په څو شیانو کې د اولیٰ شي طلب او غور کول چې کوم یو یې اولیٰ او زیات مناسب دی، صاحب د "شفاء الأرواح شرح نور الایضاح" دلته د تحري معنیٰ داسې بیان کړې ده: "له غیرِ طاهر شئ څخه د طاهر شئ د جلا کولو لپاره په خپل غور او فکر سره پوره کوشش کول"، په آسانه وینا دا چې د طاهر او غیر طاهر شئ تر مینځ د توپیر لپاره پوره غور او فکر کول. یا په بله وینا دا چې که پاک او ناپاک شیان سره ګډ وي، نو په هغوی کې د پاک شي طلب کول.

## د تحرّي بیـان

﴿۱۹﴾ لَوِاخْتَلَطَ أَوَانٍ أَكْثَرُهَا طَاهِرٌ که چیرې سره ګډ سي څو داسې لوښي چې په هغوی کې اکثره پاک وي (یعني له اوبو څخه ډک څو پاک او ناپاک لوښي سره ګډ سي چې اکثره یې پاک وي) تَحَرَّى لِلتَّوَضُّـؤِ وَالشُّـرْبِ نو تحرّي (غور و فکر) دې وکړي د اودس او څښلو لپاره (یعني د اودس او څښاک لپاره دې له هغه لوښو څخه د پاکو لوښو د طلب او معلومولو لپاره غور او فکر وکړي) وَإِنْ كَانَ أَكْثَرُهَا نَجِسًا او که په هغوی کې اکثره لوښي ناپاک (مردار) وي لَا يَتَحَرَّى إِلَّا لِلشُّرْبِ نو تحري دې نه کوي مګر صرف د څښلو لپاره وَفِي الثِّيَابِ الْمُخْتَلِطَةِ يَتَحَرَّى سَوَاءٌ كَانَ أَكْثَرُهَا طَاهِرًا أَوْ نَجِسًا او په ګډو سوو کالیو (جامو) کې به (په هر صورت کې) تحرّی کوي برابره ده اکثره یې پاک وي او که ناپاک وي.

**لغات**: ﴿اختلط﴾ د افتعال د باب ماضي ده: سره ګډېدل، مخلوط کېدل. ﴿أوانٍ﴾ جمع د آنِیَةٌ ده: لوښي. اَوَانٍ دلته فاعل دی د اِخْتَلَطَ فعل لپاره، په اصل کې أَوَانِيٌ وو. ضمه پر یاء ثقیله وه، نو یاء

ساكنه كړى سوه. بيا ياء او تنوين دوه ساكنه سره جمع سوه، ياء حذف كړى سوه. أوَان سو. نو أوانٍ دلته د فاعليت پر بناء مرفوع دى، رفع يې په تقدير د ضمې سره ده.

**تشريح:** **صورت د مسئلې**: دا دى كه يو ځاى څو لوښي له اوبو څخه ډک موجود وه او مثلاً ټوله لوښي يو ډول وه او په هغوى كې داكثره لوښو اوبه پاكې وې او د لږو لوښو اوبه مرداري وې او دا نه معلومېده چې د كوم لوښي اوبه پاكې دي او د كوم يوه اوبه مرداري دي، نو په دې صورت كې تر تحري كولو (غور او فكر كولو) وروسته د اوبو استعمالولو اجازه سته. يعني د كوم لوښي په هكله چې د ليدونكي زړه ووايي چې د دې لوښي اوبه پاكې دي، نو له هغه څخه اوبه چيښلاى سي. اودس او غسل په كولاى سي. او كه په موجوده لوښو كي داكثره لوښو اوبه مرداري وې او د لږو لوښو اوبه پاكې وې، نو بيا د تحرّى (غور او فكر) هيڅ ضرورت نسته. بلكې تيمم دي وكړي، خو تر تحرّي وروسته يې (صرف) اوبه چيښلاى سي.

وفي الثياب إلخ: يعني كه يو څو پاک او نا پاک كالي سره ګډ وډ سوه او دا نه معلومېده چې كوم كالي پاک دي او كوم مردار دي، نو تحرّي دي وكړي او له تحري څخه وروسته چې كوم كالي د ده په نېز پاک ثابت سي، هغه اغوستلاى سي، برابره ده په مذكوره صورت كې د كاليو (جامو) شمېر زيات وي او كه كم وي، ځكه د اوبو بدل خو تيمم وو، لېكن د كاليو او كپړو هيڅ بدل نسته چې ستر په پټ كړى سي. (مراقى الفلاح ص۲۰، ط، مصري)



# فَصْلٌ فِيْ مَسَائِلِ الآبَارِ

(۱۵) فصل د څاهانو د مسئلو په باره کي دی

## که څاه ته بهیدونکې نجاست (باریکه مرداري) ولوېږي

﴿۲۰﴾ تُنْزَحُ الْبِئْرُ الصَّغِيْرَةُ بِوُقُوْعِ نَجَاسَةٍ وَإِنْ قَلَّتْ راکښل کیږي به کوچنی څاه (یعني تولې اوبه د کوچني څاه) په ورلوېدلو سره د نجاست (مرداری) که څه هم لږ نجاست وي مِنْ غَيْرِ الْأَرْوَاثِ بغیر له خوشایو څخه (یعني کوچنی څاه کوم چي دلس په لس څخه کم وي که هغه ته له خوشایو او پچو څخه بغیر بل نجاست لږ هم ولوېږي، نو توله اوبه به یې را کښل کیږي) كَقَطْرَةِ دَمٍ أَوْ خَمْرٍ لکه د وینو او شرابو یوه قطره (یو څاڅکی).

**لغات:** ﴿آبار﴾ جمع د بِئْرٌ ده، څاه (څا)، کوهی، ﴿تُنزَحُ﴾ د فتح له بابه د واحد مؤنث غائب مضارع مجهولي صیغه ده، راکښل (را کاږل)، را وباسل، البئرُ نائب فاعل دی او د "تُنزَحُ" اسناد و "البئرُ" ته اسناد مجازي دی او مراد له البئرُ څخه د څاه اوبه دي او دا یې د مبالغه په توګه ویلي دي چي د ټولې اوبو د راکښلو تعبیر یې په دې توګه کړی دی چي څاه دي راکښل سي، ګواکي د محل په ذکر کولو سره حال مراد سوی دی. ﴿الصغیرة﴾ کوچنی، دا د البئرُ صفت دی، ځکه بئر مؤنث سماعي دی. ﴿أرواث﴾ جمع د رَوْثٌ ده: خوشایي (په اصل کي "رَوْث" د ذواتُ الحافر یعني د آس، خرده او داسي نورو فضلې ته وایي چي هغه ته په پښتو کي خرشینه وایي او "خِثْي" د غوا، غویي او فیل فضلې ته وایي. او کله نا کله دا الفاظ یو د بل پر ځای هم استعمالیږي). مِنْ غَيْرِ الْأَرْوَاثِ د نَجَاسَةٍ لپاره بیان دی او د قَلَّتْ مثال یې په كَقَطْرَةِ دَمٍ أَوْ خَمْرٍ سره ورکړی دی او د قَلَّتْ د ضمیر مرجع نَجَاسَة دی.

**تشریح:** که په یو کوچني څاه کي څه مردار شی ولوېږي که څه هم هغه له یوه څاڅکي څخه کم وي، نو د څاه ټوله اوبه مردارېږي او ټوله اوبه یې راکښل ضروري دي، کوچنی څاه مطلب دا چي لس په لس کي نه وي بلکه له دې څخه کم وي او څاهان عموماً له دې څخه کم وي، ځکه لس په لس کي

څاه یا تر دې غټ څاه ډېر شاذ ونادر وي، نو که په کوچني څاه کې له خوشایو او پوچو څخه بغیر بل څه مردار شی ولوېږي، مثلاً د ونو یا شرابو یو څاڅکی (یوه قطره) ور ولوېږي، نو ټوله څاه مردارېږي، لهذا د هغه ټوله اوبه به را ایستل کیږي، او همدا حکم د هر هغه مقدار د اوبو دی چې لس په لس کې نه وي بلکې کم وي، مثلاً په لوی سټل (بالټی) یا ټب کې یو څاڅکی متیازي ولوېږي، نو هغه مردارېږي، که څه هم د متیازو اثر پکښې ښکاره نه سي (در مختار ج:۱، ص:۱۷۱)، مصنف رَحِمَهُ الله أرواث څکه جلا کړي دي چې له هغه څخه بچ کېدل ممکن نه دي (څکه د صحرا پر څاه کانو سرونه نه وي او څاروان د هغوی شلو خوا ته پڅې کړي وي چې بیا د باد او هوا په وجه هغوی څاه ته لوېږي، نو څکه د پچو لږ مقدار د ضرورت په وجه معاف کړی سوی دی)، ها! که هغوی په زیات مقدار څاه ته ولوېږي، نو هم څاه مردارېږي.

## څاه ته د خنزیر د لوېدلو حکم

﴿۲۱﴾ وبِوُقُوْعِ خِنْزِیْرٍ او (راکښل کیږي به ټولې اوبه) په ورلوېدلو سره د خنزیر (سرکوزي) وَلَوْخَرَجَ حَیًّا وَلَمْ یُصِبْ فَمُهُ المَاءَ که څه هم ژوندی را ووځي او خوله یې (هم) اوبو ته نه وي رسېدلې.

**تشریح**: که په څاه کې خنزیر ولوېږي که څه هم هغه بیرته ژوندی را ووځي او خوله یې اوبو ته ورسیږي، یا نه ورسیږي، په هر حالت کې اوبه مردارېږي او ټوله به را ایستل کیږي؛ څکه چې خنزیر نجس العین دی. (مراقی الفلاح ص:۲۱)

## څاه ته د انسان، یا د پسه او سپي د لوېدلو حکم

﴿۲۲﴾ وَبِمَوْتِ كَلْبٍ او (همدارنګه راکښل کیږي به ټولې اوبه) په مرګ د سپي سره (چې په څاه کې مړ سي) أَوْ شَاةٍ أَوْ آدَمِيٍّ فِيْهَا یا (په مرګ) د پسه یا د انسان سره (په دې ټولو صورتونو کې به هم د څاه ټولې اوبه راکښل کیږي، همدا یې د پاکېدلو طریقه ده).

**تشریح**: که یو څاه ته انسان، یا سپی، یا پسه، یا د پسه په اندازه بل حیوان ولوېږي او مړ (مردار) شي، نو د څاه ټوله اوبه مردارېږي، لهذا ټوله به را ایستل کیږي، او که له څاه څخه بهر مړ سي بیا څاه ته ولوېږي، نو هم دغه حکم دی. (درمختار ج:۱، ص:۱۹۸)



**مسئله (۱)**: که څاه ته سپی ولوېږي او د هغه ناړې (لاړې) په اوبو ککې سي او بیرته ژوندی را ووځي، نو بیهم څاه مردارېږي او د ټوله څاه اوبه را ایستل ضروري دي. (مراقی الفلاح ص:۲۱. سب المسائل ص:۱۲۳)

**مسئله (۲):** که یو پاک انسان څاه ته ولوېږي او هلته مړ سي، نو هم د ټوله څاه اوبه را ایستل ضروري دي، برابره ده انسان هلته پکښې پړسېدلی او شوړېدلی وي او که نه وي. (المحیط البرهاني ج:۱، ص:۲۵۶، کتاب المسائل ص: ۱۲۲)

**مسئلة (۳):** که یو پاک کس د اوبو را اخیستلو یا د څاه صفا کولو یا د یو بل غرض لپاره څاه یا تالاب ته شوه سي، بیرته را وخېږي او د هغه پر بدن هیڅ نجاست نه وي، نو د څاه یا تالاب اوبه را ایستل ضروري نه دي. (المحیط البرهاني ج:۱، ص:۲۵۳، کتاب المسائل ص: ۹۶)

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وبِانْتِفَاخِ حَيَوَانٍ او (همدارنګه را کښل کېږي به ټولې اوبه په څاه کې) د یو حیوان د پړسېدلو په وجه وَلَوْ صَغِيْرًا که څه هم هغه حیوان کوچنی وي. |

**لغات:** ﴿انتفاخ﴾ د افتعال د باب مصدر دی: پړسېدل، تنډېدل، ﴿حیوان﴾ ساکن، له دې څخه مراد د ځمکي حیوان دی چي په هغه کي وینه وي او د اوبو اوسېدونکی نه وي. صغیرًا: دا د محذوف کَانَ خبر دی.

**تشریح:** که چیري یو حیوان (ساکن) په څاه کي ولوېږي او مړ سي، بیا وپړسېږي یا وشوړېږي، نو د هغه څاه ټوله اوبه مرداریږي او ټوله به را کښل کېږي، برابره ده هغه کوچنی حیوان وي لکه موږک وغیره، یا لوی حیوان وي لکه آس وغیره (د ټوله اوبو را کښلو مطلب دا دی چي دومره را وکښل سي چي تر دې وروسته نیمه سولاغه نه سي په ډکېدلای [شفاء الأرواح ص: ۱۳۲]).

## د جاري څاه حکم او تفصیل

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾ وَمِائَتَا دَلْوٍ او (را کښل کېږي به) دوه سوه (۲۰۰) سلواغې لَوْلَمْ يُمْكِنْ نَزْحُهَا که چیري ممکن نه وي د هغه (څاه د ټولو اوبو) را کښل. |

**لغات:** ﴿دَلْو﴾ سولاغه، سلواغه، جمع: دِلَاء.

**تشریح:** که یو څاه چینه داره او جاري وي چي له هغه څخه ټوله اوبه را کښل ممکن نه وي یعني څومره اوبه چي ځني را وکښل سي، هغومره یا تر هغه زیاتي نوري اوبه پکښې پیدا سي، نو په دې صورت کي حکم دا دی چي له داسي څاه څخه به دوه سوه (۲۰۰) سولاغې را کښل کېږي، بیا هغه پاکېږي، دا حکم د واجب په درجه کي دي او درې سوه (۳۰۰) سولاغې مستحب دي، دا د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی.

او په دې باره کي د فقهي زیات موافق هغه قول دی کوم چي له امام ابو نصر محمد بن محمد بن سلام رَحِمَهُ الله څخه نقل سوی دی کوم چي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه هم یو روایت دی او هغه دا

دی چې دوه نیک دیناره کسان کوم چې د اوبو د مقدار او اندازې په پېژندنه کې مهارت لري، هغوی دې اندازه ولګوي چې اوس وخت په څاه کې څومره اوبه دي او هغوی چې څومره سولاغې ونیسي، هغومره دې را وکښل سي، همدا صحیح او د فقهي زیات مشابه قول دی او پر همدې فتویٰ ده. نو مثلاً که هغه دوه کسان داسې ووایي چې اوس وخت په دې څاه کې پنځه سوه (۵۰۰) سولاغې دي، نو همدومره اوبه دې را وکښل سي (او دا به په مینځوی سولاغه سره را کښل کیږي او له دې څخه مراد هغه سولاغه ده کوم چې عموماً پر دغه څاه استعمالیږي، او د سولاغې د کېبلل ضروري نه دي بلکي له نصف څخه زیاتېدل کافي دي إشفاء الأرواح ص: ۳۲)

## څاه ته د چرګې یا پیشي د لوېدلو حکم

﴿۲۵﴾ وَإِنْ مَاتَتْ فِيهَا دَجَاجَةٌ أَوْ هِرَّةٌ اوکه مړه (مرداره) سي په څاه کې چرګه یا پیشي أَوْ نَحْوُهُمَا یا د چرګې او پیشي په څېر (بل حیوان په جسم وجثه کې) لَزِمَ نَزْحُ أَرْبَعِينَ دَلْوًا نو د څلوېښتو سولاغو راکښل لازمیږي.

**لغات:** ﴿دَجاجة﴾ (په ضمه او کسره د دال سره هم منقول دی). واحد د "دجاج" دی، د چرګ او چرګې لپاره مستعمل دی، جمع: دَجَاجٌ، دَجَاجَات او دُجَجٌ. فيها: د ها ضمير البئر ته راجع دی.

**تشریح:** که د اوبو څاه ته چرګه، یا پیشي، یا کوتره، یا د دوی په اندازه بل شی ولوېږي او هلته مردار سي، یا مخکې مردار سوی وي او بیا څاه ته ولوېږي او تر پړسېدلو او شوړېدلو مخکې را وکښل سي، نو څلوېښت سولاغې را کښل واجب دي او پنځوس سولاغې مستحب دي.



**مسئله:** که چیرې پیشي د څاه یا تالاب اوبو ته شوه سي او بیرته ژوندۍ را ووځي، نو غوره دا ده چې د څلوېښتو سولاغو په اندازه اوبه را وکښل سي، او همدا حکم د هغه چرګې دی کوم چې آزاده پرېښودل سوې وي او هر ډول پاک او ناپاک شیان خوري. (المحيط البرهاني ج۱، ص۲۵۴)

## د موږک او مرغۍ حکم

﴿۲۶﴾ وَإِنْ مَاتَتْ فِيهَا فَأْرَةٌ أَوْ نَحْوُهَا اوکه مړ سي په څاه کې موږک او یا د موږک په څېر (بل کوچنی حیوان) لَزِمَ نَزْحُ عِشْرِينَ دَلْوًا نو د شلو (۲۰) سولاغو راکښل لازمیږي.

**لغات:** ﴿فأرة﴾ او فارة (په همزه او بغیر له همزې دواړه ډوله ویل کېدای سي. وَتَقَعُ عَلَى الذَّكَرِ وَالأُنْثَى، وَالْجَمْعُ فَأْرٌ مِثْلُ تَمْرٍ وَتَمْرَةٍ) موږک (مصباح المنیر). ونحوها: مثلاً مرغۍ (چوغکه).

**تشریح:** که څاه ته موږک یا مرغۍ ولوېږي، نو که هغه له پړسېدلو او شوړېدلو څخه مخکې را وکښل سي، نو په دې صورت کې کم از کم شل سولاغې اوبه را کښل فرض دي او که دېرش سولاغې را وباسي، نو غوره ده.

ښکاره دي وي چې په دې ټولو صورتونو کې داوبو راکښلو شروع له هغه وخت څخه معتبره ده کله چې هغه نجس شی را وکښل سي چې د هغه په وجه چې څاه مردار سوی وي لکه په مذکوره صورت کې موږک یا مرغۍ، او د نجس شي له را کښلو څخه مخکې چې کومې اوبه را کښل سوي وي، هغه بې فایده دي او هیڅ اعتبار ور لره نسته.



**که ور لوېدلی نجس شی له څاه څخه را کښل نا ممکن وي، نو څه حکم دی؟**

**مسئله (۱):** د کوم شي په وجه چې څاه مردار سوی وي (مثلاً موږک)، که د هغه را کښل ممکن نه وي مثلاً څاه ډېر ژور (غوچ) وي، یا هغه شی په څاه کې ورک سي، یا مثلاً څاه ته نجس لرګی یا نجسه کپړه ولوېږي او پکښې ورکه سي او د هغه را کښل ناممکن وي وي، نو په دې صورت کې صرف د واجب مقدار اوبو په را کښلو سره څاه پاکیږي او د څاه د پاکېدلو سره هغه ناپاک لرګی یا کپړه هم پاکیږي.(حاشیه)

**د اوبو په ماشین سره څاه یا تالاب خالي کول**

**مسئله (۲):** په کومو صورتونو کې چې د شلو، یا څلوېښتو یا داسې نورو سولاغو د را ایستلو، یا د څاه خالي کولو حکم سوی دی، هلته د سولاغې قید صرف د اندازې لپاره دی، اصل مقصد صرف هغومره مقدار اوبه را ایستل دي، لهذا دا مقصد که په غټه سولاغه سره یا په اوسني وخت کې د اوبو په ماشین سره حاصل کړی سي، نو هیڅ حرج پکښې نسته، بلکې دا زیات آسانه دي. (المحیط البرهاني ج۱، ص۲۶۵)



﴿۲۷﴾ وَكَانَ ذٰلِكَ طَهَارَةً او دغه راکښل د اوبو پاکي ده (پاکونکې دي) لِلْبِئْرِ وَالدَّلْوِ وَالرِّشَاءِ وَيَدِ الْمُسْتَسْقِيْ لپاره د څاه او سولاغې او رسی او د اوبه راکښونکي د لاس.

**لغات:** ﴿الرشاء﴾ (بکسر الراء): رسی، د سولاغې رسی، جمع: أرْشِيَة. ﴿المستقي﴾ د استفعال (استقاء) له باب څخه اسم فاعل دی: د اوبو طلب کونکی، د اوبو را اخیستونکی (را کښونکی). (معجم الوسیط)

**تشریح**: کله چي له څاه څخه واجب مقدار اوبه راوکښل سي، نو څاه او د څاه دېوالونه پاک کیږي او د څاه د پاکېدلو تر څنګ سولاغه، رسۍ او داوبو را کښونکي لاس هم پاکیږي، لهذا بل وار د هغوی پاکولو ته ضرورت نسته. همدارنګه په هر صورت کي د واجب مقدار اوبو په راکښلو سره چي څرنګه څاه پاکیږي، همداسي مذکوره ټوله شیان هم پاکیږي.

## څاه ته د پچو او خوشایو وغیره د لوېدلو حکم

﴿۲۸﴾ وَلَا تَـنْجِسُ الْبِئْرُ بِالْبَعْرِ وَالرَّوْثِ وَالْخِثْيِ او څاه نه مرداریږي په (ورلوېدلو دلږو) پچو او خوشایو او خرشینو سره إِلَّا أَنْ يَّسْتَكْثِرَهُ النَّاظِرُ مګر دا چي لیدونکی هغه (ورلوېدلي پچي یا خوشایي...) زیات وګڼي أَوْ أَنْ لَّا يَخْلُوَ دَلْوٌ عَنْ بَعْرَةٍ یا (هغه په دې اندازه وي چي) هیڅ یوه سولاغه له پچي څخه نه خالي کیږي.

**لغات**: ﴿البعر﴾ اسم جنس دی: پچي (د ښاروبو کلک ګردي غایطه مواد)، واحد بَعْرَةٌ: یوه پچه. ﴿الروث﴾ خوشایي، ﴿الخِثْيُ﴾ (بکسر الخاء) او الخُثْيُ (بضم الخاء): خرشینه. (په اصل کي "رَوْث" د ذوات الحافر یعني د آس، خره او داسي نورو فضلې ته وایي چي هغه ته په پښتو کي خرشینه وایي او "خِثْي" د غوا او فیل فضلې ته وایي، خو د ضعیف بنده (شارح) د تحقیق مطابق په اصطلاحي عربي کي د دې زیاترو ښاروبو د فضلې لپاره د "رَوْث" لفظ استعمالیږي او د "خِثْي" لفظ اوس چنداني نه استعمالیږي. لکه څرنګه چي په اصطلاحي پښتو کي د دې زیاترو لپاره د "خوشایو" لفظ استعمالیږي، والله أعلم).

**تشریح**: که پچي، خوشایي او خرشینه په لږ مقدار څاه ته ولوېږي، نو څاه نه مرداریږي، برابره ده څاه په آبادۍ کي وي او که په دښت او صحرا کي وي او برابره ده د څاه چاپېره دېوال پور ته وي او که کښته وي، لږ (قلیل) مقدار شرعاً معاف کړی سوی دی، ها! کوم مقدار چي خلګ زیات (کثیر) وګڼي، یا دومره وي چي په هره سولاغه کي پچه راخیږي، نو په دې دواړو صورتونو کي څاه مرداریږي. (مراقی الفلاح ص: ۲۲)



**مسئله (۱)**: که په لږو اوبو (ماء قلیل) کي د پسه وغیره وچه یا لنده پچه ولوېږي، نو اوبه نا پاکه کیږي. (شامي ج: ۱، ص: ۲۰۴، ط: مصري)

## د موږک د پچو حکم

**مسئله (۲)**: که په پوخ سوي خوراک مثلاً په وریجو یا کتغ کي د موږک لږ پچي وموندل سي، نو څه حرج نسته، هغه دي څني لیري کړل سي او خوراک دي وخوړل سي او که هغه پچي خوړیني

سوي او سره تللي وي، نو تر څو چي د هغوی رنګ یا خوند په خوراک کي ښکاره سوی نه وي، تر هغه وخته خوراک ته ناپاک او مردار نه سي ویل کېدلای، خو کله چي په خوراک کي د هغوی اثرات [illegible] بوی یې ښکاره سي، نو بیا به خوراک ناپاکه شمېرل کېږي. (درمختار ج:۶. ص:۷۳۲. [illegible] شتی، ط، کراچي)

**مسئله (۳)**: که داوړه کولو په وخت کي د غنمو یا اوربشو سره د موږک لړ پچي میده سي، نو اوړه نه مرداربږي، لېکن که پچي په زیات مقدار سره وي، په دې توګه چي کله میده سي نو په اوړو کي د هغوی رنګ یا خوند ښکاره سي، نو اوړه مرداربږي. (کتاب المسائل ص:۱۰۰، حلبی کبیر ص:۱۵۰)

**مسئله (۴)**: که د لوښلو پر مهال د شیدو لوښي ته پچه ولوېږي او بیا هغه سملستي را وکښل سي، نو شیدې نه مرداربږي. (شامي ج:۱، ص:۲۰۴، ط: مصري، کتاب المسائل ص:۹۷)



## د مرغیو د ګندګی (فضلې) حکم

﴿۲۹﴾ وَلَا يَفْسُدُ الْمَاءُ او نه فاسدیږي (مرداربږي) اوبه بِخُرْءِ حَمَامٍ وَعُصْفُوْرٍ په ګندګۍ دکوترې او چوغکې سره.

**لغات**: ﴿خُرْءٌ﴾ ګندګي (پېخاله)، فضله، غایطه مواد.

**تشریح**: که د کوترې یا چوغکې ګندګي څاه یا تالاب ته ولوېږي، نو په دې سره هغه نه مرداربږي او د یو مقدار اوبو را ایستل نه لازمېږي، تر هغه وخته چي د ګندګی اثر پکښي غالب نه سي. (در مختار ج:۱. ص:۲۰۳)



## د ماهي او د اوبو د حیوان حکم

﴿۳۰﴾ وَلَا بِمَوْتِ مَا لَا دَمَ لَهُ فِيْهِ او نه (مرداربږي اوبه) د داسي حیوان په مرګ سره چي په هغه کي وینه نه وي كَسَمَكٍ وَضِفْدَعٍ وَحَيَوَانِ الْمَاءِ لکه ماهي او چونګښه او داوبو حیوان (کوم چي په اوبو کي اوسیږي) وَبَقٍّ وَذُبَابٍ وَزُنْبُوْرٍ وَعَقْرَبٍ او (لکه) منګوړ او مچ او غالبوزه او لړم.

**لغات**: ﴿دَم﴾ مراد څني بهېدونکې وینه ده، نه مطلقه وینه، او د ماهي وینه حقیقي وینه نه ده؛ حقیقي وینه چي لمر ته واچول سي نو هغه توره ګرځي (توریږي)، حالانکي د ماهي وینه داسي نه ده.

﴿ضِفدع﴾ چونګښه، دلته دریابي (داوبو) چونګښه مراد ده، نه دښتي (دوچې) چونګښه، ځکه د دښتي غټي چونګښي وینه بهېدونکې وي (لهذا که دښتي غټه چونګښه په څاه کي مرداره سي نو اوبه مرداربږي. خو په

کوچنی چونګښه کې یې بهیدونکې وینه نه وي، لهذا دهغې په مرګ سره اوبه نه مرداریږي) او د دوی تر مینځ فرق دا دی چې د دریابي چونګښې د ګوتو په مینځ کې پرده وي او د دښتي چونګښې د ګوتو په مینځ کې پرده نه وي. ﴿حیوان ماء﴾ داوبو حیوان، لکه چونګانړ، کیشپ، دریابي مار او داسې نور. ﴿بَقّ﴾ منګوړ (منګوره) چې په پښتو قاموس کې خسک او کتمل هم ورته ویل سوي دي. ﴿ذُباب﴾ اسم جنس دی، واحد یې ذُبَابَةٌ دی: مچ. ﴿زُنبور﴾ (دراء په ضمه سره): غالبوزه، غومبسه، جمع: زَنَابِیر، غالبوزه څو قسمه ده: ① ژړه غالبوزه ② سره تنده غالبوزه ③ مچمچی، اولړمان هم قسما قسم دي خو په یوه قسم هم اوبه نه مرداریږي.

**تشریح:** په دې عبارت کې څو مسئلې یو ځای بیان سوي دي، تفصیل یې دا دی چې د کوم څاروي پیدایښت او استوګنه په اوبو کې وي، لکه ماهی، دریابي چونګښه، چونګانړ او داسې نور، نو د دوی په مرګ سره اوبه نه مرداریږي، او پر اُوبو د پاسه اوسېدونکي مرغان لکه داوبو هیلۍ او داسې نور که په اوبو کې مړه سي او اوبه په لږ مقدار سره (ماء قلیل) وي، نو د دوی په مرګ سره اوبه مرداریږي.

او که په اوبو کې داسې حیوان او خزنده مړه سي چې په هغه کې بهیدونکې وینه نه وي، نو اوبه نه مرداریږي، لکه غوماشه، مچ، لړم او داسې نور.

**فایده:** دلړم څخه ځان ساتنه: ابوهریره ﷺ له نبي کریم ﷺ څخه روایت کوي چې کوم څوک سهار دغه کلمات ووایي، نو ترماښامه پوري به دلړم چیچلو له ضرر څخه خوندي وي او که ماښام یې ووایي، نو ترسهاره پوري به ځني خوندي وي، هغه کلمات دا دي: أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ. اوهمدغه مسنونه طریقه ده دلړم څخه دځان ساتنې په هکله. (سنن ابن ماجة، باب رقية الحية والعقرب، حديث نمبر: ۳۵۱۸ - وفي الزوائد: اسناده صحيح، رجاله ثقات)

## که انسان یا څاروی څاه ته ولوېږي او ژوندي را ووځي، نو څه حکم دی؟

| |
|---|
| ﴿۳۱﴾ وَلَا بِوُقُوعِ آدَمِيٍّ اونه (مرداریږي اوبه) په ورلوېدو سره دانسان وَمَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ او (په ورلوېدو سره) دهغه حیوان چې غوښې یې خوړل کیږي إِذَا خَرَجَ حَيًّا کله چې (له څاه څخه) ژوندی راووځي وَلَمْ يَكُنْ عَلَى بَدَنِهِ نَجَاسَةٌ او پربدن یې هیڅ نجاست نه وي. |

**تشریح:** که پاک انسان چې پر اندامو یې هیڅ نجاست (مرداري) نه وي، یا داسې حیوان چې غوښه یې حلاله وي څاه ته ولوېږي او بېرته ژوندی را ووځي، نو اوبه نه مرداریږي، او که ناپاکه انسان د څاه اوبو ته ور ننه سي، یا داسې کس ور ننه سي چې پر اندامو یې نجاست وي، مثلاً هغه صرف په ببرویا

لوتو سره استنجاء کړې وي او ځان يې پرېولی نه وي، نو د هغه په وجه ټوله اوبه مردارېږي، لهذا د تولو اوبو را ايستل ضروري دي. (كتاب المسائل ص:١٢٢، المحيط البرهاني ج:١، ص:٢٥٥)

## که غاتره، خر او داسې نور څاه ته ولوېږي او ژوندي را ووځي، نو څه حکم دی؟

﴿٣٢﴾ وَلَا بِوُقُوعِ بَغْلٍ وَحِمَارٍ او نه (مردارېږي څاه) په ورلوېدو سره د غاترې او خره وَسِبَاعِ طَيْرٍ وَوَحْشٍ او (په ورلوېدو سره) د درنده مرغانو او وحشي حيوانانو فِي الصَّحِيحِ د صحيح قول مطابق وَإِنْ وَصَلَ لُعَابُ الْوَاقِعِ إِلَى الْمَاءِ او که ورسيږي د ورلوېدونکي حيوان ناړې (لاړې) و اوبو ته أَخَذَ حُكْمَهُ نو اخلي (د څاه اوبه) د هغه ناړو حکم (يا په بله وينا د څاه اوبه د هغه حيوان د ناړو په حکم سره کيږي يعني کوم حکم چې د حيوان د ناړو دی، هغه حکم د دې اوبو هم دی).

**لغات:** ﴿بَغْل﴾ غاتره (خچره)، ﴿سباع الطير﴾ درنده (ځيرونکي) مرغان (ښکار کونکي مرغان)، ﴿وَحْش﴾ جمع د وَحْشِيٌّ ده او د وَحْش جمع بيا وُحُوش ده: وحشي (ترهېدونکي) حيوان، ځنګلي حيوان. جمع وَحْشِيٌّ وَهُوَ مَا لَا يَسْتَأْنِس مِن دَوَاب الْبرّ (يذكر وَيُؤَنث) جمع: وحوش و وحشان، وَيُقَال: حمار وَحْش وحمار وَحْشِيّ (معجم الوسيط). ﴿أَخَذَ﴾ فاعل يې ضمير محذوف دی کوم چې الماء ته راجع دی.

**تشريح:** که غاتره يا خر يا يو درنده (ځيرونکي) مرغه لکه شاهين وغيره يا يو وحشي حيوان لکه بيزو وغيره څاه ته ولوېږي او بيرته ژوندي را ووځي او پر بدن يې هيڅ نجاست نه وي او نه يې خوله اوبو ته رسېدلې وي، نو د صحيح قول مطابق هغه اوبه نه ناپاکه کيږي؛ ځکه چې د دې شيانو بدن پاک دی او په مرګ سره نجس کيږي، او که دا يقيني سي چې د هغه خوله او ناړې (لاړې) اوبو ته رسېدلي دي، نو اوس اوبه د هغه د ناړو (لاړو) په حکم سره ګرځي، لهذا اوس به د هغه د ناړو اعتبار کول کيږي چې د هغه مطابق به د اوبو د راکښلو يا نه راکښلو حکم کول کيږي، نو که د هغه ناړې پاکې وي لکه د انسان او د هغه حيوانانو ناړې چې غوښه يې حلاله وي، نو اوبه پاکې دي، او که ناړې يې ناپاکه وي لکه د درندګانو ناړې، نو اوبه هم ناپاکه کيږي، او که ناړې يې مکروه وي لکه د ښکاري مرغانو، نو اوبه هم مکروه کيږي، او که ناړې يې مشکوکه وي لکه د خره او غاترې، نو اوبه هم مشکوکه کيږي.

## که مردار سوی حيوان په اوبو کې وپرسيږي نو څه حکم دی؟

﴿٣٣﴾ وَوُجُودُ حَيَوَانٍ مَيِّتٍ فِيهَا او په څاه کې د مړه (مردار سوي) حيوان موجودېدل يُنَجِّسُهَا مِنْ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ هغه څاه مرداروي له يوې ورځې او يوې شپې څخه (يعني که په څاه کې مړ حيوان وموندل سي او د لوېدلو وخت يې معلوم نه وي، نو هغه څاه به له يوې ورځې او يوې شپې څخه ناپاک شمېرل کيږي)

وَ مُنْتَفِخ مِنْ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ وَ لَيَالِيْهَا او (په څاه کي) د پړسېدلي (شوړېدلي) حيوان (موجودېدل څاه مرداروي) له دريو ورځو او دريو شپو څخه إِنْ لَمْ يُعْلَمْ وَقْتُ وُقُوْعِهِ که چيري د هغه د ورلوېدلو وخت معلوم نه وي.

**تشريح**: که يو مردار سوی حيوان چي په هغه کي بهيدونکې وينه وي په څاه کي وموندل سي او د هغه د لوېدلو وخت خلګو ته معلوم وي، نو له کومه وخته چي هغه ور لوېدلی وي، له هغه وخته به اوبه ناپاکه شمېرل کيږي او که د ور لوېدلو صحيح وخت يې معلوم نه کړی سي او هغه حيوان تر اوسه پړسېدلی او شوړېدلی نه وي، نو له يوې ورځي او شپې څخه مخکي به د هغه څاه د ناپاکه کېدلو حکم کول کيږي، لهذا احتياطاً دي د يوې ورځي او يوې شپې لمونځونه را وګرځول سي يعني کومو خلګو چي د دې څاه په اوبو سره اودسونه کړي وي، همدارنګه کوم شی چي په دې اوبو سره پرېولل سوی وي، هغه دي پرېولل سي.

او که چيري هغه حيوان پړسېدلی او شوړېدلی وي، نو احتياطاً به د دريو ورځو او دريو شپو لمونځونه راګرځول کيږي او کوم شی چي په دې اوبو سره پرېولل سوی وي، هغه به پرېولل کيږي. دا ټوله تفصيل د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی.

او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په مذکوره صورت کي (يعني کله چي د حيوان د ور لوېدلو وخت معلوم نه وي نو) حکم دا دی چي له کوم وخت څخه چي خلګ د حيوان په ورلوېدلو خبر سوي وي. له هماغه وخت څخه به د اوبو د مردار والي حکم کيږي، نه تر هغه مخکي، لهذا تر هغه مخکي هيڅ نه لازميږي، نه دي لمونځونه راګرځوي او نه دي هغه شيان پرېولي کوم چي يې د مذکوره څاه په اوبو سره پرېولي وي.



## که د شيانو له پرېوللو څخه وروسته معلومه سي چي تالاب مردار دی؟

**مسئله**: که د تالاب په اوبو سره کالي يا لوښي پرېولل سي يا په خوراک کي وکارول سي، وروسته معلومه سي چي تالاب ته نجاست يا نجس شی لوېدلی دی، نو پر دغو کاليو، لوښو او خوراک به د ناپاکۍ حکم نه کول کيږي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په قول باندي په عمل کولو سره، لهذا دې کاليو اغوستل او د خوراک خوړل به صحيح وي. (کتاب المسائل ص، ۱۲۰، حاشيه شرح الوقاية)



# فَصْلٌ فِي الاِسْتِنْجَاءِ

## (۵) فصل په (بیان د احکامو د) استنجاء کې دی

**تشریح**: د لغت په اعتبار سره لفظ د استنجاء له "نَجْوٌ" څخه اخیستل سوی دی چې د هغه معنی ده: "له نس څخه راوتلی نجاست"، نو د استنجاء لغوي معنیٰ ده: د دې نجاست (یعني د نَجْو) ځای مسح کول یا پرېولل او نجاست یې لیرې کول او صفا کول، او د استنجاء اصطلاحي معنیٰ ده: "د متیازو یا غائطو له ځای څخه چې کوم نجاست راووځي هغه له مخرج څخه لیرې کول او صفا کول، د اوبو په ذریعه سره وي او که د لوټي یا ډبري او داسې نورو په ذریعه سره وي". (طحطاوي ص: ۲۴)

### استبراء ضروري ده

﴿۳۳﴾ يَلْزَمُ الرَّجُلَ پر سړي لازم دي (له متیازو کولو څخه وروسته) الْاِسْتِبْرَاءُ حَتّٰى يَزُوْلَ أَثَرُ الْبَوْلِ وَيَطْمَئِنَّ قَلْبُهٗ عَلٰى حَسَبِ عَادَتِهٖ استبراء (صفایي حاصلول) تر دې چې د متیازو اثر لیرې سي او د خپل عادت مطابق د ده زړه مطمئن سي (چې څاڅکي ودرېدل) إِمَّا بِالْمَشْيِ أَوِ التَّنَحْنُحِ أَوِ الْاِضْطِجَاعِ أَوْ غَيْرِهٖ (یعني) یا په تګ سره (د ده زړه مطمئن سي) یا په غاړه تازه کولو سره یا په پرېوتلو (او ځنګ وهلو) سره وَلَا يَجُوْزُ لَهُ الشُّرُوْعُ فِي الْوُضُوْءِ حَتّٰى يَطْمَئِنَّ بِزَوَالِ رَشْحِ الْبَوْلِ او د ده لپاره او دس شروع کول جائز نه دي تر دې چې د متیازو د څاڅکو د ختمېدلو (درېدلو) په باره کې مطمئن سي.

**لغات**: ﴿الاستبراء﴾ د دې وضاحت به په تشریح کې وسي. ﴿المَشي﴾ د ضرب د باب مصدر دی: تګ کول، پیاده (په پښو) تلل. ﴿التَّنَحْنُح﴾ د تَفَعْلُل د باب مصدر دی: د دې لفظ دوې معناوې نقل سوي دي، ① داح اح یعني د توخي آواز کول (توخل اتوخېدل)، ② غاړه تازه کول (معجم لغة الفقهاء) ﴿اضطجاع﴾ د افتعال د باب مصدر دی (وضع الجنب على الأرض): پر بغل پرېوتل، بغل پر ځمکه اېښودل، یا په بله وینا د بغل پر طرف ځنګ وهل. ﴿رَشح﴾ د فتح د باب مصدر دی: څڅېدل. الرَّشْح: مَا يَرْشَح (کوم څه چې راڅڅېږي) یعني څاڅکي.

**تشريح**: تر متيازو وروسته د سري لپاره استبراء ضروري ده يعني په دې باره کي اطمينان حاصلېدل ضروري دي چي اوس متيازي وچي سوې او په پوره توګه يې څاڅکي ودرېدل. د دغه اطمينان په باره کي د خلکو عادتونه بېلا بېل دي چي بعضو ته په يوه عادت سره دا اطمينان حاصلېږي او بعضو ته بيا په بل سره اطمينان حاصلېږي او هغه دا دي: ① تر متيازو وروسته څو قدمه تلل (بعضي علماؤ دې مقدار څلوېښت قدمه ټاکلی دی. خو صحيح دا ده چي په هر څو قدمونو سره اطمينان ورته حاصل سي. هغه کافي دي)، ② غاړه تازه کول (يا ټوخل)، ③ پر څنګ پرېوتل، ④ پر ځمکه پښه وهل، ⑤ ذکر په نرمي سره کښېکښل، ⑥ تر ډېر وخته پوري کښېنستل تر دې چي څاڅکي په يقيني توګه قطع سي، ⑦وروں په ورون باندي ايښودل او کښېکښل.

خلاصه دا چي تر يقيني اطمينان وروسته دې استنجاء وکړی سي، داستبراء پرېښودل ګناه کبيره او دا داستبراء حکم د سړيو لپاره دی، د ښځو لپاره تر متيازو وروسته د استبراء ضرورت نسته (ځکه د ښځي منفذ په قدرتي توګه وسيع وي). ښځه دې تر فارغېدلو وروسته څه ګړی توقف کوي بيا دې استنجاء وهي.

ولايجوز له الشروع إلخ: يعني تر څو چي د متيازو د څاڅکو دبالکل ختمېدلو په هکله مطمئن نه سي، تر هغه وخته پوري په اودس شروع کول جائز نه دي؛ ځکه محض د لوند والي په ښکاره کېدو سره هم اودس ماتېږي. (شفاء الارواح)

**فايده**: فقهاء دلته درې لفظونه استعمالوي؛ ① استنجاء، ② استنقاء، ③ استبراء. استنجاء دا ده چي نجاست (ناپاکي) په اوبو يا په ډبره او لوټه سره پاک کړل سي، او استنقاء دا ده چي سړی د استنجاء کولو په وخت کي ډبره يا لوټه پر مخرج ښه ومږي يا اوبه پر واچوي او په ګوته سره يې ښه ومږي چي بوی يې ختم سي همدارنګه ذکر په لاس کښېکاږي او نڅوړي يې کړي تر دې چي ظن غالب ورته حاصل سي چي اوس نو څاڅکي ختم سوه، او داستبراء وضاحت خو وسو چي تر متيازو وروسته داسي کړنه چي د متيازو پاته څاڅکي ليري سي او په پوره توګه متيازي وچي سي. (انوار الايضاح، شفاء الارواح)



## د وسوسې مريض به څه کوي؟

**مسئله**: کوم څوک چي د متيازو د څاڅکو په باره کي په وهم او وسوسه مبتلا وي، هغه ته پکار دي چي دلستبراء د مذکوره طريقې تر اختيارولو وروسته دې خپل اندام ونڅوړي او استنجاء دې وکړي(يعني داستنجاء پر مهال دې استنقاء هم کوي)، تر دې وروسته که بيا هم د ده شک باقي پاته وي، نو په هغه دې هيڅ پروا نه کوي او تر ولاړېدو مخکي دې پر سبيلينُ د اوبو څاڅکي پاشي چي د

وسوسې په لیري کولو کې یې مرسته وکړي، بیا که څه محسوس سي، نو دهغه ته دي بالکل هیڅ توجه نه کوي. (طحطاوي ص:٢٤، عالمگیري ج:١، ص:٤٩، کتاب المسائل ص:١١٤)

## د استنجاء حکم

﴿٣٥﴾ وَالْاِسْتِنْجَاءُ سُنَّةٌ مِّنْ نَجَسٍ يَخْرُجُ مِنَ السَّبِيْلَيْنِ او استنجاء سنت ده له هغه نجاست څخه کوم چې را ووځي له دوو لارو (دمخ یا شا د لاري) څخه مَالَمْ يَتَجَاوَزِ الْمَخْرَجَ تر څو چې له مخرج څخه تېر نه سي (یعني را وتونکی نجاست د را وتلو له ځای (مخرج) څخه بغیر شاوخوا ته تېر نه سي، یا په بله وینا له مخرج څخه بغیر نور ځای ککړ نه کړي، نو استنجاء سنت ده) وَإِنْ تَجَاوَزَ وَكَانَ قَدْرَ الدِّرْهَمِ او که (له مخرج څخه) تېر سي او د درهم په اندازه وي (یعني د یوه درهم په مقدار له مخرج څخه بغیر نور ځای ککړ کړي) وَجَبَ إِزَالَتُهُ بِالْمَاءِ نو په اوبو سره د هغه لیري کول (صفا کول) لازم دي وَإِنْ زَادَ عَلَى الدِّرْهَمِ او که پر درهم زیات سي (د یوه درهم تر مقدار تېر سي) اِفْتَرَضَ غَسْلُهُ نو د هغه پرېولل فرض دي.

**تشریح**: په دې عبارت کي صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د استنجاء حکم بیان کړی دی چي استنجاء سنت ده په اوبو یا په ډبره او لوټه سره، او دا هغه وخت سنت ده کله چي تر او دس ماتولو وروسته نجاست صرف پر مخرج وي او له مخرج څخه یې تجاوز نه وي کړي، دلته د "نجس" قید لګول سوی دی ځکه که له سبیلین څخه یو پاک شی ووځي مثلاً باد، نو د هغه په وتلو سره استنجاء کول سنت نه دي، بلکي بدعت دي.

**وإن تجاوز إلخ**: او که نجاست له خپل مخرج څخه د یوه درهم په اندازه تېر سي، نو بیا د هغه پرېولل واجب دي، د ډبري او داسي نورو استعمالول کافي نه دي، ها! که نجاست له خپل مخرج څخه بالکل تېر نه سي یا له یوه درهم څخه کم تېر سي، نو د هغه د پاکوالي لپاره ډبره او لوټه وغیره استعمالول کافي دي. (طحطاوي ص:٢٥)



**د اوسني او پخواني حساب مطابق د درهم اندازه**: د درهم د تقدیر په سلسله کي له علماؤ څخه دوه روایتونه نقل سوي دي: ① یو روایت د مساحت دی، یعني د لاس د ورغوي د پلنوالي په اندازه.

مفتي رشید احمد صاحب رَحِمَهُ الله په احسن الفتاوی کي لیکلي دي چي فقهاؤ د ورغوي د پلنوالي معلومولو لپاره دا طریقه لیکلې ده، چي په ورغوري کي دي اوبه را واخیستل سي او ورغوی دي

وغوړول سي نړ په خومره ځای کي چي اوبه ودربږي، هغومره پلنوالی مراد دی او تر هغه کم نجاست معاف دی. او د پپ اېښت په اندازه سره د درهم اندازه ۱. ۱ اینچ ده (یعني تر یوه اینچ لږ غوندي زیات) یا ۷۵. ۲ سینتي میټره ده (احسن الفتاویٰ ج:۲، ص:۸۹). ② دویم روایت دا دی چي له یوه درهم څخه مراد د یوه درهم وزن دی او د یوه درهم وزن یو مثقال دی.

## د جنابت د غسل حکم

﴿۳۶﴾ وَيَفْتَرِضُ غَسْلُ مَا فِي الْمَخْرَجِ او فرض دي د هغه نجاست پرېولل کوم چي په مخرج کي دی عِنْدَ الْاِغْتِسَالِ مِنَ الْجَنَابَةِ وَالْحَيْضِ وَالنِّفَاسِ د جنابت او د حیض او نفاس د غسل کولو په وخت کي وَإِنْ كَانَ مَا فِي الْمَخْرَجِ قَلِيْلًا که څه هم هغه نجاست کوم چي په مخرج کي دی لږ وي.

**تشریح**: د جنابت په غسل کي ټوله بدن پرېولل فرض دي، که د یوه وېښته په اندازه هم څه حصه وچه پاته سي، نو غسل نه کیږي، پر همدې بناء فرمایي چي که سړی د جنابت غسل کوي یا ښځه له حیض یا نفاس څخه غسل کوي، نو کوم څه نجاست او ګندګي چي په مخرج کي وي (یا په بله ونا کوم څه ګندګي چي پر مخرج لګېدلې وي)، که څه هم کمه وي، د هغه پرېولل ضروري دي، کنې غسل نه صحیح کیږي.

## د استنجاء اقسام

﴿۳۷﴾ وَ (يَسُنُّ) أَنْ يَسْتَنْجِيَ بِحَجَرٍ مُنَقٍّ وَنَحْوِهٖ او (سنت دي) چي استنجاء وکړي په داسي ډبره سره کوم چي صفا کونکې (د نجاست لیري کونکې) وي او [یا] په داسي بل شي سره وَالْغَسْلُ بِالْمَاءِ أَحَبُّ او په اوبو سره پرېولل زیات ښه (مستحب) دي وَالْأَفْضَلُ الْجَمْعُ بَيْنَ الْمَاءِ وَالْحَجَرِ او افضل د اوبو او ډبرو (لوټو) تر مینځ جمع کول دي (یعني په اوبو او ډبره لوټه دواړو سره استنجاء کول افضل دي) فَيَمْسَحُ ثُمَّ يَغْسِلُ نو (په دې صورت کي اول) دې (یې په ډبره سره) وچ کړي بیا دې پرېولي وَيَجُوْزُ أَنْ يَقْتَصِرَ عَلَى الْمَاءِ أَوِ الْحَجَرِ او جائز دي دا (هم) چي پر اوبو اکتفا وکړي یا پر ډبره (لوټه).

**لغات**: ﴿مُنَقٍّ﴾ د تفعیل له بابه اسم فاعل دی: ښه صفا کونکی، په اصل کي مُنَقِّيٌ وو. ضمه پر یاء ثقیله وه، هغه وغورځول سوه، بیا یاء او تنوین دوه ساکنه سره جمع سوه، نو یاء هم وغورځول سوه،

مُنَقِّ سو. له مُنَقِّ څخه مراد هر داسي شی دی چي په هغه کي د صفا کولو او پاکولو صلاحيت وي. چي هغه نه زيات څېړ او تېره وي او نه زيات ښوی وي.

**تشريح**: مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چي په استنجاء کي ډبره او لوټه يا داسي شی کوم چي د هغه قائم مقام وي يعني خپله پاک وي او د نجاست ليري کولو صلاحيت لري (لکه د ګودړ ټوټه يا په اوس وخت کي تشناب کاغذ وغيره) د هغه استعمالول سنت دي، لهذا په کوم شي کي چي د پاکولو صلاحيت نه وي (لکه څېړه او تېره ډبره وغيره)، که په هغه سره استنجاء وسي، نو سنت نه اداء کيږي.

تر دې وروسته پوهېدل پکار دي په دې چي د استنجاء درې طريقې دي:

①... ډبره او اوبه سره جمع کول، يعني اول په ډبره او لوټه سره مخرج پاکول، بيا په اوبو سره پرېولل، دا تر ټولو افضله طريقه ده. لکه څرنګه چي همدا داهل قباء طريقه وه چي په قرآن کريم کي د دوی تعريف سوی دی.

②... صرف اوبه استعمالول، دا پر دويمه درجه دي په فضيلت کي.

③... صرف ډبره او لوټه استعمالول، دا هم جائز دي، په دې کي څه فضيلت نسته. کوم کس چي صرف اوبه استعمالوي، هغه ته د استبراء خيال ساتل پکار دي او وروسته تر استبراء په اوبو سره پرېولل پکار دي، که له استبراء کولو څخه بغير ذکر پرېولي او بيا وروسته قطره راووځي، نو کپړه به يې ناپاکه سي، لهذا احتياط ضروري دی.



## د تشناب کاغذ حکم

**مسئله**: کوم حکم چي د ډبري او لوټي دی، هغه حکم د تشناب کاغذ (استنجايي منديل) هم دی. ځکه تشناب کاغذ د همدې استنجاء او صفايي د غرض لپاره جوړول کيږي. (کتاب المسائل ص: ١١٢. طحطاوي ص: ٢٥ ط: مصري)



## په استنجاء کي معيّن عدد

| |
|---|
| ﴿٢٨﴾ وَالسُّنَّةُ إِنْقَاءُ الْمَحَلِ لو سنت دي د (استنجاء) ځای صفا کول وَالْعَدَدُ فِي الْأَحْجَارِ مَنْدُوبٌ او شمېر په ډبرو کي مستحب دی (چي درې ډبري به وي) لَا سُنَّةٌ مُؤَكَّدَةٌ سنت مؤکده نه دی فَيَسْتَنْجِيْ بِثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ نَدْبًا نو استنجاء دي وهي په درېو ډبرو سره د مستحب والي پر |

بناء (یعني په دریو ډبرو سره استنجاء وهل مستحب دي) إِنْ حَصَلَ التَّنْظِيفُ بِمَا دُوْنَهَا که چیري تر دریو په کمو ډبرو سره (دغه) پاکوالی حاصل سي.

**لغات:** ﴿إنقاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: صفا کول. ﴿التنظیف﴾ د تفعیل له بابه اسم مصدر دی: پاکوالی.

**تشریح:** یعني په ډبرو او لوټو سره په استنجاء کولو کي یو مسنون عدد نسته، بلکي سنت صرف د نجاست محل صفا کول او پاکول دي، تر دې چي که په یوه ډبره او لوټه سره صفایي او پاکي حاصله سي، نو سنت اداء کیږي او که په دریو ډبرو سره هم پاکي حاصله نه سي، نو سنت نه اداء کیږي، خو که له دریو ډبرو څخه په کمه پاکي حاصله سي، نو د دریو عدد پوره کول مستحب دي او که په دریو ډبرو سره پاکي حاصله نه سي او څلورمي ډبري ته ضرورت وي، نو بیا طاق عدد استعمالول مستحب دي.

## د استنجاء طریقه

﴿۳۹﴾ وَكَيْفِيَّةُ الْاِسْتِنْجَاءِ او د استنجاء طریقه دا ده أَنْ يَّمْسَحَ بِالْحَجَرِ الْأَوَّلِ مِنْ جِهَةِ الْمُقَدَّمِ إِلَى خَلْفٍ چي په اوله ډبره سره دي (د نجاست) وچول (او صفایي) وکړي د مخ له خوا څخه د شا وطرف ته (یعني اوله ډبره (لوټه) دي پر مخرج د مخ لخوا څخه د شا پر طرف بوځي (کش کړي)) وَ بِالثَّانِيْ مِنْ خَلْفٍ إِلَى قُدَّامٍ او په دویمه ډبره سره دي (وچول او پول وکړي) د شا لخوا څخه د مخ وطرف ته وَبِالثَّالِثِ مِنْ قُدَّامٍ إِلَى خَلْفٍ او په دریمه ډبره سره دي (وچول او صفایي وکړي) د مخ له خوا څخه د شا وطرف ته إِذَا كَانَتِ الْخُصْيَةُ مُدَلَّاةً کله چي خایې ځړېدلي وي (یعني دا پورتنۍ طریقه هغه وخت ده کله چي خصیتین ستني لو لاندي ځړېدلي وي) وَإِنْ كَانَتْ غَيْرَ مُدَلَّاةٍ او که خایې ځړېدلي نه وي يَبْتَدِئُ مِنْ خَلْفٍ إِلَى قُدَّامٍ نو بیا به شروع د مخ لخوا څخه د شا وطرف ته کوي (یعني لوله ډبره، لوټه به له مخ څخه د شا پر طرف کشوي) وَالْمَرْأَةُ تَبْتَدِئُ مِنْ قُدَّامٍ إِلَى خَلْفٍ او ښځه به شروع د مخ لخوا څخه د شا وطرف ته کوي خَشْيَةَ تَلْوِيْثِ فَرْجِهَا د هغې د شرمګاه د ککړېدلو له بیري څخه (ځکه که اوله ډبره د شا لخوا څخه د مخ پر طرف را کش کړي نو شرمګاه (فرج) به یې ککړ سي) ثُمَّ يَغْسِلُ يَدَهُ أَوَّلًا بِالْمَاءِ بیا دي اتر استنجاء وروسته اول خپل لاس په اوبو سره

پرېولي ثُمَّ يَدْلُكُ الْمَحَلَّ بِالْمَاءِ بِبَاطِنِ إِصْبَعٍ أَوْإِصْبَعَيْنِ بيا دي د نجاست ځاى (مقعده) په اوبو سره ومږي په مخ سره د يوې ګوتې يا دوو ګوتو أَوْ ثَلَاثٍ إِنِ احْتَاجَ يا (په مخ سره) د درېو ګوتو که چيري ضرورت وي (درېو ګوتو ته. کنې صرف په دوو ګوتو دي اکتفا وکړي) وَيُصَعِّدُ الرَّجُلُ إِصْبَعَهُ الْوُسْطَى عَلَى غَيْرِهَا فِي ابْتِدَاءِ الْإِسْتِنْجَاءِ او سړى (نارينه) دي د استنجاء په شروع کې خپل منځنۍ (مينځوى) ګوته تر نورو ګوتو لوړوي (پورته ساتي) ثُمَّ يُصَعِّدُ بِنْصَرَهُ بيا دي د ګوتمې ګوتمه (کوم چي د وُسطىٰ څنګ ته ده هم) لوړه کړي وَلَا يَقْتَصِرُ عَلَى إِصْبَعٍ وَاحِدَةٍ او صرف پر يوې ګوتې به اکتفا (بس والي) نه کوي وَالْمَرْأَةُ تُصَعِّدُ بِنْصَرَهَا وَأَوْسَطَ أَصَابِعِهَا مَعًا ابْتِدَاءً او ښځه به له ابتداء (شروع) څخه خپل د ګوتمې او منځنۍ ګوته (دواړي) يو ځاى لوړوي خَشْيَةَ حُصُوْلِ اللَّذَّةِ د خوند حاصلېدو له بيري څخه (ځکه صرف په يوې ګوتې سره استنجاء وهل د ښځې دشهوت را پارولو امکان لري) وَيُبَالِغُ فِي التَّنْظِيْفِ حَتّٰى يَقْطَعَ الرَّائِحَةَ الْكَرِيْهَةَ او په پاکوالي (د ځاى) کي دي ښه مبالغه وکړي تر دې چي بد بويي ختمه سي وَفِيْ إِرْخَاءِ الْمَقْعَدَةِ إِنْ لَمْ يَكُنْ صَائِمًا (همدارنګه مبالغه دي وکړي) د مقعدي په سستولو کي که چيري روژه دار (روژتي) نه وي فَإِذَا فَرَغَ بيا چي کله (له استنجاء څخه) فارغ سي غَسَلَ يَدَهُ ثَانِيًا نو دوېم وار دي خپل لاس پرېولي وَنَشَفَ مِقْعَدَتَهُ قَبْلَ الْقِيَامِ إِنْ كَانَ صَائِمًا او خپل مقعده دي تر ولاړېدلو مخکي وچه کړي (احتياطا) که چيري روژه دار وي (ځکه که وچه يې نه کړي نو کېداى سي چي د استنجاء باقي ماندہ اوبه په جذب سره ننس ته ولاړي سي کوم چي د روژې ماتېدلو سبب ګرځي. نو ځکه احتياطاً وچول لو ښنډل پکار دي).

**لغات:** ﴿يمسح﴾ د فتح د باب مضارع ده. د دې با څو معناوي دي: مثلاً که د دې باب په صله کي حجر اسود يا داسي بل شى ذکر سي نو معنىٰ يې ده: مسه کول او مچول. که يې په صله کي ورېـ ـتان ذکر سي نو معنىٰ يې ده رمنځول او داسي نور. لنډه دا چي د صلې په بدلون سره يې معنىٰ بدلېږي. دلته يې معنىٰ ده: نجاست وچول او ليري کول. يعني لاس يا ډبره يا داسي بل شى باندي تېرول چي د نجاست اثر ځني ولاړ سي (إمرار اليد عليه لإذهاب ما عليه من أثر) (معجم). ﴿خصية﴾ خايه (خوټه). تثنيه

خُصَيَتَان: خايې (خوټې) جمع : خُصَى. ﴿مُدَلّاةَ﴾ د تفعيل له بابه اسم فاعل دی: ځوړنده. را ځړېدلې. ﴿يُصعِدُ﴾ د تفعيل له بابه مضارع معلومه ده: خېژول. لوړول. پورته کول. ﴿إصبعٌ﴾ ګوته. دلته د ګوتو يادونه سوې ده. نو مناسبه ده چې په عربو کې د ټولو ګوتو نومان وپېژندل سي. بټې ګوتې ته په عربي کې "إبْهَام" وايي. د شهادت ګوتې ته "سَبَابَة" وايي. د هغې څنګ والا يعني مېنځوې ګوتې ته "وُسْطَى" او د هغې څنګ والا يعني د ګوتمی ګوتې ته "بِنْصَر" وايي او تر ټولو کوچنۍ يعني خچې ګوتې ته "خِنْصَر" وايي. ﴿إرخَاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: سستول او نرمول. ايله کول (ډيله کول). ﴿نشف﴾ د نصر له بابه د واحد غائب ماضي معروف صيغه ده: وچول.

تشريح: په دې عبارت کې د استنجاء طريقه بيان سوې ده چې سړی به د دُبر استنجاء څنګه کوي؟. فرمايي چې اول دې درې ډبري را واخلي. اوله ډبره دې پر مخرج د مخ له طرفه د شا وطرف ته کش کړي او بيا دې دويمه ډبره له شا څخه د مخ پر طرف را کش کړي او درېيمه ډبره دې هم د مخ له طرفه د شا پر طرف کش کړي او دا طريقه د ګرمۍ د موسم ده؛ ځکه د ګرمۍ په موسم کې عموماً خصيتين (خوټې) لاندې ځړېدلي وي. نو که په دې وخت کې اول وار ډبره له شا څخه مخ ته را کش کړل سي، نو د خصيتينو د ککړتيا خطره سته. او که د يخ او ژمي موسم وي يعني خصيتين ځړېدلي نه وي. نو بيا دې د پورتنۍ طريقې برعکس وکړي چې اوله ډبره دې پر مخرج د شا لخوا څخه د مخ پر طرف را کش کړي او دويمه ډبره دې شا ته کش کړي او درېيمه ډبره دې بيا مخ ته را کش کړي.

او ښځه به همېشه هغه طريقه اختياروي کوم چې يې سړی په ګرمۍ کې اختياروي. يعني ښځه به په هر موسم کې د مخ لخوا څخه د شا وطرف ته لاس کشوي؛ ځکه که د شا لخوا څخه مخ ته لاس راکش کړي. نو په نجاست سره د فرج د ککړتيا خطره سته.

ثم يغسل يده اولاً الخ: په ډبرو سره تر استنجاء کولو وروسته دې خپل لاس تر مړوند پوري پرېولي (دلته زياتره اخلفو د "يَدَيه" لفظ استعمال کړی دی يعني خپل دواړه لاسونه دې پرېولي). بيا دې د نجاست محل په اوبو سره ومږي او په دې مږولو کې به په اول کې يوه يا دوې ګوتې استعمال کړي. نه زياتې. که په دوو ګوتو سره ضرورت پوره نه سي، نو درېيمه ګوته دې هم استعمال کړي او له درېو څخه دې زياتې ګوتې نه استعمالوي؛ ځکه عموماً په همدې سره ضرورت پوره کيږي.

ويصعد الرجل الخ: د استنجاء په شروع کې دې مېنځوې ګوته له نورو ګوتو څخه پورته (لوړه) ساتي چې اول په هغې سره د نجاست محل پرېولي او کله چې معمولي پرېولل سي. نو بيا دې د

ګوتمی ګوته (بنصر) هم وروپورته کړي او د نجاست ځای دې په پرېولي او که ضرورت وي نو بيا دې خنصر او بيا سبابه هم ور سره ملګرې کړي او ځای دې ښه صفا کړي او فقط پر يوه ګوته دې اکتفا نه کوي چې له شروع څخه تر آخره صرف يوه ګوته استعمال کړي؛ ځکه له دې څخه مرض پيدا کيږي. (شفاء الارواح)

والمرأة تصعد إلخ: او ښځه به د استنجاء له شروع څخه بنصر او وسطی دواړې ګوتې يو ځای پورته کوي؛ ځکه د ښځې لپاره يوازې په يوې ګوتې سره د محل په پاکولو کې د لذت حاصلېدلو خطره سته.

ويبالغ في التنظيف إلخ: د مبالغه کولو مطلب دا دی چې په پرېولو کې دې پوره زياتوب وکړي تر دې چې د نجاست بوی له محل او له هغه ګوتو څخه ليرې سي چې په هغوی سره يې استنجاء کړې ده. او دا به څنګه معلومېږي چې بوی ليرې سو؟ نو د دې لپاره څه خاص عدد نه دی ټاکل سوی بلکې د پاکوالي (طهارت) يقين يا غالب ګومان حاصلېدل کافي دي، او که څوک وسواسي وي، نو د ځان لپاره دې درې ځله يا اووه ځله د پرېولو مقدار وټاکي. (شفاء الارواح)

وفي إرخاء المقعدة إلخ: استنجاء وهونکی که روژه داره (روژتي) نه وي، نو د استنجاء کولو پر مهال دې مقعده ډېره نرمه او سسته ايله (ډيله) ساتي او که روزه داره وي، نو په دې کې دې مبالغه نه کوي چې هسې نه اوبه په مقعده کې جذب سي او روزه فاسده سي.



## فَصْلٌ (فِيْمَا يَجُوْزُ بِهِ الإِسْتِنْجَاءُ وَمَا يُكْرَهُ فِعْلُهُ)

(دا) فصل (دهغه څه په بيان کي دی چي په هغه سره استنجاء کول جائز دي او هغه چي کول يې مکروه دي)

**تشريح:** په دې فصل کي مصنف رَحِمَهُ الله دا بيانوي چي په کوم څه سره استنجاء کول جائز دي او په کوم څه سره استنجاء کول مکروه دي او کوم کار د قضاء حاجت په وخت کي مکروه دی او استنجاء بايد چيري وکړل سي؟

### د استــــنجــاء په وخت کي پرده ضروري ده

﴿٢٠﴾ لَا يَجُوْزُ كَشْفُ الْعَوْرَةِ لِلْإِسْتِنْجَاءِ جائز نه دي داستنجاء لپاره عورت لڅول.

**تشريح:** داستنجاء کولو په وخت کي پرده کول ضروري دي، لهذا داستنجاء لپاره دي داسي ځای ولټول سي چي هلته د پردې پوره انتظام وي لکه بيت الخلاء، يا دلاري څخه ګوښه ځای چي د هيچا نظر پر هغه نه پرېوځي او هلته څوک نه تيرېږي، لهذا که بيت الخلاء وي يا داسي ځای وي چي د چا نظر پر هغه نه پرېوځي او څوک نه ورسره تيرېږي، نو هلته د عورت په ښکاره کولو کي څه حرج نسته. او که داسي ځای وي چي د خلکو نظر پر استنجاء کونکي پرېوځي او هلته خلک تيرېږي، نو بيا داستنجاء لپاره عورت ښکاره کول جائز نه دي؛ ځکه چي عورت ښکاره کول د خلکو مخ ته حرام دي او حرام کار کونکی فاسق دی، لهذا که په داسي صورت کي نجاست له مخرج څخه تجاوز نه وي کړی، نو په کپړه (کلوخ) کي دننه دي په ډېره وغيره سره استنجاء وکړي.

همدارنګه که څوک په خلاص ځای کي قضاء حاجت کوي، هغه دي ناستي ته نژدې يعني په ټيټه عورت لڅ کړي، چي د ليري ولاړ کس نظر د ده پر عورت نه پرېوځي، همدارنګه له ضرورت څخه تر فارغېدلو وروسته او له ولاړېدلو څخه مخکي دي سملستي عورت پټ کړي، د دې عمل فايده دا هم ده چي عورت به يې کم وخت ښکاره وي کوم چي په شريعت کي مطلوب دي.

### څومره نجاست معاف دی؟

﴿٢١﴾ وَإِنْ تَجَاوَزَتِ النَّجَاسَةُ مَخْرَجَهَا او که نجاست له خپل مخرج څخه تېر سي (تجاوز وکړي) وَزَادَ الْمُتَجَاوِزُ عَلَى قَدْرِ الدِّرْهَمِ او هغه تېر سوی نجاست تر يوه درهم زيات وي لَا

تَصِحُّ مَعَهُ الصَّلٰوةُ إِذَا وَجَدَ مَا يُزِيلُهُ نو د هغه سره لمونځ نه صحیح کیږي کله چې داسې شی ومونډي کوم چې هغه (نجاست) لیري کولای سي.

**تشریح**: د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له یوه درهم څخه کم نجاست معاف دی. د هغه د پاکوالي لپاره په ډبري او لوټي اکتفا کول جائز دي، د داسې کس لمونځ بلا کراهته صحیح کیږي او که نجاست د درهم په اندازه وي، نو د هغه پرېولل پکار دي، کنې لمونځ مکروه تحریمي کیږي او که نجاست له یوه درهم څخه زیات وي، نو پرېولل یې واجب دي، که بغیر د هغه له پرېوللو لمونځ وکړي، نو لمونځ یې نه کیږي.

مایزیله: له دې څخه مراد هر هغه پاک شی دی کوم چې نجاست صفا کولای سي او قابلِ احترام شی نه وي، لکه د خاورو لوټه، ګوډر، تشناب کاغذ او داسې نور، په نوې او سمه کپړه سره استنجاء کول مکروه دي، همدارنګه د کتابچې وغیره دلیکني په کاغذ او ورقه سره هم استنجاء کول مکروه دي.



## په کوم صورت کې بغیر له استنجاء څخه لمونځ صحیح کیږي؟

**مسئله**: که نجاست له مخرج څخه تجاوز وکړي او دا نجاست د یوه درهم له مقدار څخه زائد وي، نو په اوبو سره استنجاء کول واجب دي، بغیر له استنجاء لمونځ نه صحیح کیږي، صرف په دوو صورتونو کې بغیر له استنجاء لمونځ صحیح کیږي: ① یو دا چې اوبه یا بل بهېدونکی هیڅ پاک شی نه وي چې په هغه سره دا متجاوز نجاست لیر کړل سی، په داسې صورت کې بغیر له استنجاء لمونځ صحیح کیږي، ② او دوهم دا چې زیاته ګڼه ګوڼه وي او د استنجاء لپاره هیڅ ځای او امکان نه وي او د خلکو مخ ته له عورت لڅولو څخه بغیر استنجاء کول ممکن نه وي، نو په دې صورت کې هم بغیر له استنجاء لمونځ صحیح کیږي، داسې کس به د طهارة النجاسة په پرېښودلو کې معذوره ګڼل کیږي؛ ځکه د چا مخ ته عورت لڅول حرام کار دي. (شفاء الارواح)

## د استـنـجـاء په وخت کې د عورت پټولو یوه حیله

﴿۴۲﴾ وَيَحْتَالُ لِإِزَالَتِهِ مِنْ غَيْرِ كَشْفِ الْعَوْرَةِ او حیله دې کوي د نجاست لیري کولو لپاره له عورت لڅولو څخه بغیر عِنْدَ مَنْ يَّرَاهُ په هغه وخت کې چې څوک ورته ګوري (یعني دیو چادر کنلو په وخت کې دې په داسې حیله او تدبیر سره نجاست لیري کوي چې عورت یې لڅ نه سي).

**لغات**: ﴿یحتال﴾ د ضرب د باب مضارع ده؛ حیله کول، چل او تدبیر کول.

**تشریح**: که یو څوک د داسې صورت سره مخامخ سي چې که استنجاء وکړي نو نژدې یو کس یې ويني. نو په داسې صورت کې دې اول هغه کس ته ووايي چې پرده وکړي او سترګې پټې کړي، که هغه انکار وکړي، نو بیا دې په یو حیله او تدبیر سره نجاست لیرې چې په کپړه (کالیو) کې دننه دې په ډبره یا په تشناب کاغذ وغیره سره هغه صفا کړي، او به دې نه استعمالوي. په متن کې له عِندمن إلخ څخه مراد اجنبي سړی او اجنبیه ښځه ده، خو که خپله ښځه یې وي، بیا څه حرج نسته.

## په هډوکو او داسې نورو سره د استنجاء کولو حکم

﴿۴۳﴾ ویُکرَهُ الاِستِنجَاءُ او مکروه ده استنجاء کول (وهل) بِعَظْمٍ په هډوکي سره وَطَعَامٍ لِآدَمِيٍ أَوْ بَهِيمَةٍ او د انسان یا چارپای (حیوان) د خوراک په شي سره وَ آجُرٍ او (مکروه ده استنجاء) په پخه خښته سره وَخَزَفٍ او په کودي (کودري) سره وفَحْمٍ او په سکرو سره وَزُجَاجٍ او په ښیښه سره وجَصٍّ او په ګچو سره وَشَيْءٍ مُحْتَرَمٍ او (همدارنګه مکروه ده استنجاء) په هغه شي سره چې محترم وي (خیال یې ساتل کیږي او د احترام قابل وي) كَخِرْقَةِ دِيبَاجٍ وَقُطْنٍ لکه د ورېښمین ټوکر ټوټه او پنبه وبِالْيَدِ الْيُمْنَى إِلَّا مِنْ عُذْرٍ او (مکروه ده استنجاء) په راسته لاس سره مګر د یو عذر په وجه (او که یو عذر وي مثلاً چپه لاس کوږ سي. نو بیا په راسته لاسه بېله کراهته استنجاء کولای سي).

**لغات**: ﴿عَظْم﴾ هډوکی، جمع: عِظَام ﴿بهیمة﴾ هر چارپای بغیر له درندګانو او مرغانو څخه، جمع: بَهَائِم. ﴿خَزَفٌ﴾ دا لفظ په "زاء" سره دی، په "ذال" سره غلط دی، کودی (کودری)، د خاورین لوښي ماته سوې ټوټه، واحد: خَزَفَةٌ. خاورین لوښي ته هم وايي. ﴿فَحْم﴾ سکاره (د لرګیو وغیره سکاره)، جمع: فُحُوم و فِحَام ﴿زُجاج﴾ ښیښه (شیشه). ﴿جص﴾ ګچ (یو بول سپینه معدني مشهوره خاوره ده). ﴿دیباج﴾ خالص ورېښمي ټوکر. ﴿قُطن﴾ پنبه (پمبه)، یوه ټوټې ته یې قُطْنَةٌ وايي.

**تشریح**: په دې عبارت کې مصنف رحمه الله هغه شیان بیانوي چې په هغوی سره استنجاء کول مکروه دي. نو فرمايي چې په هډوکي سره استنجاء کول مکروه دي: ځکه چې هغه د جناتو (پېریانو) خوراک دی او نبي کریم ﷺ له دې څخه منع کړې ده. همدارنګه د انسان او چارپای په خوراک مثلاً په غوښه یا په واښو وغیره سره استنجاء کول مکروه دي؛ ځکه چې په دې کې د الله د نعمت سپکاوی

دي او د الله د نعمت ضایع کول دي، همدارنګه په پخه خښته او کودري سره؛ ځکه په دې سره پوره پاکوالي نه راځي او لاس او محل هم ککړ کیږي، همدارنګه په سکرو سره؛ ځکه چې په دې سره محل ککړ کیږي، همدارنګه په بښینه او ګچ سره؛ ځکه دا شیان محل ته زیان رسوي، همدارنګه په داسې شي سره چې هغه لره قیمت او ارزښت وي.لکه وریښمین ټوکر، پنبیې ټوکر؛ ځکه چې دا بلا وجه مال ضایع کول دي، همدارنګه بلا عذره په راسته لاس استنجاء کول مکروه دي، ها! که څه عذر وي چې په چپه لاس استنجاء نه سي کېدلای، نو بیا په راسته لاس بلا کراهته جائز دي.



**مسئله**: په راسته لاس د استنجاء کولو د کراهت حکم صرف د استنجاء سره خاص نه دی، بلکې عام دی، هیڅ وخت هم شرمګاه ته راسته لاس وروړل پکار نه دي، باید هر وخت د ضرورت پر مهال چپه لاس استعمال کړي، او دا د محاسن الاخلاق تعلیم دی، ټوله ښه کارونه لکه خوراک، څښاک، قرآن یا کتاب نیول، د دې لپاره راسته لاس کارول پکار دي، او ټوله حقیر کارونه لکه بغل یا سپوږمه(سپوخته) ګرول، په پزه یا غوږ کي ګوته اچول، پزه پاکول، او وړه یا لویه استنجاء کول، د داسې کارو لپاره چپه لاس کارول پکار دي، او دا د شریعت اسلامي ښکلنه ده چې د داسې غوره خبرو ښوونه یې کړې ده، انساني عقل دې ته نه سي رسېدلای. (تحفة الالمعی ج:۱، ص:۲۲۰)



## د قضاء حاجت او بیت الخلاء آداب

> ﴿ ۴۴ ﴾ وَيَدْخُلُ الْخَلَاءَ بِرِجْلِهِ الْيُسْرَىٰ او داخل دې سي بیت الخلاء ته په خپل چپه پښه سره (یعني بیت الخلاء ته به اول خپل چپه پښه ننه کوي) وَيَسْتَعِيذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ قَبْلَ دُخُوْلِهٖ او بیت الخلاء ته تر داخلېدلو مخکې دې له رټلي شیطان څخه پناه وغواړي (ځکه بیت الخلاء د خبث او خبائثو استوګنځی دی) وَيَجْلِسُ مُعْتَمِدًا عَلٰى يَسَارِهٖ او پر چپه پښه دې تکیه کونکی کښېني وَلَا يَتَكَلَّمُ إِلَّا لِضَرُوْرَةٍ او خبرې دې نه دي مګر د ضرورت په وجه.

**لغات**: ﴿الخَلاء﴾ مراد ځنې بیت الخلاء ده، الخَلاء خالي ځای ته وایې چې هلته هیڅوک نه وي او تنهایي وي، څرنګه چې په ټټي (خاک تلاز) کې هم تنهایي وي، نو ځکه په بیت الخلاء سره ونومول سوه.

**تشریح**: د قضاء حاجت په وخت کې د څو خبرو خیال ساتل پکار دي: ① بیت الخلاء ته په پټ سر تلل پکار دي چې خپل سر به یې پټ کړی وي او په لڅ سر دې نه ځي، ② بیت الخلاء ته له تللو

څخه مخکې دې دادعاء وايي: "اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ". د "الخبث" پر باء ضمه او سکون دواړه جائز دي، د ضمې يعني د "خُبُث" په صورت کې دا د خبيث جمع ده او مراد ځنې مذکر شياطين دي او له خبائث څخه مراد مؤنث شياطين دي، او ترجمه يې به دا وي: (اې الله! زه ستا پناه غواړم له مذکر او مؤنث شريرو جناتو څخه)، او د سکون "خُبْث" په صورت کې د دې معنی ده: ګندګي، ناپاکي، اوس به د دعاء ترجمه دا وي: (اې الله! زه ستا پناه غواړم له ګندګۍ څخه او له مذکر او مؤنث شريرو جناتو څخه) په دې صورت کې به مذکر شياطين د مؤنث شيطانينو تابع وي.

**يادونه**: د بيت الخلاء د مذکوره دعاء د اهميت په باره کې د شيخ الوظائف محمد طارق عبقري دا يوه خبره کافي ده چې "نن سبا زياتره نفسي ناروغۍ لکه بې ځايه وهم، وسواس، له اندازې زيات شهوتي خواهش او داسې نور له همدې بيت الخلاء (بيتُ الخبث والخبائث) څخه پيدا کيږي" له کوم چې څخه نبي کريم ﷺ پناه غوښتې ده او خپل اُمت ته يې د هغه لارښوونه کړې ده. لهذا بيت الخلاء ته د ننوتلو او راوتلو دعاء حتماً يادول او ويل پکار دي او بايد په خپلو بچيانو هم ياده کړل سي.

③ بيت الخلاء ته د ننوتلو پر مهال دې اول چپه پښه دننه کوي، ④ د کښېنستلو پر مهال دې پر چپه پښه تکيه او زور کوي؛ ځکه په داسې کولو سره وتونکی شی په آساني سره وځي او په فارغېدلو کې آساني راځي (او دا ځکه له آدابو څخه شمېرل سوي دي چې په دې وخت کې پر ځان زور راوستل او په تکلف او زور سره غائط کول ا د ځو مرضونو سبب ګرځي کوم چې د حکمت او سائنس بحث دی)، ⑤ بلا ضرورته دې خبرې نه کوي.

## د قضاء حاجت مکروهات

﴿۴۵﴾ وَيُكْرَهُ تَحْرِيْمًا او مکروه تحريمي دي (د استنجاء کولو په وخت کې) اسْتِقْبَالُ الْقِبْلَةِ وَاسْتِدْبَارُهَا مخامخ کېدل د قبلې وطرف ته او (يا) شا کول د قبلې وطرف ته وَلَوْ فِي الْبُنْيَانِ که څه هم په آبادۍ کې (دننه) وي وَاسْتِقْبَالُ عَيْنِ الشَّمْسِ وَالْقَمَرِ وَمَهَبِّ الرِّيحِ او (همدارنګه مکروه دي) مخامخ کېدل د لمر و تکۍ ته او سپوږمۍ ته او (مخامخ کېدل) د باد چلېدلو وطرف ته وَيُكْرَهُ أَنْ يَبُولَ أَوْ يَتَغَوَّطَ او مکروه دي دا چې متيازي (بولې) يا ګندګي (لويې بولې) وکړي فِي الْمَاءِ وَالظِّلِّ وَالْجُحْرِ وَالطَّرِيقِ وَتَحْتَ شَجَرَةٍ مُثْمِرَةٍ په اوبو او سايه او غار (سوري) لوڅاره کې او تر مېوه داره درختي لاندې وَالْبَوْلُ قَائِمًا إِلَّا مِنْ عُذْرٍ او (همدارنګه مکروه دي) په ولاړه متيازي کول مګر د يو عذر په وجه.

**لغات**: ﴿البنیان﴾ آبادي، عمارت. ﴿مَهَبّ﴾ د اسم ظرف صیغه ده: د باد (هوا) چلېدلو ځای، د باد چلېدلو ظرف. ﴿یتغوّط﴾ د تفعّل له بابه د واحد مذکر غائب مضارع معروف صیغه ده: غائط کول، لوی اودس ماتول. ﴿ظِلّ﴾ سایه، جمع: أظْلَال. ﴿جُحْر﴾ غار، د خزندلو او کوچنیو حیوانانو د اوسېدلو غار. (معجم الوسیط)

**تشریح**: ① د استنجاء کولو پر مهال قبلې ته مخ یا شا کول مکروه تحریمي دي، برابره ده استنجاء کونکی په خلاص ځای کې کښیني او که په بیت الخلاء وغیره کې کښېني؛ ځکه په حدیث شریف کې له دې څخه منع سوې ده، او که د بیت الخلاء "قدم ځای" د قبلې وطرف ته جوړ سوي وي او مجبوري وي، نو څومره چې ممکنه وي مخ کږځول پکار دي، تر دې چې بچیان هم د قضاء حاجت لپاره د قبلې پر طرف نه کښېنول پکار دي. ② همدارنګه په داسې ځای کې استنجاء کول چې لمر یا سپوږمۍ د ده مخ ته وي، مکروه دي، او که په بند ځای کې د لمر یا سپوږمۍ استقبال راځي او هغوی نه لیدل کیږي، نو بیا مکروه نه دي، دلته د استقبال قید لګول سوی دی، له دې څخه معلومه سوه چې د لمر یا سپوږمۍ وطرف ته شا کول مکروه نه دي. ③ د هوا (باد) وطرف ته مخ کول مکروه دي؛ ځکه په دې صورت کې به ګندګي د ده پر طرف راسي او دئ به ناپاکه کړي. ④ په روانو یا ولاړو اوبو کې یا د یو حیوان په غار کې قضاء حاجت (تشي یا ډکي متیازي) کول مکروه دي، په دې کې څه تفصیل دی: په ولاړو لږو اوبو کې حرام دي، په ولاړو ډېرو اوبو کې مکروه تحریمي دی او په روانو (جاري) اوبو کې مکروه تنزیهي دی (عمدة الفقه). ⑤ په کومه سایه کې چې خلک کښېني، هلته قضاء حاجت کول. ⑥ په عامه لاره کې قضاء حاجت کول. ⑦ تر مېوه داره درختې لاندې، ځکه که مېوه را ولوېږي، نو ککړه او خرابه به سي او مال به ضایع سي. ⑦ بېله عذره په ولاړي متیازي کول، خو که یو عذر او مجبوري لري (مثلاً ملا یې درد کوي)، نو بیا په ولاړي متیاز کول مکروه نه وي. (عالمګیري ج:۱، ص:۵۰، مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص:۲۹)

﴿۳۶﴾ وَيَخْرُجُ مِنَ الْخَلَاءِ بِرِجْلِهِ الْيُمْنٰى او له بیت الخلاء څخه دي را ووځي په ښي راسته پښه سره ثُمَّ يَقُوْلُ او بیا دي (دا دعاء) ووایي اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ أَذْهَبَ عَنِّی الْأَذٰی وَعَافَانِیْ ټوله تعریفونه (خاص) هغه الله ﷻ لره دي چې ناپاکي (یا تکلیف) یې را څخه لیري کړی او عافیت (صحت) یې راکړی.

**لغات**: ﴿الأذیٰ﴾ ضرر من شی، تکلیف ور کونکی شی، والضرر الذی یصیب الانسان فی بدنه أو فی نفسه (معجم لغة الفقهاء)، مراد څني فضلات دي چې که د انسان په بدن کې پاته سي نو بدني او نفسي

تکلیف او مرض ورته رسیږي. ﴿عافاني﴾ د مفاعلې له بابه د واحد مذکر غائب صیغه ده: له آفاتو او امراضو څخه خوندي کول. صحت (روغتیا) وربخښل، یعني د غذا د مفیدو اجزاؤ په باقي پرېښوولو سره یې ما ته صحت وبخښی چې که د فضلاتو سره هغه خاص اجزاء هم وتلي وای، نو د هلاکت خطره وه. (مراقی الفلاح ص:۳۱)

**تشریح**: مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چې له بیت الخلاء څخه د راوتلو په وخت کې دې اول راسته پښه راباسي او مذکوره دعاء دې وايي "اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ أَذْهَبَ عَنِّی الأَذٰی وَ عَافَانِیْ". یعني هغه الله ﷻ لره دې حمد او ثناء وي چې دا فضلات یې ما څخه لیرې کړه چې که هغه خارج سوي نه وای نو قسما قسم ناروغی به پیدا سوي وای او کومه غذا چې زما لپاره مفیده وه، هغه یې باقي پرېښوده او صحت (عافیت) یې ته را وبخښی. له دې دعاء څخه مخکې به نبي کریم ﷺ "غُفْرَانَكَ" هم ویل چې ای الله تعالی! بخښنه غواړم پر دې چې څومره وخت په بیت الخلاء کې تېر سو، په هغه کې مو د الله تعالیٰ ذکر نه وکړی سو. (شفاء الارواح)



# فَصْلٌ فِي الْوُضُوْءِ

(دا) فصل په (بیان د احکامو د) اوداسه کې دی

**تشریح**: مصنف رَحِمَهُ الله د استنجاء او د هغه له احکامو څخه تر فارغېدلو وروسته اودس او د هغه ملحقات بیانوي او تر دې وروسته بیا د غسل احکام بیانوي. اودس یې ځکه پر غسل مخکې کړی دی چې په قرآن کریم کې هم اول د اودس بیان شوی دی او بیا د غسل. الله تعالی فرمایلي دي: ﴿فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ﴾ المائدة:۶ او تر دېې وروسته یې فرمایلي دي ﴿وَإِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا﴾ المائدة:۶. او بله وجه یې دا ده چې د اودسه محل (یعني د اودسه اندامونه) د غسل د محل (یعني د بدن) جزء دي او جزء پر کُل مخکې وي. او درېیمه وجه دا ده چې د اودسه ضرورت د غسل په نسبت زیات پېښیږي. (حاشیه)

## د اودس فرضونه

﴿۴۷﴾ أَرْكَانُ الْوُضُوْءِ أَرْبَعَةٌ وَهِيَ فَرَائِضُهُ د اودسه رکنونه څلور دي او همدا د اودسه فرضونه دي اَلْأَوَّلُ غَسْلُ الْوَجْهِ اول د مخ پرېولل دي وَحَدُّهُ طُوْلًا مِنْ مَبْدَإِ سَطْحِ الْجَبْهَةِ إِلَى أَسْفَلِ الذَّقَنِ او د مخ حد په اوږدوالي سره د تندي د سطح د شروع کېدلو له ځایه (یا په بله وېنا د وېښتو د شنه کېدلو ځایه) تر لاندې حصې د زنې پورې دی وَحَدُّهُ عَرْضًا مَا بَيْنَ شَحْمَتَيِ الْأُذُنَيْنِ او د مخ حد په پلنوالي (بر) سره هغه (توله) حصه ده کوم چې د دواړو غوږونو تر مېنځ ده وَالثَّانِي غَسْلُ يَدَيْهِ مَعَ مِرْفَقَيْهِ او دویم فرض د خپلو دواړو لاسونو پرېولل دي د څنګلو سره وَالثَّالِثُ غَسْلُ رِجْلَيْهِ مَعَ كَعْبَيْهِ او درېیم فرض د خپلو دواړو پښو پرېولل دي د بجلکو سره وَالرَّابِعُ مَسْحُ رُبُعِ رَأْسِهِ او څلورم فرض د خپل سر په څلورمه حصه باندې مسح کول دي.

**لغات**: ﴿وضوء﴾ ① د واو په ضمه سره له وَضَاءَةٌ څخه اخیستل شوی دی چې هغه مطلق نظافت او پاکوالي ته وایي. ② د واو په فتحه سره هغه شي ته وایي چې د هغه په ذریعه پاکي حاصله کړل شي.

او د شریعت په اصطلاح کې د وضوء معنیٰ ده: په مخصوصه طریقه سره اعضاء ثلاثه پرېولل او سر مسح کول. ﴿غَسل﴾ (د غین په فتحه سره): پرېولل. ﴿حدّه﴾ د دې ضمیر الوجه ته راجع دی. جمع: حُدُوْد. او عَرضًا د طُولًا مقابل دی. ﴿سطح﴾ د هر شي ښکارنی (ظاهري) اړخ، پورتنی حصه. ﴿جبهة﴾ تندی. جمع: جِبَاهٌ. ﴿ذقن﴾ زنه. جمع: أذْقان. ﴿شحمتي﴾ تثنیه د شَحْمَةٌ ده: د دې خپله معنیٰ ده: دوازګي ټوټه. کله چې یې نسبت د اُذن (غوږ) وطرف ته وسي، نو معنیٰ یې ده: د غوږ پوڅکی، نرمی. ﴿مِرفقیه﴾ تثنیه د مِرْفَقٌ ده: څنګله. جمع: مَرَافِق. ﴿کعبیه﴾ تثنیه د کَعْبٌ ده: بجلکه، د پښې ګیټی. جمع: کُعُوبٌ و کِعَابٌ.

**تشریح**: ارکان جمع د رُکن ده، د رُکن لغوي معنیٰ ده: قوي طرف. او اصطلاحي معنیٰ یې ده: د شي هغه جزء چې شی (ماهیت) له هغه څخه جوړ سوی او پوره سوی وي. نو ارکان د شي هغه اجزاؤ ته وایي چې شی له هغوی څخه جوړ وي او په هغوی سره پوره وي. لکه اودس چې د اعضاء ثلاثه (مخ، لاسونو او پښو) له پرېوللو او د سر له مسح کولو څخه مرکب دی. نو ځکه دا د اودسه ارکان سوه او همدا ارکان د اوداسه فرائض دي. فرائض جمع د فرض ده. فرض هغه حکم دی چې په هغه کې د کمي و زیاتوب احتمال نه وي او په داسې قطعي دلیل سره ثابت وي چې په هغه کې هیڅ ډول څه شک وشبه نه وي. مصنف رَحِمَهُ الله اول د ارکان په ذکر کولو سره د هیئت ترکیبیه وطرف ته اشاره وکړه (چې اودس له همدې څلورو څخه مرکب دی) او بیا یې په فرائض سره د هغه شرعي حقیقت بیان کړی (چې د شریعت له رویه اودس په قطعي دلیل سره ثابت دی...).

نهه دا چې په دې عبارت کې یې د اودسه ارکان او د مخ حدود بیان کړي دي. د اوداسه څلور فرضونه دي: ① ټوله مخ پرېولل. ② تر څنګلو پوري دواړه لاسونه پرېولل. ③ د سر څلورمه حصه مسح کول. ④ تر بجلکو پوري دواړه پښې پرېولل.

**د مخ حدود**: وحده إلخ: په اوږدل سره د مخ حد د تندي له شروع څخه یعني چیري چې د سر د مخ والا وروښتان شنه سوي وي (یا په بله ورنا دا د تندي پر لوړ طرف چې عموماً له کومه ځایه د سر وروښتان شروع کېږي له همدې ځایه تندی او د مخ حد شروع کېږي برابره ده پر هغه ځای وروښتان وي او که نه وي الکه پک (ګنجي)). نو په اوږدل له همدې ځایه مخ شروع کېږي) د زني (ذقن) تر لاندې حصې پوري (په دې شرط چې ږیره دېره ګڼه نه وي). او په بره (پلنوالي) سره د مخ حد د یوه غوږ له نرمۍ څخه د بل غوږ تر نرمۍ پوري دی. دا د مخ حدّ او اندازه ده او د دې پرېولل فرض دي.

❀ ❀ ❀

**مسئله (۱)**: د ستر ګو ظاهري حصه پرېولل ضروري دي، همدارنګه د ستر ګو هغه حصه کوم چې د پزي سره جوخته ده (يعني د ستر ګي د کونجانو ظاهره حصه) پرېولل ضروري دي، حتی که له ستر ګي څخه چخړي را ووځي او د ستر ګي په دې ښکاره کونج کي ودرېږي او کلکي سي، يا ختي او داسي بل شی پکښي ودرېږي، نو هغه ليري کول او اوبه ور رسول ضروري دي.

## څومره اوبه بهول (بيول) فرض دي؟

**مسئله (۲)**: شرعاً د پرېوللو (غسل) مفهوم تر هغه وخته پوري نه ثابتيږي تر څو چي کم از کم د اوداسه د اندامو تر لندولو وروسته له هغوی څخه دوه څاڅکي نه وڅڅيږي، که دومره اندازه تقاطر هم نه وسي، نو د پرېوللو فرض نه ادا کيږي، مثلاً که څوک په واوره يا په يخي سره پښې او لاسونه لانده کړي او هيڅ څاڅکی نه وڅڅيږي، نو دا کافي نه دي. (در مختار مع الشامی ج:۱، ص:۱۸۷ ط: دار الکتاب، مراقی الفلاح ص: ۳۲، کتاب المسائل ص: ۱۳۲)

## د ګنو وروڅو حکم

**مسئله (۳)**: که د يو چا وروځي ګڼي وي چي لانديني څرمن (پوستکی) يې نه ښکاري بلکي وروځو پټ کړی وي، نو صرف د وروځو د پاسه اوبه بهول کافي دي، څرمن ته اوبه رسول ضروري نه دي، خو که څرمن يې ښکاري، نو بيا د پاسه اوبه بهول کافي نه دي. (شامي ج:۱، ص:۲۱۱ ط: زکريا، شامي ط، دار الکتاب ج:۱، ص:۱۹۰)

## د اودس د فرضيت سبب

﴿۲۸﴾ وَسَبَبُهُ اِسْتِبَاحَةُ مَا لَا يَحِلُّ اِلَّا بِهِ او د اوداسه (د فرضيت) سبب د هغه شيانو د اباحت (روايښت) طلب کول دي کوم چي نه حلاليږي (نه روا کيږي) مګر په اوداسه سره (يعني کوم عبادت چي بغير له اوداسه څخه روا نه دي مثلاً لمونځ او داسي نور، نو هغوی ځان ته روا کول د اوداسه د فرض کېدلو سبب او دنياوي حکم دی) وَهُوَ حُكْمُهُ الدُّنْيَوِيُّ او همدا د اوداسه دنياوي حکم دی وَحُكْمُهُ الْأُخْرَوِيُّ الثَّوَابُ فِي الْآخِرَةِ او د هغه اُخروي حکم ثواب (حاصلېدل) دي.

**لغات**: ﴿حکم﴾ الاثر المترتب علی الشیء (هغه اثر کوم چي پر يو شي مرتب سي). ﴿استباحة﴾ د استفعال د باب مصدر دی: د يو شي د روا کېدلو (جائز کېدلو) طلب کول.

**تشريح**: د اوداسه د فرض کېدلو سبب د هغه فعل د کولو اراده ده کوم چي له اوداسه څخه بغير حلال نه وي (يعني اودس هغه وخت فرض کيږي او لازميږي کله چي څوک د هغه فعل اراده وکړي کوم چي بغير له اودس څخه حلال او روا نه وي) برابره ده هغه فعل فرض وي لکه لمونځ يا فرض نه وي لکه قرآن مجيد مس کول او داسي نور، نو په اوداسه سره د دې شيانو روا کېدل او حلال کېدل دا د اودس دنياوي حکم دی چي

څوک اودس وکړي، د هغه لپاره په دنيا کي دا کارونه کول حلال سوه او په آخرت کي به د دې اوداسه په بدله کي ثواب ورته حاصل سي، دا د اوداسه اُخروي حکم دی.

## د اودس شرائط

﴿۲۹﴾ وَشَرْطُ وُجُوْبِهِ الْعَقْلُ وَالْبُلُوْغُ وَالْإِسْلَامُ او د اوداسه د واجبېدلو شرط عاقل کېدل او بالغ کېدل او مسلمان کېدل دي (يعني اودس پر هغه چا واجب او فرض دی چي عاقل، بالغ او مسلمان وي) وَقُدْرَةٌ عَلَى اسْتِعْمَالِ الْمَاءِ الْكَافِيْ او (بل شرط) قادر کېدل دي د کافي اوبو پر استعمال (يعني دومره اوبه کوم چي کافي وي) وَوُجُوْدُ الْحَدَثِ او د بې اودسيا موجودېدل دي (چي بې اودسه به وي) وَعَدَمُ الْحَيْضِ وَالنِّفَاسِ او د حيض او نفاس نشتوالي دی (چي په حيض او نفاس کي به نه وي) وَضِيْقِ الْوَقْتِ او د وخت نه تنګېدل دي (او که دا جمله پر "عدم الحيض..." عطف نه وي بلکي جلا جمله وي، نو معنىٰ يې ده: د وخت تنګېدل).

**لغات:** ﴿حَدَث﴾ بې اودسيا (بې اوسي). د فقهاؤ په اصطلاح کي هغه نجاست حکميه ته وايي چي په هغه سره اودس، غسل او تيمّم ختميږي (وړه بې اودسي او لويه بې اودسي).

**تشريح:** په دې عبارت کي د اوداسه د فرضيت شرطونه بيان سوي دي چي د اودس د فرض کېدلو لپاره دا شيان شرط دي: ① عاقل کېدل، لهذا پر لېوني اودس فرض نه دی؛ ځکه چي پر لېوني لمونځ فرض نه دی. ② بالغ کېدل، لهذا پر بچي اودس فرض نه دی. ③ مسلمان کېدل، لهذا پر کافر اودس نسته. ④ په دومره اندازه پاکو اوبو باندي قادر کېدل چي په هغه سره د اوداسه اندامونه يو، يو ځل پرېولل ممکن وي، لهذا که دومره اوبه وي لېکن اودس کوونکی د هغه پر استعمال قادر نه وي مثلاً مريض وي، يا دومره مقدار اوبه خو وي او هغه جوړ (روغ) هم وي لېکن هغه اوبه ناپاکه وي، يا اوبه هم پاکي وي لېکن دومره نه وي چي ټول اندامونه يو، يو ځل په پرېولل سي، نو په دې ټولو صورتونو کي پر هغه اودس فرض نه دی. ⑤ د حدث (بې اودسيا) موجودېدل يعني بې اودسه کېدل، لهذا که هغه اودس والا وي، نو بيا اودس ضروري نه دی. ⑥ له حيض او نفاس څخه پاکېدل، لهذا که ښځه د حيض يا نفاس په حالت کي وي، نو پر هغې اودس واجب نه دی. ⑦ د وخت نه تنګېدل، لهذا که وخت تنګ سي، نو بيا اودس واجب نه پاتېږي، مثلاً هر هغه لمونځ چي که هغه فوت سي نو قضاء يې نه ر کرځي لکه د جنازې لمونځ، د اخترونو لمونځ، لهذا که وخت تنګ وي او دا ډېره وي چي که

اودس وکړم، دالمونځ به بالکل راځخه پاته سي، نو اودس دې پرېږدي او په تیمم سره دې داسې لمونځ اداء وکړي.

**یادونه**: د "ضَيْقُ الوَقت" ترجمه اکثره شارحینو د پورته په څېر لیکلې ده یعني "وخت نه تنګېدل" چي دا پر "عدمُ الحيضِ والنفاسِ" د عطف کېدلو په وجه "عدمُ ضِيقِ الوقت" دی، خو صاحب د "شفاء الارواح" د دې ترجمه داسې کړې ده "د وخت تنګېدل" چي د لمانځه وخت به تنګ وي. یعني د وخت د داخلېدلو سره سمدستي اودس نه واجیبږي بلکي کله چي وخت تنګ سي نو بیا پر هغه اودس واجیبږي، لهذا که وخت زیات وي، نو پر هغه وجوب نسته. (شفاء الارواح ص: ۴۷)

## د اودس صحیح کېدلو شرائط

﴿۵۰﴾ وَشَرْطُ صِحَّتِهِ ثَلَاثَةٌ او د اوداسه د صحیح کېدلو شرطونه درې دي عُمُوْمُ الْبَشَرَةِ بِالْمَاءِ الطَّهُوْرِ عام کول (کښې ایستل) دي ټوله پوست په پاکو (پاکونکو) اوبو سره (یعني د اوداسه د اندامونو په ټوله ظاهري پوست او حصه باندي اوبه تېرول او لندول) وَانْقِطَاعِ مَا يُنَافِيْهِ مِنْ حَيْضٍ وَنِفَاسٍ وَحَدَثٍ او ختمېدل دي د هغه شیانو کوم چي د اوداسه منافي دي یعني حیض، نفاس او بې اودسیا وَزَوَالُ مَا يَمْنَعُ وُصُوْلَ الْمَاءِ إِلَى الْجَسَدِ كَشَمْعٍ وَشَحْمٍ او زائلېدل (نه موجودېدل) دي د هغه شیانو کوم چي بدن ته د اوبو رسېدل منع کوي لکه موم (شمع) او وازګه.

**لغات**: ﴿عموم﴾ د نصر د باب مصدر دی: عام کېدل، شاملېدل، او د دې په صله کي چي باء ذکر سي لکه دلته "بالماء"، نو معنی یې ده: (ټولو لره) عامول، (ټولو لره) شاملول. ﴿البشرة﴾ څرمن، پوست(پوستکی)، د څرمني ظاهري حصه (د انساني پوستکي بنکاره سرېېرنه برخه). ﴿شمع﴾ موم (نرمه او غوړه مشهوره ماده ده)، ﴿شحم﴾ وازګه (وازده).

**تشریح**: په دې عبارت کي یې د اوداسه د صحیح کېدلو درې (۳) شرطونه بیان کړي دي، یعني د اوداسه د صحیح کېدلو حکم به هغه وخت کیږي کله چي دا درې سره شرطونه موجود سي: ① په اوداسه کي چي د کومو اندامونو پرېولل فرض دي (یعني مخ، دواړه لاسونه تر څنګلو پوري او دواړه پښې تر

بجلکو پوري)، هغوی ته به په کامله توګه پاکي اوبه رسول کیږي یعني په پوره توګه به پرېولل کیږي. لهذا که دیوه وربښته په اندازه هم څه حصه وچه پکښې پاته سي، نو اودس نه صحیح کیږي. ② دوېم شرط دا دی چي کوم شیان د اوداسه د صحیح کېدلو منافي دي، هغوی به د اوداسه پر مهال نه وي یعني کله چي اودس کوي. په هغه وخت کي به حیض یا نفاس یا حدث نه وي لکه د متیازو قطرات به جاري نه وي: ځکه په دې شیانو سره اودس ماتیږي. لهذا تر څو چي دا شیان بند سوي نه وي، د هغه اودس نه صحیح کیږي. ③ درېیم شرط دا دی چي کوم شیان بدن ته له اوبو رسېدلو څخه مانع وي، هغوی به پر بدن لګېدلي نه وي. لکه د نوکانو رنګ کوم چي یې ښځي استعمالوي چي د هغه په لګولو سره بیا نوکانو ته اوبه نه رسیږي. لهذا د اودس کولو په وخت کي د هغه لیري کول ضروري دي. کنې پاکي نه حاصلیږي. همدارنګه د شونډانو سُورخي که سخته او کاټه وي نو د اودس لپاره د هغه صفا کول ضروري دي. همدارنګه موم، وازګه او داسي نور کوم چي بدن ته د اوبو له رسېدلو څخه مانع وي. که هغوی پر بدن لګېدلي وي، نو غسل یا اودس نه صحیح کیږي. (کتاب المسائل ص۱۳۵، درمختار مع الشامي ج:۱، ص:۱۴۳ ط: مصري)



# فَصْلٌ (فِيْ تَمَامِ أَحْكَامِ الْوُضُوْءِ)

(دا) فصل (د اوداسه د احکامو په تتمه کي) دی

**تشریح**: په دې فصل کي د اوداسه د فرائضو تتمه بیانوي.

تمام: د ضرب د باب مصدر دی: تَمَامُ الشَّيْءِ: مَا يَتِمُّ بِهِ الشَّيْءُ (په کوم څه سره چي شی پوره کیږي): یعني د شي بشپړېږه. د شي تتمه. التمام: بشپړ والی، پوره والی.

## د ګڼې ږیري او نا ګڼې (رنګړې) ږیري د پرېوللو حکم

﴿۵۱﴾ يَجِبُ غَسْلُ ظَاهِرِ اللِّحْيَةِ الْكَثَّةِ واجب دي د ګڼې ږیري ظاهري حصه پرېولل فِيْ أَصَحِّ مَا يُفْتٰى بِهٖ په هغه صحیح ترین قول کي چي په هغه باندي فتویٰ ورکول سوې ده وَيَجِبُ إِيْصَالُ الْمَاءِ إِلٰى بَشَرَةِ اللِّحْيَةِ الْخَفِيْفَةِ او د اوبو رسول واجب دي د سپکي (نا ګڼې) ږیري وڅرمنې (پوست) ته وَلَا يَجِبُ إِيْصَالُ الْمَاءِ إِلَى الْمُسْتَرْسِلِ مِنَ الشَّعْرِ عَنْ دَائِرَةِ الْوَجْهِ او واجب نه دي د اوبو رسول (د ږیري) وهغه وربښتانو ته کوم چي د مخ له دائري څخه (لاندي) ځړېدلي وي.

**لغات:** ﴿واللحیة الکثة﴾ ګڼه ږیره، جمع: لُحَی، ﴿البَشَرة﴾ (بفتح الباء والشین): دانسان د څرمنې ظاهري حصه، ظاهري پوستکی، ﴿مسترسل﴾ د استفعال له بابه د فاعل صیغه ده، استرسل الشعر: ورېښتان سیده او را ځوړند کېدل (راځړېدل)، مراد ځنې د ږیرې را ځړېدلي ورېښتان دي کوم چې لاندي سیده تللي وي، ﴿دائرة﴾ دایره، په معنیٰ سره د احاطه.

**تشریح:** ږیره دوه قسمه ده او د دواړو حکم جلا جلا دی: ① اللحیة الکثة (ګڼه ږیره): که د ږیرې ورېښتان دومره ګڼ وي چې لاندینی څرمن (پوستکی) یې نه ښکاره کیږي، نو حکم یې دا دی چې د هغې صرف ظاهري (پاسنی) حصه پرېولل فرض دي، تر ږیرې لاندي څرمنې ته اوبه رسول فرض نه دي، همدا صحیح او مفتیٰ به مذهب دی.

② اللحیة الخفیفة (سپکه ارنګړې ږیره)، که د ږیرې ورېښتان ګڼ نه وي او تر ورېښتانو لاندي څرمن لیدل کیږي. نو په دې صورت کې لاندینی څرمنې ته اوبه رسول فرض دي.

ولا یجب ایصال الخ: یعني د ږیرې کوم ورېښتان چې د مخ له دایرې او احاطې څخه وتلي یا په بله وینا لاندي تللي او ځړېدلي وي، د هغوی پرېولل یا مسح کول فرض نه دي، بلکې د هغوی صرف مسح کول سنت دي، او پرېولل د هغو ورېښتانو فرض دي کوم چې د مخ په محاذات کې راځي.

**یادونه:** په عبارت کې د "مَا نُقِلَ" په قول سره یې غیر مفتیٰ به اقوال ایستلي دي او هغه دا دي: ① د ګڼې ږیرې دریمه حصه پرېولل فرض دي، ② څلورمه حصه یې پرېولل فرض دي، ③ فقط مسح یعني لوند لاس پرې تېرول کافي دي، لیکن صحیح او مفتیٰ به قول هغه دی کوم چې په عبارت کې ذکر سو چې د ګڼې ږیرې صرف ظاهري پاسنۍ حصه پرېولل ضروري دي. (مراقی الفلاح مع الطحطاوي ص: ۳۴)

## د شونډانو ښکاره حصه پرېولل

﴿ ۵۲ ﴾ وَلَا إِلَىٰ مَا انْكَتَمَ مِنَ الشَّفَتَيْنِ عِنْدَ الِانْضِمَامِ او نه وهغه حصې ته (داوبو رسول واجب دي) کومه حصه چې د شونډانو پټیږي (د شونډانو) دیو ځای کولو (بندولو) په وخت کې.

**لغات:** ﴿انكتم﴾ د انفعال د باب ماضي معروفه ده، اِنْكَتَمَ يَنْكَتِمُ اِنْكِتَامًا: پټېدل، ﴿انضمام﴾ د انفعال د باب مصدر دی، (یو شی د بل شي) سره یو ځای کېدل، سره جوختېدل (سره بندېدل).

الانضمام: اسم مصدر دی: سره یو ځای والی.

**تشریح:** د شونډانو د بندلو په وخت کې چې د شونډانو کومه حصه ښکاره (معلومه) پاتیږي، د هغه پرېولل فرض دي او د بندولو په وخت کې چې د شونډانو کومه حصه پټیږي، د هغه پرېولل فرض نه دي، ځکه هغه د خولې د دننی حصې سره متعلق ده.

## که ګوتې سره لګېدلې وي يا نوکان اوږده وي؟

﴿۵۲﴾ وَلَوِ انْضَمَّتِ الْأَصَابِعُ او که ګوتې سره يو ځای سوې (سره مښتې) وي أَوْ طَالَ الظُّفُرُ فَغَطّٰى الْأَنْمِلَةَ يا نوک اوږد سوی وي چې د ګوتې سر يې پټ کړی وي أَوْ كَانَ فِيْهِ مَا يَمْنَعُ الْمَاءَ كَعَجِيْنٍ يا په نوک کې داسې شی وي کوم چې اوبه منع کوي لکه اوړه وَجَبَ غَسْلُ مَا تَحْتَهُ نو واجب دي د هغه حصې پرېولل کوم چې تر هغه لاندې ده (يعني تر نوک او هغه شي لاندې حصې ته اوبه رسول واجب دي).

**لغات**: ﴿انضمت﴾ د انفعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي معروفي صيغه ده: سره يو ځای کېدل، سره جوختېدل. ﴿الظفر﴾ نوک، جمع: أَظْفَار، جمع الجمع: أَظَافِيْر. ﴿غَطّٰى﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: پټول. ﴿العجين﴾ خيشته سوي اوړه، جمع: عُجُن، وچو اوړو ته "دَقِيْق" وايي.

**تشريح**: که ګوتې په څه وجه دومره سره جوختې او سره لګېدلې وي چې بغير له جلا کولو څخه اوبه خپله د هغوی مېنځ ته نه رسيږي، نو بيا د هغوی مېنځ ته اوبه رسول فرض دي، او که ګوتې په پيدايشي توګه سره مښتې وي، نو د هغوی مېنځ ته اوبه رسول فرض نه دي، همدارنګه که نوکان دومره اوږده وي چې تر هغوی لاندې د ګوتو سرونه پټ وي، نو تر هغوی لاندې اوبه رسول فرض دي او تر څو چې د ګوتو سرونو ته اوبه نه ورسول سي، تر هغه وخته پوري اودس نه صحيح کيږي، همدارنګه که داسې شی په نوکانو کې لګېدلی وي کوم چې بدن ته د اوبو له رسېدلو څخه مانع وي، نو د هغه لېرې کول او نوکان په اوبو سره لندول ضروري دي، لکه ښځه چې کله د اوړو اخښل (اغږل) کوي، نو په نوکانو کې يې اوړه لګيږي او بنديږي، نو په دې صورت کې اوړه پاکول او نوکانو ته اوبه رسول ضروري دي. (مراقي الفلاح ص:۳۵)

## د خيرو حکم

﴿۵۳﴾ وَلَا يَمْنَعُ الدَّرَنُ وَ خُرْءُ الْبَرَاغِيْثِ وَنَحْوِهَا او نه منع کوي (داوبو رسېدل ايا په بله وينا صحت د اودس ا) خيرې او د کيکو او داسې نورو (خزندو) ګندګي (مثلاً د مچانو ګندګي).

**لغات**: ﴿الدَّرَن﴾ خيره، چټلي. ﴿خُرء﴾ ګندګي، فضله، غايطه مواد. ﴿براغيث﴾ جمع د بُرْغُوْثٌ ده: کيکه، مشهوره خزنده ده.

**تشريح**: يعني خيره او د کيکي، غوماشي، مچ او داسې نورو ګندګي بدن ته د اوبو له رسېدلو څخه مانع نه دي. لهذا که د چا په نوکانو کې خيره بنده وي يا د چا پر اندامونو خيره يا د مچ، غوماشي او داسې نورو ګندګي لګېدلې وي، نو د هغه لېرې کول فرض نه دي او که په اودس سره دا شيان لېرې نه سي، نو اودس صحيح کيږي.

## تنګه ګوتمۍ وغیره ښورول

﴿۵۵﴾ وَيَجِبُ تَحْرِيكُ الْخَاتَمِ الضَّيِّقِ او واجب دي د تنګې ګوتمۍ ښورول (حرکت ورکول).

**تشریح**: که ګوتمۍ تنګه وي، نو په اوداسه کې د هغې ښورول ضروري دي چې تر هغې لاندې ګوتې ته اوبه ورسیږي. او که ګوتمۍ تنګه نه وي، نو بیا یې ښورول مستحب دي، ضروري نه دي، همدا حکم د ګړۍ (ساعت) او بنګړیو دی.

## د درمل له پاسه د اوبو تېرولو حکم

﴿۵۶﴾ وَلَوْ ضَرَّهُ غَسْلُ شُقُوقِ رِجْلَيْهِ او که نقصان کوي اودس کونکي ته د خپلو دواړو پښو د چاودو پرېولل جَازَ إِمْرَارُ الْمَاءِ عَلَى الدَّوَاءِ الَّذِي وَضَعَهُ فِيهَا نو جائز دي د اوبو تېرول پر هغه دواء کوم چې یې په چاودو کې ایښې وي.

**تشریح**: که د یو چا په پښو کې چاودې وي چې په هغه کې یې دوا اچولې وي او تر دوا لاندې یعنې چاودو ته اوبه رسول نقصان کوي، نو صرف د پاسه د اوبو په تېرولو سره د ده اودس کیږي او که پر چاودو اوبه تېرول هم نقصان کوي، نو مسح کافي ده او که له مسح څخه هم عاجزه وي، نو هغه ځای دي پرېږدي. لنډه دا چې له دې شیانو څخه کوم شی که نقصان نه کوي نو څومره قدر چې نقصان نه کوي هغه به کوي. تر دې چې که یخې اوبه نقصان کوي او ګرمې اوبه نقصان نه کوي او پر ګرمو اوبو هغه قادره وي. نو پر هغه د ګرمو اوبو استعمالول لازمیږي. (حاشیه)

## تر خرېیلو وروسته به مسح او پرېولل نه راګرځول کیږي

﴿۵۷﴾ وَلَا يُعَادُ الْمَسْحُ وَلَا الْغَسْلُ عَلَى مَوْضِعِ الشَّعْرِ بَعْدَ حَلْقِهِ او نه به راګرځول کیږي مسح او پرېولل د وربېښتانو پر ځای، د هغوی له خرېیلو څخه وروسته (یعنې که له اودس کولو څخه وروسته یو ځای وخرېیل سي. نو هغه ځای به بیرته نه پرېولل کیږي یا به نه مسح کول کیږي اګنه چې هغه د مسح ځای وي) وَلَا الْغَسْلُ بِقَصِّ ظُفُرِهِ وَشَارِبِهِ او نه (به راګرځول کیږي) پرېولل د نوکانو او برېتونو په پرېکولو سره.

**لغات**: ﴿حلق﴾ د ضرب د باب مصدر دی: خرېیل (خریل).

**تشریح**: که څوک اودس وکړي. بیا سر وخریي. یا تر غسل کولو وروسته سر وخریي که څه هم د جنابت غسل وي، نو دویم وار د سر مسح کول یا پرېولل ضروري نه دي. همدارنګه که تر اودس کولو وروسته نوکان پرېکړي، یا برېتونه پرېکړي. نو دویم وار تر نوکانو لاندې حصه پرېولل یا برېتونه پرېولل ضروري نه دي.

# فَصْلٌ فِیْ سُنَنِ الْوُضُوْءُ

(دا) فصل په (بیان د) سنتونو داوداسه کي دی

## داوداسه سنتونه

﴿۵۸﴾ یُسَنُّ فِی الْوُضُوْءِ ثَمَانِیَةَ عَشَرَشَیْئًا سنت دي په اوداسه کي اتلس (۱۸) شیان غَسْلُ الْیَدَیْنِ إِلَی الرُّسْغَیْنِ (۱) دواړه لاسونه تر مروندو پوري پرېولل.

**لغات:** ﴿ثمانیة عشر﴾ دا شمېر د حصر لپاره نه دی یعني ددې مطلب دا نه دی چي د اوداسه سنتونه صرف همدا اتلس (۱۸) دي، بلکي د طالبانو دآسانۍ لپاره یې دا فرمایلي دي، حصر مقصود نه دی.

﴿الرسغین﴾ تثنیه د رُسغ ده: مروند.

**تشریح:** له دې ځایه داوداسه سنتونه او مستحبات بیانوي، داوداسه په شروع کي دواړه لاسونه تر مروندو پوري پرېولل سنت دي، بعضي علماؤ دا حکم د "استیقاظ" په قید سره مقیّد کړی دی، یعني کله چي څوک له خوب څخه راویښ سي نو اول دي خپل لاسونه پرېولي، مصنف رَحِمَهُ الله دا مطلقاً سنت ګرځولي دي او په دې کي د خوب او علمِ خوب هیڅ قید نسته، همدا صحیح ده، لیکن له ویښېدلو څخه وروسته د دواړو لاسونو د پرېولو تأکید په حدیث کي راغلی دی.(حاشیه)



**مسئله:** که دیو چا دا یقین یا یې غالب ګومان وي چي لاس مي ناپاکه دی، نو په اوبو کي د لاس اچولو څخه مخکي د لاسونو پرېولل فرض دي، بغیر له لاس پرېولو څخه که اوبو ته لاس دننه کړي، نو اوبه مردارېږي او که د لاس د ناپاکوالي صرف احتمال وي، نو لاس پرېولل سنت مؤکده دي، که له پرېولو څخه بغیر اوبو ته لاس واچوي. لوبه نه مردارېږي او که لاس بالیقین پاک وي، نو بیا هم اوبو ته د لاس اچولو څخه مخکي پرېولل مستحب دي.

## بسم الله ویل

﴿۵۹﴾ وَالتَّسْمِیَةُ اِبْتِدَاءً او (داوداسه په شروع کي) بسم الله الرحمٰن الرحیم ویل.

**لغات:** ﴿التسمیة﴾ د تفعیل د باب مصدر دی، ددې باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه یوه معنیٰ ده: بسم الله... ویل.

**تشریح**: داوداسه په شروع کي بسم الله ويل مطلقاً سنت دي او د هر اندام د پرېولو په وخت کي بسم الله ويل مستحب دي؛ ځکه په دريو امورو سره داوداسه شروع کول سنت دي: ① نيت، ② بسم الله ويل، ③ او د لاسونو پرېولل (دنيت ذکر به وروسته راسي)، او دلته د الله په هر ذکر سره د بسم الله سنت اداء کيږي، لهذا که داودس په شروع کي د بسم الله پر ځای الله أکبر يا الحمدلله يا لا إله إلا الله ووايي، نو هم د بسم الله ويلو سنت اداء کيږي (طحطاوي)، او له اسلافو څخه دا الفاظ نقل سوي دي "بسم الله العظيم والحمدلله على دين الاسلام" او بعضي علماء فرمايي چي دا الفاظ له نبي کريم ﷺ څخه منقول دي، (حاشيه) او صاحب د "انوار الايضاح" ليکلي دي چي په بعضي احاديثو کي پر دې موقع د "بسم الله والحمدلله" ويلو فضيلت وارد سوی دی. (طبراني صغير ج:١، ص:١٣١، حديث رقم:١٩٦)



## که په شروع کي د بسم الله ويل هېر سي؟

**مسئله (١)**: که داوداسه په شروع کي له چا څخه بسم الله هېره سي، نو غوره دا ده چي کله ور په ياد سي، نو بِسْمِ اللهِ أَوَّلَهُ وَ آخِرَهُ دي ووايي. (شامي ج:١، ص:١٠٢، ط: مصري. کتاب المسائل ص:١٤٠)

## که د اوداسه ځای په بيت الخلاء کي وي نو د بسم الله ويلو حکم

**مسئله (٢)**: که داودس کولو ځای په بيت الخلاء کي وي (کوم ته چي تېج باتروم وايي)، نو هلته که نجاست مخامخ نه وي، نو داودس کولو په وخت کي په ژبه سره بسم الله ويلای سي، لېکن که نجاست ښکاره وي، نو په ژبه سره دي بسم الله نه وايي، بلکي په زړه کي دي يې وايي، همدارنګه د عورت ښکاره کېدلو په حالت کي په ژبه سره بسم الله ويل منع دي. (تحفة الألمعي ج:١، ص:٢٠٢، کتاب المسائل ص:١٤٠)

## مسواک وهل

> ﴿٦٠﴾ وَالسِّوَاكُ فِي ابْتِدَائِهِ او داوداسه په شروع کي مسواک وهل وَلَوْ بِالْإِصْبَعِ عِنْدَ فَقْدِهِ که څه هم په ګوته سره وي د مسواک د نشتوالي په وخت کي.

**لغات**: ﴿السواك﴾ د غاښونو صفا کولو لرګی، جمع: سُوُك، همدا معنیٰ د المِسْوَاك ده، جمع: مَسَاوِيْك.

**تشریح**: په صحيح حديث سره دا خبره ثابته ده چي کوم لمونځ په مسواک سره سوی وي، هغه د غير مسواک والا لمونځ څخه اويا چنده زيات فضيلت لري، په اوداسه کي د مسواک وهلو وخت له

اودس شروع کولو څخه مخکي دی چي مخکي ووهل سي (حاشیه). او په عمدة الفقه کي یې د نهایه او فتح القدیر په حواله سره لیکلي دي چي وخت یې دا دی چي د خولې پرېوللو په وخت کي ووهل سي او داکثرو عمل پر همدې قول دی؛ ځکه په دې کي صفایي ښه راځي. دواړه قولونه راجح دي او پر دواړو د عمل ګنجایش سته. غوره دا ده چي د کوم چا اورۍ (وورۍ) او غاښونه وینه کوي، هغه دي له اودس شروع کولو څخه مخکي مسواک وهي او که د چا اورۍ وینه نه کوي، هغه دي یې د خولې پرېوللو په وخت کي وهي.

که مسواک موجود نه وي، نو ضرورتاً دي ګوته یا برش وکارول سي، په دې سره هم د مسواک ثواب حاصلیږي، لېکن که مسواک موجود وي، نو بیا په مذکوره شیانو سره د سنت ثواب نه حاصلیږي. دا خبره هم یاد ساتل پکار دي چي څرنګه د سړیو لپاره مسواک وهل سنت دي، همدارنګه د ښځو لپاره هم مسواک وهل سنت دي، خو بیا هم که یوه ښځه د طبعي میلان په وجه د مسواک پر ځای بل شی لکه برش وغیره د مسواک په نیت استعمال کړي. نو ان شاء الله هغې ته د مسواک ثواب حاصلیږي.

د مسواک له آدابو څخه دا دي چي مسواک به له ترخې درختي څخه وي: ځکه په داسي مسواک سره بلغم په ښه توګه لیري کیږي او سینه صفا کیږي او خوراک ښه هضم کیږي. د هري درختي په لرګي سره مسواک وهل صحیح دي، ماسوا له انار او بانس څخه چي فقهاؤ له هغه څخه منع کړې ده؛ ځکه له هغه څخه د نقصان خطره سته. او د مسواک اوږدوالی باید په شروع کي یوه لوېشت وي، تر لوېشت به زیات نه وي او پلنوالي (پنډوالي) به یې د ګوتي په اندازه وي. همدارنګه له خوب څخه د راویښېدلو په وخت کي، یا یو مجلس او مجمع ته د تللو په وخت کي، یا د قرآن شریف یا حدیث شریف د ویلو په وخت کي هم مسواک وهل مستحب دي او د مسواک ډېر فضایل دي.

**د مسواک وهلو طریقه**: دا ده چي مسواک دي په راسته لاس داسي ونیسي چي خچې ګوته تر مسواک لاندي راسي او ښه ګوته د مسواک د سر پر برابر راسي او پاته درې ګوتي د مسواک د پاسه راسي. بیا دي اول پر پاسني غاښونو له راسته طرف څخه مسواک مږل شروع کړي کله چي پر پاسني غاښونو مسواک ومږي. بیا دي همدارنګه پر لاندیني غاښونو له راسته طرف څخه مسواک ووهي، دا یو وار سو. همداسي دي درې واره وکړي او هر وار دي مسواک له خولې څخه راباسي او هغه دي نځوړي او په نوو اوبو سره دي یې لندوي، ژبه او تالو دي هم په مسواک سره صفا کوي او مسواک دي د غاښونو پر عرض (بر) باندي وهي نه پر طول یعني مسواک دي پورته او کښته پر غاښو نه مږي؛ ځکه په دې سره اورۍ (وورۍ) زخمي کیږي او وینه راوځي. (شفاء الارواح)

## خوله او پزه پرېولل

﴿۶۱﴾ وَالْمَضْمَضَةُ ثَلَاثًا وَلَوْ بِغُرْفَةٍ او درې واره خوله پرېولل (په خوله کې اوبه اچول او رغړول) که څه هم په یوه لپه سره وي وَالِاسْتِنْشَاقُ بِثَلَاثِ غُرَفَاتٍ او پزه پرېولل (په پزه کې اوبه اچول) په دریو لپو سره.

**لغات:** ﴿الْمَضْمَضَةُ﴾ د فعللې د باب مصدر دی: په خوله کې اوبه اچول او ښورول، چې زموږ په اصطلاح "خوله پرېولل" ورته وايي، ﴿اِسْتِنْشَاق﴾ د استفعال د باب مصدر دی: په پزه اوبه کشول، يعني پزه پرېولل. ﴿غُرفة﴾ د دې لفظ له معناوو څخه یوه معنیٰ ده: په لپه کې را اخیستل سوي اوبه. یوه لپه اوبه.

**تشریح:** په اصطلاح کې د مضمضه معنیٰ ده: اوبه په ټوله خوله کرځول. مضمضه سنت مؤکده ده، که څوک بېله عذره د هغه د پرېښوولو عادت جوړ کړي، نو ګنهګاره کیږي، د مضمضه حد دا دی چې دننه ټولې خولې ته اوبه ورسیږي، اوبه په خوله کې کرځول او دباندې پاشل شرط نه دي. لېکن دباندې پاشل يې افضله دي، او "درې واره خوله پرېولل" او "هر وار نوي اوبه را اخیستل" سنت دي، دا دوه جلا، جلا سنتونه دي. نو که یو وار په لپه کې اوبه را واخلي او په هغه یوه لپه سره درې واره خوله پرېولي، نو په دې سره "د خولې پرېوللو" سنت خو اداء کیږي، لېکن "د هر وار نوي اوبه را اخیستلو" سنت نه په اداء کیږي.

والاستنشاق إلخ: د استنشاق اصطلاحي معنیٰ ده: دننه پزې ته اوبه رسول. استنشاق هم سنت مؤکده دی. پزې ته د اوبو د اچولو په وخت کې په ساه سره اوبه کشول شرط نه دي او د استنشاق سنت هغه وخت اداء کیږي. کله چې په دریو لپو سره اوبه په پزه کې واچوي. لهذا که یوه لپه اوبه را واخلي او هغه درې واره پزې ته کش کړي، نو د استنشاق سنت نه اداء کیږي. (شفاء الارواح)

﴿۶۲﴾ وَالْمُبَالَغَةُ فِي الْمَضْمَضَةِ وَالِاسْتِنْشَاقِ لِغَيْرِ الصَّائِمِ او مبالغه کول د خولې په پرېوللو او د پزې په پرېوللو کې د غیر روژتي لپاره (د روژتي لپاره دا سنت نه دي).

**لغات:** ﴿مبالغة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: په یو کار او یو شي کې زیاتوب کول. پوره کوښښ پکښې کول.

**تشریح:** په مضمضه کې د مبالغه کولو مطلب دا دی چې اوبه غرغره کړي يعني حلق (ستوني) ته اوبه ورسوي او په خوله يې کرځوي، او په استنشاق کې مبالغه کول دا دي چې د ساه په ذریعه اوبه کش کړي لو د پزې دننه نرمې حصې ته يې ورسوي (يا په بله ویناد چې اوبه کش کړي تر دې د پزې بېخ ته

وخېږي)، خو که څوک روژه داره (روژتي) وي، نو هغه دې په مضمضه او استنشاق کې مبالغه نه کوي؛ ځکه په دوی کې په مبالغه کولو سره د روژې ماتېدلو احتمال سته.

## د ږيرې خلالول

﴿۶۳﴾ وَتَخْلِيلُ اللِّحْيَةِ الْكَثَّةِ بِكَفِّ مَاءٍ مِنْ أَسْفَلِهَا او د ګڼې ږيرې خلالول په يوه ورغوي (يوه لپه) اوبو سره د لاندې خوا څخه د ږيرې (يعنې ګڼه ږيره په يوه لپه اوبو د لاندې طرف څخه خلالول، دا هم سنت دي).

**لغات**: ﴿تخليل اللحية﴾ لندې ګوتې د ږيرې د وېښتانو په مينځ ننه کول، په ږيره کې لندې ګوتې تېرول، ﴿كف﴾ ورغوي سره د ګوتو، چې اصطلاحاً موږ ورته "لاس" وايو، جمع: أَكُفٌّ و كُفُوْفٌ.

**تشريح**: د مخ له درې واره پرېولو څخه وروسته د خلال وخت دی، په ږيره کې د خلال سنت طريقه دا ده چې په راسته لاس کې اوبه را واخلي او تر زني لاندې يې په وېښتانو ورننه کړي بيا دغه لندې ګوتې د زني لخوا څخه لاندې په ږيره ننه کړي او په ږيره کې يې تيرې (راکش) کړي لوړ طرف ته يې راولي.

## د ګوتو خلالول

﴿۶۴﴾ وَتَخْلِيلُ الْأَصَابِعِ او د (ټولو) ګوتو خلالول.

**لغات**: ﴿تخليل الأصابع﴾ د ګوتو په مينځ کې اوبه تېرول.

**تشريح**: يعنې د دواړو لاسونو او دواړو پښو ټوله ګوتې خلالول هم سنت دي، د لاس په ګوتو کې د خلال طريقه دا ده چې ديوه لاس ورغوی د بل لاس پر شا د پاسه کېښېږدي او د پاسني لاس لندې ګوتې د لانديني لاس د ګوتو په مينځ کې واچوي او را کش يې کړي، او د پښې د خلال لپاره دې د چپه لاس خچې (خچنه) ګوته استعمالوي چې د پښې د ټولو ګوتو په مينځ کې دې هغه داخلوي او راکشوي او غوره دا ده چې د راسته پښې له خچې (خچني) ګوتې څخه خلال شروع کړي او د چپه پښې پر خچې ګوته يې ختم کړي. (در مختار مع الشامي ج:۱، ص:۲۱۴، ط: دار الكتاب. كتاب المسائل ص: ۱۴۲)

## درې واره اندامونه پرېولل

﴿۶۵﴾ وَتَثْلِيثُ الْغَسْلِ او پرېولل درې ځلې کول (يعنې هر اندام درې واره پرېولل).

**تشريح**: په اودس کې چې د کومو اندامونو پرېولل فرض دي لکه مخ، دواړه لاسونه او دواړه پښې، هغوی درې، درې واره پرېولل سنت دي، يو وار ټوله پرېولل فرض دي، تر هغه وروسته دوه واره نور پرېولل د صحيح مذهب مطابق سنتِ مؤکده دي، او په مسح کې زموږ په نېز تکرار نشته، نو ځکه يې

دلته "تثلیثُ المَسْح" نه دي فرمایلي، او بېله ضرورته له دریو وارو څخه زیات پرېولل پکار نه دي، لېکن که چا ته شک سي چي څو واره یې پرېولي دي، نو د زړه د اطمینان لپاره په زیاتو پرېوللو کي څه حرج نسته. (حاشیه، مراقی الفلاح مع الطحطاوي ص، ۴۰)



## د وسوسې مریض به په شک عمل نه کوي

**مسئله**: کوم څوک چي د وسوسې او وهم په مرض مبتلا وي او په بار، بار پرېوللو سره هم هغه نه مطمئن کېږي، پر هغه لازم دي چي له دریو وارو څخه زیات یې بالکل نه پرېولي او په خپل شک باندي عمل نه وکړي، کنې وسوسه اچونکی شیطان به هغه هیڅکله په آرامه نه پرېږدي لو که له دریو وارو څخه وروسته اوبه بهوي، نو دغه وسواسي کس ګناهګاره کېږي هم. (شامي ج:۱، ص:۲۱۶، ط: دار الکتاب)

## د ټوله سر مسح کول

﴿۲۶﴾ وَاسْتِيْعَابُ الرَّأْسِ بِالْمَسْحِ مَرَّةً او (سنت دي) پوره سر نیول په مسح سره یو وار ایا په

بله وینا: ټوله سر یو وار په مسح سره کښېلسل یعني په ټوله سر باندي مسح کول!

**لغات**: ﴿استیعاب﴾ په پوره توګه اخیستل، پوره نیول، راګېرول، احاطه کول. کنې ایستل، صاحب د معجم یې داسي تعریف کړی دی: الاستیعاب: الأخذ بالشئ كله. يقال استيعاب العضو بالمسح: يعني مسحه كله أجمع. (معجم لغة الفقهاء)

**تشریح**: زموږ د احنافو په نېز که څه هم د سر د مسح فرض د څلورمي حصې په مسح کولو سره اداء کېږي، لېکن د ټوله سر یو وار مسح کول سنت دي، او که یو څوک بېله عذره د دې سنت په اداء کولو کي لا پروایي کوي، نو ګنهګاره کېږي.

**د مسح طریقه**: دا ده چي دواړه لاسونه په نوو اوبو سره لانده کړي او دواړه ورغوي او ګوتي د سر د مخ پر حصه کښېږدي او د شا طرف ته یې داسي کش کړي چي پر ټوله سره لاسونه وګرځي، بیا دي په دوو ګوتو سره دواړه غوږونه مسح کړي. (طحطاوي)

او بعضي علماؤ بیا بله طریقه بیان کړې ده چي د هر لاس درې ګوتي یعني خچې (خچنه) او د هغې د څنګ والا دوې ګوتي دې سره یو ځای کړي او د سر د مخ پر طرف دي یې کښېږدي او د شا یعني د څټ وطرف ته دي یې داسي کش کړي چي دواړه ورغوي او دواړه د شهادت ګوتي او بتې ګوتي له سر څخه لیرې وي، تر دې وروسته دې دواړه ورغ.ري د شا (څټ) لخوا څخه د سر پر دواړو طرفونو کښېږدي او د مخ طرف ته دي یې را کش کړي چي د ټوله سر مسح وسي، بیا دي د شهادت په ګوتو سره د غوږو دننه حصه او په بتو ګوتو سره د غوږو دباندیني د شا حصه مسح کړي (حاشیه)

علامه طحطاوي رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دغه طريقه کي تکلف او مشقت دی او په سنت کي د دې هيڅ اصل نشته. لېکن په عمدة الفقه کي يې د منحة الخالق على البحر الرائق په حواله سره ليکلي دي چي حضرت عائشې رضی الله عنها د نبي کريم ﷺ د مسح طريقه همداسي روايت کړې ده. نو ځکه صاحب د عمدة الفقه فرمايلي دي چي دواړه طريقې صحيح دي، که په هره يوه عمل کوي. (شفاء الارواح)

## د غوږونو مسح کول

﴿۶۷﴾ وَمَسْحُ الْأُذُنَيْنِ وَلَوْبِمَاءِ الرَّأْسِ او دواړه غوږونه مسح کول که څه هم د سر (د مسح) په اوبو سره وي.

**تشريح**: د غوږو حکم د سر تابع دی. لهذا غوره داده چي په کومو اوبو سر مسح کړل سي. په هماغه سره غوږونه مسح کړل سي. بيا هم که څوک پر سر له مسح کولو څخه وروسته د غوږو لپاره جلا اوبه را واخلي نو هم صحيح دي، د غوږو مسح بالاتفاق سنت ده. لهذا په نبه توګه غوږونه مسح کول پکار دي. (کتاب المسائل ص: ۱۲۴، رافعی على الشامي ج: ۱، ص: ۱۹، ط: دار الکتاب)



**مسئله**: که پنبه (پمبه) يا داسي بل شی د غوږو په سوريو کي اېښوول سوي وي، نو را ايستل يې مستحب دي، د شهادت ګوتي د غوږو په سوريو کي اچول او بيا د غوږو په پېچونو کي ګرځول پکار دي، او په بټو ګوتو سره د غوږو د باندينی د شا حصه پوره مسح کول پکار دي يعني د غوږو له نرميو څخه بيا لوړ طرف ته تر آخره د غوږو ټوله شاتني حصه، د دې لپاره چي که په دې ځايو کي څه خيره وي، هغه صفا سي، بعضي خلک صرف غوږو ته ګوتي نږدې کړي او تش په نامه مسح وکړي، دا صحيح نه دي، په دې سره د مسح مقصد نه پوره کيږي. (تحفة الالمعی ج: ۱، ص: ۳۶۲)

﴿۶۸﴾ وَالدَّلْكُ وَالْوَلَاءُ او (د اوداسه اندامونه) مږل او پرلپسې پرېولل (يعني چي يو اندام لا وچ سوی نه وي بل اندام پرېولل، دا دواړه هم سنت دي).

﴿الدَّلْك﴾ د نصر د باب مصدر دی: مږل (مَښل). ﴿الولاء﴾ (د واو په کسره سره) د مفاعلې د باب مصدر دی، وَالَى لِوَالِي لِمُوَالَاةً وولاءً: پرلپسې کول، د کارونو په مينځ کي پرلپسې والی چي تر يوه وروسته سملستي بل کول چي په مينځ کي يې څه ځنډ رانه سي (نو مطلب دا چي اندامونه يو تر بل وروسته متصل او پرلپسې پرېولل چي په مينځ کي يې څه ځنډ رانه ولي په دې توګه چي يو لا وچ سوی نه وي. بل پرېولي). (معجم لغة الفقهاء)

**تشريح:** صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله فرمايي چې د اودس کولو پر مهال د اوداسه اندامونه په ښه توګه مږل (مښل) هم سنت دي، همدارنګه اندامونه يو تر بل وروسته متصل او پرلپسې (پرله پسې) پرېولل هم سنت دي چې د يوه اندام د لوندوالي له وچېدلو څخه مخکې بل اندام سمدستي پرېولل سي.

## نيت کول

﴿۶۹﴾ وَالنِّيَّةُ او نيت کول.

**تشريح:** له اودس کولو څخه مخکې د اوداسه نيت کول سنت مؤکده دي. د نيت لغوي معنىٰ ده: اراده کول او اصطلاحي معنىٰ يې ده: په زړه کې د يو کار کولو پخه اراده کول. د اوداسه د نيت طريقه دا ده چې اودس کونکی داسې ووايي: "زه د بې اودسۍ (بې اودسيا) د ليري کولو نيت کوم" يا داسې ووايي "زه د لمونځ قائمولو (اداء کولو) نيت کوم" يا "زه د اوداسه نيت کوم" يا "زه د الله د حکم پر ځای کولو نيت کوم"، د نيت محل زړه دی يعني په زړه کې دي دا نيت وکړي، که چيري د نيت الفاظ په ژبه سره هم اداء کړي چې د زړه سره د ژبې فعل هم جمع سي، نو مشايخو دا ښه ګڼلې ده (حاشيه). کنې له نبي کريم ﷺ او صحابه وو، تابعينو او سترو امامانو څخه د نيت الفاظ په ژبه سره اداء کول په هيڅ روايت کې نه دي وارد سوي. (طحطاوي، په حواله سره د شفاء الارواح)

## په اندامونو کې د ترتيب خيال ساتل

﴿۷۰﴾ وَالتَّرْتِيْبُ كَمَا نَصَّ اللهُ تَعَالىٰ فِي كِتَابِهٖ او ترتيب (يعني په داسې ترتيب سره د اوداسه اندامونه پرېولل) لکه څرنګه چې الله تعالىٰ په خپل کتاب کې تصريح کړې ده (يا په بله وينا: د کتاب الله د بيان سوي ترتيب موافق اودس کول).

**تشريح:** د مذکوره عبارت مطلب دا دی چې څرنګه ترتيب په قرآن کريم کې ذکر سوی دی چې اول مخ پرېولل، بيا دواړه لاسونه تر څنګلو پوري پرېولل، بيا سر مسح کول، بيا دواړه پښې تر بجلکو پرېولل، د همدغه ترتيب مطابق اودس کول هم سنت دي.

## له راسته طرف څخه شروع کول

﴿۷۱﴾ وَالْبِدَاءَةُ (الْبِدَايَةُ) بِالْمَيَامِنِ او (سنت دي) شروع کول له راسته طرفونو څخه (يعني لول راسته لاس، راسته پښه لومړۍ نور پرېولل) وَرُءُوْسِ الْأَصَابِعِ او (شروع کول په لاس پښه کې) د ګوتو له سرونو څخه وَمُقَدَّمِ الرَّأْسِ او (شروع کول د سر په مسح کې) د سر له مخکيني طرف څخه

وَمَسْحُ الرَّقَبَةِ لَا الْحُلْقُوْمِ او (صرف) غاړه مسح کول، نه ستونی (حلق) وَقِيلَ: إِنَّ الْأَرْبَعَةَ الْأَخِيرَةَ مُسْتَحَبَّةٌ او ویل سوي دي: چي دا آخري څلور مستحب دي.

**لغات:** ﴿البِدائة﴾ (البِداءة، البِدائة): په کسره دباء سره دی او په ضمه دباء سره هم یو لغت نقل سوی دی یعني البُدَائَة . او دعربو عام حضرات په خپل تلفظ کي دا لفظ په یاء سره وایي یعني البِدَايَة: دبَدَأَ يَبْدَأُ (فتح) له باب څخه اسم مصدر دی: شروع کول، مخکي والی (وړاندیتوب) کول (مصباح المنير). ﴿الميامن﴾ جمع د مَيْمَنَةٌ ده: راسته. ﴿الرقبة﴾ غاړه، جمع: رِقَاب. ﴿الحلقوم﴾ وچه مری، وچه غاړه، حلق (ستونی). صاحب دمصباح ددې وضاحت داسي کړی دی: وَالْحُلْقُومُ هُوَ الْحَلْقُ وَمِيْمُهُ زَائِدَةٌ وَالْجَمْعُ حَلَاقِيمُ بِالْيَاءِ.... قَالَ الزَّجَّاجُ: الْحُلْقُومُ بَعْدَ الْفَمِ وَهُوَ مَوْضِعُ النَّفَسِ وَفِيْهِ شُعَبٌ تَتَشَعَّبُ مِنْهُ وَهُوَ مَجْرَى الطَّعَامِ وَالشَّرَابِ. (مصباح المنير)

**تشریح:** داودسه هغه اندامونه کوم چي دوه، دوه دي او پرېولل کیږي لکه لاسونه او پښې، نو په هغوی کي راسته پر چپه مخکي کول یعني راسته لاس او راسته پښه له چپه لاس او چپه پښې څخه مخکي پرېولل سنت دي او کوم اندامونه چي دوه دي لیکن هغوی نه پرېولل کیږي بلکي مسح کیږي یعني غوږونه، نو هغه دواړه یو ځای مسح کول سنت دي، همدارنګه کوم چي یو اندام وي لکه مخ، نو هغه دي هم ټوله پر یوه ځای پرېولي، نه دا چي اول رسته طرف (راسته بارخو) پرېولي او بیا چپه طرف. او دلاسونو او پښو په پرېوللو کي دي دګوتو له طرفه شروع کوي.

ومسح الرقبة إلخ: او ددواړو لاسونو دګوتو په شا سره غاړه مسح کول سنت دي او پاته سو حلق دي نه مسح کوي؛ ځکه دا بدعت دي.

وقيل أن الأربعة إلخ: بعضي علماؤ فرمايلي دي چي له "البداءة بالميامن..." څخه تر آخره چي دلته کوم څلور سنتونه بیان سوي دي، هغه دمستحب درجه لري.



## تر اودسه وروسته په پرتوګ باندي اوبه پاشل

**مسئله:** تر اودسه وروسته په پرتوګ اوشرمګاه باندي څه اوبه پاشل (دلوبو څاڅکي پرې پاشل) ښه کار دی. چي وسوسه یې قطع سي. او داسي کول ضروري نه دي، وينبغي أن ينضح فرجه وإزاره بالماء إذا توضأ، قطعاً لمادة الوسوسة حتى إذا أحس بشيء من ذلك، أحاله على ذلك الماء، وقد روى أنس رضي الله عنه أن النبي صلى الله عليه وسلم كان ينضح إزاره بالماء إذا توضأ، وفي بعض الروايات قال: نزل عليّ جبريل عليه السلام وأمرني بذلك. (المبسوط للسرخسي)

# فَصلٌ فِی آدَابِ الوُضُوءِ

(دا) فصل په (بیان د) آدابو د اوداسه کې دی

**تشریح:** آداب جمع د أدبٌ ده. لغوي معنیٰ یې ده: ښه عادت، خوښ عادت. او په اصطلاح کې هغه کار ته وایې کوم چې نبي کریم ﷺ کله نا کله کړی وي (او په شرح هدایه کې دي: چې ادب هغه فعل دی کوم چې نبي کریم ﷺ یو وار یا دوه واره کړی وي، همېشه یې نه وي پرې کړی). حکم یې دا دی چې د هغه کونکي ته ثواب حاصلیږي او په پرېښوونکي باندې یې څه ګناه او ملامتیا نشته.

داسې قسم فعل ته مستحب وغیره هم وایې، صاحب د "عون الفتاح شرح نور الایضاح" دلته د "آداب الوضوء" ترجمه په "مستحبات الوضوء" سره کړې ده.

## د اوداسه ادبونه

﴿۴۲﴾ مِنْ آدَابِ الْوُضُوْءِ أَرْبَعَةَ عَشَرَ شَيْئًا څوارلس (۱۴) شیان د اوداسه له آدابو څخه دي

الْجُلُوْسُ فِيْ مَكَانٍ مُرْتَفِعٍ په لوړ ځای باندې کښېنستل (چې مستعملې اوبه پر جامه نه ولګیږي).

**تشریح:** د اوداسه له آدابو څخه یو دا دی چې اودس کونکی په پورته ځای باندې کښېني. د دې لپاره چې د مستعملو اوبو له څاڅکو (تطراتو) څخه خوندي وي.

## مخ پر قبله کښېنستل

﴿۴۳﴾ وَاسْتِقْبَالُ الْقِبْلَةِ او مخ د قبلې و طرف ته کول (مخ پر قبله کښېنستل).

**تشریح:** فرمایي چې مخ پر قبله اودس کول هم د اوداسه له آدابو څخه دي او د ثواب باعث دي.



**مسئله:** نن سبا په څینې کورونو کې د لاس پرېوللو او داسې نورو لپاره په دېواله کې لوېه دوشی نصب کړل سوې وي او خلک بلا عذره په هغه کې په ولاړې اودسونه کوي، دا خلاف ادب دی چې د اوداسه د آدابو خلاف دي، غوره دا ده چې د اودس کولو په وخت کې مخ پر قبله کښېني. (انوار الایضاح)

## له بل چا څخه مدد نه اخیستل

﴿۵۳﴾ وَعَدَمُ الْاِسْتِعَانَةِ بِغَيْرِهِ او مدد نه غوښتل له بل چا څخه.

**تشریح**: اودس خپله کول او له بل چا څخه مدد نه اخیستل هم د اوداسه له آدابو څخه دي، د مدد اخیستلو دوه صورتونه دي: ① یو دا چي خپله هیڅ نه کوي بلکي ټوله کار بل څوک کوي چي اوبه هم هغه ور اچوي او اندامونه هم هغه ور مږي او پرېولي، بلا عذره داسي کول مکروه دي. ② دوېم صورت دا دی چي اوبه بل څوک ور اچوي او اندامونه هغه خپله پرېولي، نو په دې کي څه حرج نسته او نه دې ته خلاف اولیٰ وایي؛ ځکه داسي نبي کریم ﷺ کړي دي، همدارنګه حضرت عثمان غني ﷺ او سترو تابعینو رحمهم الله کړي دي. (شامي ج:۱، ص: ۲۲۵، ط: دار الکتاب. طحطاوي)

## دنیاوي خبري نه کول

﴿۵۵﴾ وَعَدَمُ التَّكَلُّمِ بِكَلَامِ النَّاسِ او خبري نه کول د خلکو په خبرو سره (یعني دنیاوي خبري نه کول).

**تشریح**: د اودس کولو په دوران کي دي بلا ضرورته دنیاوي خبري هم نه کوي، که څه خبري ته ضرورت وي او دا بېره وي چي که خبره نه وکړم، هغه ضرورت به فوت سي، نو په داسي حالت کي خبره کول د ادب خلاف نه دي.

﴿۵۶﴾ وَالْجَمْعُ بَيْنَ نِيَّةِ الْقَلْبِ وَفِعْلِ اللِّسَانِ او جمع کول د زړه د نیت او د ژبي د فعل (وینا) تر مینځ (یعني په زړه او ژبه دواړو سره د اوداسه نیت کول)

**تشریح**: مخکي دا خبره ذکر سوه چي له اودس کولو څخه مخکي د اوداسه نیت کول سنت مؤکده دي او نیت د زړه ارادې ته وایي. او د زړه د نیت سره په ژبه هم د نیت الفاظ اداء کول بنه خبره ده چي د زړه سره د ژبي فعل هم جمع سي.

## د اوداسه په دوران کي دعاګاني ویل

﴿۵۷﴾ وَالدُّعَاءُ بِالْمَأْثُوْرِ او منقوله (نقل سوي) دعاګاني ویل.

**لغات**: ﴿المأثور﴾ د سمع د باب اسم مفعول دی: نقل کړل سوي (منقوله دعاګاني).

**تشریح**: د اوداسه په دوران کي هغه دعاګاني ویل کوم چي له نبي کریم ﷺ څخه نقل سوي دي. باعث د خیر او برکت دي. مثلاً د اوداسه په دوران کي دا دعاء ویل: اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِیْ ذَنْبِیْ وَوَسِّعْ لِیْ فِیْ

دَارِیْ وَبَارِكْ لِیْ فِیْمَا رَزَقْتَنِیْ (یا الله ! زما ګناه وبخښه ! او زما په کور کي زما لپاره پېراخي راوله !او کوم څه چي دي په رزق کي راکړي دي، په هغوی کي برکت واچوه !) (ترمذي وغیره). دا ډېره جامع دعاء ده (حتی د شیخ الوظائف محمد طارق عبقري په وړنا چي ځیني داسي خلک چي خپل کورونه يې نه وه او د کرایې په کورو کي به اوسېدله. هغوی د دغه دعاء په مسلسل ویلو سره د خپلو کورونو خاوندان ګرځېدلي دي).

**یادونه**: د عبارت "الدعاء بالمأثور" تشریح صاحب د شفاء الارواح داسي کړې ده: د هر اندام د پرېوللو یا مسح کولو په وخت کي منقوله دعاګاني ویل (داوداسه له آدابو څخه دي). له منقوله دعاګانو څخه مراد هغه دعاګاني دي کوم چي له نبي کریم ﷺ، له صحابه وو رضی الله عنهم او له تابعینو رحمهم الله څخه منقوله دي.



**مسئله**: زموږ د حنفي فقهي په ځیني کتابو کي د اوداسه د هر اندام لپاره جلا دعاء نقل سوې ده. آیا هغه له حدیثو یا له آثارو څخه ثبوت لري، لکه د نورالایضاح په حاشیه او په زیلعي او هندیه کي چي همداسي لیکلي دي؟.

هو! ضعیف اسناد لري له مستغفري، ابن عساکر، مسند الفردوس او ابن حبّان څخه. چي تفصیل يې داسي دی: "ویستحب الدعاء بالوارد عنده ای عند کل عضو وقد رواه ابن حبان وغیره عنه علیه الصلاة والسلام من طرق. قال محقق الشافعية الرملي: فيعمل به في فضائل الأعمال وان ذكره النووي (الدر المختار ج۱، ص:۲۲). وتعدد الطرق يبلغ الحديث الضعيف الى حد الحسن. والحجة لاتتوقف على الصحة بل الحسن كاف (هوامش مشكوة ص:۹۲)

أما الدعاء على الوضوء فلم يجئ فيه شئ عن النبي ﷺ، وقد قال الفقهاء: يستحب فيه دعوات جاءت عن السلف. (كتاب الأذكار للنووي الشافعي رحمه الله ص:۳۵. نقل منه الشلبي على الزيلعي. جلد۱ ص۷)

ثم اعلم: أنه لايلزم من كون أذكار الوضوء غير ثابتة عنه ﷺ أن تكون مكروهة اوبدعة مذمومة. بل انها مستحبة استحبها العلماء الأعلام والمشائخ الكرام. (الموضوعات الكبرى لملاعلي القاري ص۳۴۶)

## د هر اندام د پرېوللو په وخت کي بسم الله ویل

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَالتَّسْمِيَةُ عِنْدَ كُلِّ عُضْوٍ او بسم الله ویل د هر اندام (د پرېوللو) په وخت کي. |

**تشریح**: کله چي هر اندام پرېولي یا مسح کوي، نو له آدابو څخه دا دي چي لول بسم الله وایي او بیا تر هغه وروسته منقوله دعاء وایي (د هر اندام دعاء په لسم (۱۰) نمبر حاشیه کي ذکر سوې ده).

## خچې ګوته د غوږو په سوریو دننه کول

﴿۷۹﴾ وَإِدْخَالُ خِنْصَرِهِ فِي صِمَاخِ أُذُنَيْهِ او ګوته دننه کول دخپل دواړو غوږو په سوریو کې.

**لغات:** ﴿صِمَاخ﴾ (دصاد په کسره سره): دغوږ دننه سوری، جمع: أَصْمِخَةٌ وصُمُوْخٌ.

**تشریح:** دغوږو دمسح په وخت کې لنده خچې (خچه) ګوته دغوږو په سوریو دننه کول مستحب دي. (در مختار ج:۱، ص:۲۲۳، ط: دار الکتاب)

### پراخه ګوتمۍ ښورول

﴿۸۰﴾ وَتَحْرِيْكُ خَاتِمِهِ الْوَاسِعِ او ښورول (حرکت ورکول) خپل پراخه ګوتمۍ ته.

**لغات:** ﴿خَاتِم﴾ او خَاتَم: ګوتمۍ، صاحب د معجم وايي: الخاتم:بکسر التاء ويجوز فتحها: مايلبس في الاصبع للتحلّي أو الختم. (معجم لغة الفقهاء)

**تشریح:** که ګوتمۍ تنګه نه وي، نو د هغې ښورول هم مستحب دي، د دې لپاره چې په پرېوللو کې مبالغه وشي. (مراقي الفلاح ص:۴۲)

## مضمضه او استنشاق په راسته لاس کول او په چپه لاس پزه سونړل

﴿۸۱﴾ وَالْمَضْمَضَةُ وَالِاسْتِنْشَاقُ بِالْيَدِ الْيُمْنٰى او په راسته لاس سره خوله پرېولل او پزه پرېولل (يا په بله وينا: په راسته لاس سره خولې او پزې ته اوبه ور اچول) وَالِامْتِخَاطُ بِالْيُسْرٰى او په چپه لاس سره پزه سونړل (پزه سونړ کول).

**لغات:** ﴿امتخاط﴾ د افتعال د باب مصدر دی: کرنګ پاکول، پزه سونړل، پزه پاکول.

**تشریح:** مطلب يې څرګند دی.

## له وخت داخلېدلو څخه مخکې اودس کول

﴿۸۲﴾ وَالتَّوَضُّؤُ قَبْلَ دُخُوْلِ الْوَقْتِ لِغَيْرِ الْمَعْذُوْرِ او اودس کول د وخت له داخلېدلو څخه مخکې د غير معذور کس لپاره.

**تشریح:** د لمانځه د وخت له داخلېدلو څخه مخکې اودس کول هم د اودسه له آدابو څخه دي؛ ځکه په دې سره د عبادت د شوق او رغبت اظهار کېږي، خو دا مسئله د غير معذور لپاره ده او پاتې سو معذوره کس که د لمانځه له وخت څخه مخکې د بل لمانځه په وخت کې اودس وکړي، نو په هغه

اودس سره د را روان وخت لمونځ کول صحيح نه دي؛ ځکه د وخت په وتلو سره د معذوره اودس ماتيږي. (طحطاوي ص: ۴۲)

**يادونه:** معذور هغه کس ته وايي چې په داسي عذر مبتلا وي چې ده ته پر هغه عذر هيڅ واک نه وي، د هغه قابو کول د ده په وس او اختيار کي نه وي او د ده دا عذر د يوه لمانځه تر ټوله وخته پوري مسلسل پاته سي او دومره وخت ورته حاصل نه سي چې د هغه وخت فرض او واجب لمونځ په اوداسه وکړل سي، مثلاً پرزه يې مسلسله وينه کوي او نه دريږي، يا ريح يا متيازي يې جاري وي (د معذور احکام به وروسته بيان سي).

## تر اوداسه وروسته دعاء کول

| |
|---|
| ﴿۸۳﴾ وَالْإِتْيَانُ بِالشَّهَادَتَيْنِ بَعْدَهُ او تر اودس وروسته شهادتين (د شهادت کلمې) ويل. |

**لغات:** ﴿الإتيان﴾ د ضرب د باب مصدر دی: راتلل او کله چې د دې باب په صله کي باء راسي نو معنیٰ يې ده: راوړل.

**تشريح:** له اودس څخه تر فارغېدلو وروسته مخ پر لوري د قبلې شهادتين ويل او د ويلو په وخت کي د آسمان وطرف ته نظر پورته کول او د شهادت په ګوته اشاره کول مستحب دي (طحطاوي). له شهادتين څخه مراد دا کلمه ده: "أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ"، کوم څوک چې له اودس کولو څخه وروسته مذکوره کلمه او دا دعاء "اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِنَ التَّوَّابِيْنَ وَاجْعَلْنِيْ مِنَ الْمُتَطَهِّرِيْنَ" وايي، نو د هغه لپاره به د جنت اته سره دروازې خلاصي سي، په کومه دروازه چې د ده زړه غواړي، په هغه دي ورداخل سي. (ترمذي شريف: ۱۸، په حواله سره د انوار الايضاح)

## تر اوداسه وروسته اوبه چيښل

| |
|---|
| ﴿۸۴﴾ وَأَنْ يَشْرَبَ مِنْ فَضْلِ الْوُضُوْءِ قَائِمًا او (مستحب دي) دا چې له اودس څخه پاته سوي اوبه په ولاړه وچيښي وَأَنْ يَقُوْلَ او (سنت ده) دا (دعاء) چې ووايي: اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِنَ التَّوَّابِيْنَ وَاجْعَلْنِيْ مِنَ الْمُتَطَهِّرِيْنَ يا الله! ما له ډېر توبه کوونکو څخه کړې او ما له ښه پاکي کوونکو څخه کړې. |

**لغات:** ﴿فضل﴾ بقيه: الډ، يعني له اودس څخه پاته اوبه.

**تشریح**: تر اودس کولو وروسته له اوداسه څخه پاته سوي اوبه چیښل مستحب دي، برابره ده په ولاړي یې چیښي او که په ناستي یې چیښي، په هر صورت کي دا مستحب اداء کیږي. خو دمفتي سعید احمد صاحب دامت برکاتهم رایه دا ده چي تر اودس وروسته پاته سوي اوبه په ولاړي چیښل پکار دي چي اثر یې تول بدن ته ورسیږي، همدا حکم د زمزم داوبو هم دی چي په ولاړه د هغوی چښیل ضروري نه دي، صرف مستحب دي، په ناسته یې هم چیښلای سي. (کتاب المسائل ص:۱۴۸. تحفة الالمعي ج:۱. ص:۲۷۲). خو له دې دواړو اوبو څخه بغیر نوري اوبه په ولاړي چیښل مکروه تنزیهي دي او داوبو چیښلو په وخت کي دي دا دعاء ووایي "اَللّٰهُمَّ اشْفِنِيْ بِشِفَائِكَ وَدَاوِنِيْ بِدَوَائِكَ وَاعْصِمْنِيْ مِنَ الْوَهَلِ وَالْأَمْرَاضِ وَالْأَوْجَاعِ" (حاشیه بحوالة شفاء الارواح، منية المصلی)

او تر اوداسه وروسته دي دا دعاء ووایي کوم چي مخکي هم مونږ د شهادتینْ سره ذکر کړه: "اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِنَ التَّوَّابِيْنَ وَاجْعَلْنِيْ مِنَ الْمُتَطَهِّرِيْنَ".

التوابین: یعني له هري ګناه څخه رجوع کونکي، او بعضي حضرات فرمایي چي "توابین" هغه خلک دي چي کله یو ګناه څني صادره سي، نو ژر د توبې وطرف ته رجوع کوي. او "تواب" دالله صفت هم دی؛ ځکه الله تعالیٰ دخپل بنده توبه قبوله کړي د بنده وطرف ته په انعام سره رجوع وسي. (شفاء الارواح)



# فَصْلٌ فِي الْمَكْرُوهَاتِ

(دا) فصل په (بیان د اوداسه د) مکروهاتو کې دی

**تشریح**: د فقهاؤ په نیز مکروه پر دوه قسمه دی: (۱) مکروه تحریمي، (۲) مکروه تنزیهي، د کوم شي حرمت چې په دلیل ظني (غیر متواتر یا غیر مشهور) سره ثابت وي، هغه ته مکروه تحریمي وایي، امام محمد رَحِمَهُ الله مکروه تحریمي ته هم حرام وایي او شیخین رَحِمَهُمَا الله هغه حرام ته نږدې ګڼي. یعني د هغه مرتکب لره د جهنم سزا نسته. بلکي عتاب دی لکه د نبي کریم ﷺ له شفاعت څخه محروم کېدل، او کله چې فقهاؤ مطلق مکروه لیکلي وي، نو په هغه سره د دوی مراد زیاتره مکروه تحریمي وي، مګر دا چې یو دلیل هغه د تنزیهي وطرف ته وګرځوي. نو هغه مکروه تحریمي نه پاتیږي، او که د ممانعت هیڅ دلیل نه وي بلکي د هغه پرېښوول د هغه له کولو څخه ښه وي. نو دې ته مکروه تنزیهي وایي (طحطاوي)، مکروه تحریمي د واجب او سنت مؤکده په مقابله کې دي یعني د واجب او سنت مؤکده پرېښوول مکروه تحریمي دي او مکروه تنزیهي د سنت غیرمؤکده یعني د مستحب په مقابله کې دي، نو د مستحب پرېښوول مکروه تنزیهي دي.

**یادونه**: مصنف رَحِمَهُ الله د اوداسه شپږ مکروهات شمېرلي دي، دا شمېر د حصر لپاره نه دی چې صرف همدا یې مکروهات دیم بلکي د مبتدي د آسانۍ لپاره دی. په حاشیه کې ذکر سوي دي "بل للتقریب للمبتدي" یعني په شپږو کې د مکروهاتُ الوضوء د منحصر کولو مقصد دا دی چې مبتدي طالب د هغوی حفظ (یادولو) ته نږدې کړي او مبتدي هغوی یاد وساتي. یا په بله وینا دا چې دا وحفظ ته د طالب نږدې کونکي دي. نو تقریب د مقرّب په معنیٰ سره دی.

## د اوداسه د مکروهاتو بیان

| |
|---|
| ﴿ لله ﴾ وَيُكْرَهُ لِلْمُتَوَضِّئِ سِتَّةُ أَشْيَاءَ او د اودس کونکي لپاره شپږ (۱۶) شیان مکروه دي الْإِسْرَافُ فِي الْمَاءِ په اوبو کې اسراف کول (بېله ضرورته زیاتي اوبه صرفول) وَالتَّقْتِيرُ فِيهِ او په اوبو کې کمي کول (ډیري لږ اوبه صرفول). |

**لغات:** ﴿یکره﴾ د سمع له بابه مضارع معروفه ده، کَرِهَ‌یَکۡرَہُ‌کَرَاهَةً: نا خوښول، چا ته څه شی نا خوښه کېدل، مکروه کېدل. ﴿إسراف﴾ د افعال د باب مصدر دی: اسراف کول، فضول خرچي، له حد څخه تجاوز کول. ﴿تقتیر﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: تنګي کول، بخل کول، کمي کول.

**تشریح:** مصنف رَحِمَهُ‌الله داوداسه شپږ مکروهات ذکر کړي دي چې له هغوی څخه اول اسراف دی، له شرعي ضرورت څخه زیاتي اوبه استعمالول اسراف دی او هغه دا چې اندامونه له سنت شمېر یعنې له دریو وارو څخه زیات پرېولل سي، دا اسراف مکروه تحریمي دی، که څه هم پر نهر (ویاله) اودس کوي، یا د خپل ملکیت په اوبو سره اودس کوي، او یا ته سو د وقف په اوبو کي اسراف کول لکه د مسجد او مدرسو اوبه، نو دا حرام دي. (حاشیه)

والتقتیرفیه: او له سنت شمېر یعني له دریو وارو څخه کم پرېولل هم مکروه دي، همدارنګه پر اندامونو ډېري کمي اوبه اچول مثلاً اندامونه د مسح په څېر پرېولل، دا هم په تقتیر کي داخل دي، او په دې کي دومره لندول ضروري دي چې یو، دوه څاڅکي څني وبهېږي، کنې اودس نه صحیح کېږي.

که څوک له دریو وارو څخه کم داوداسه اندامونه پرېولي، نو بعضي علماء فرمایي چې هغه ګنهکاره کېږي او بعضي فرمایي چې نه ګنهکاره کېږي او بعضي حضرات فرمایي چې که له دریو وارو څخه د کم پرېوللو عادت جوړ کړي، نو ګنهکاره کېږي. (حاشیه)

## اوبه په زوره پر مخ وهل

﴿۸۶﴾ وَضَرۡبُ الۡوَجۡهِ بِهٖ او پر مخ (په زوره) اوبه وهل.

**تشریح:** اوبه داسي په زوره پر مخ وهل چې څاڅکي پر بل چا ولوېږي، دا مکروه دي؛ ځکه په دې سره بل چا ته تکلیف رسېږي او دا حکم صرف د مخ سره خاص نه دی، بلکي د ټولو اندامونو په پرېوللو کي همدا حکم دی چې اول دي پر اندام په کراره اوبه اچوي بیا دي یې مږي. (مراقی الفلاح ص:۴۵)

## دنیاوي خبري کول

﴿۸۷﴾ وَالتَّکَلُّمُ بِکَلَامِ النَّاسِ او خبري کول د خلګو په خبرو سره (یعني دنیاوي خبري کول).

**تشریح:** د اودس کولو په دوران کي د خلګو سره بلا ضرورته خبري کول هم مکروه دي؛ ځکه که د خلګو سره په مجلس مشغوله سي، نو له منقوله دعاګانو او د الله ﷻ وطرف ته له توجه څخه به محرومه سي (بعضي عارفانو فرمایلي دي چې که په اودس کي استحضار وي او اودس له دنیاوي معاملاتو څخه خالي

وي، نو انسان ته په لمانځه کې هم استحضار حاصلیږي او که په اودس کې استحضار نه وي. نو په لمانځه کې هم استحضار نه حاصلیږي). (مراقی الفلاح، شفاء الارواح)

## له بل چا څخه مدد غوښتل

﴿۸۸﴾ وَالْاِسْتِعَانَةُ بِغَيْرِهٖ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ او له بل چا څخه بېله عذره مدد غوښتل.

**لغات:** ﴿استعانة﴾ د استفعال د باب مصدر دی: مدد غوښتل (کومک غوښتل)، مدد اخیستل.

**تشریح:** د دې تفصیل په ﴿۷۴﴾ نمبر مسئله کې تېر سو.

## درې واره مسح کول

﴿۸۹﴾ وَتَثْلِيْثُ الْمَسْحِ بِمَاءٍ جَدِيْدٍ او درې واره په نوو (جلا) اُوبو سره مسح کول.

**تشریح:** هر وار په نوو اوبو سره درې واره مسح کول هم د احنافو په نېز مکروه دي. او پاته سوه دا خبره چې د سر د مسح لپاره نوي (جلا) اوبه را اخیستل ضروري دي او که په لاس کې پاته لوندوالي هم د مسح لپاره کافي دی؟ د احنافو په نېز نوي اوبه را اخیستل ضروري نه دي، بلکې په پاته لوندوالي سره هم مسح کولای سي، خو نوي اوبه را اخیستل سنت دي. (تحفة الالمعی ج:۱، ص:۲۶۱)



# فَصْلٌ فِيْ أَوْصَافِ الْوُضُوْءِ

(دا) فصل په (بیان د) اقسامو د اوداسه کي دی

**تشریح:** په دې فصل کي مصنف رَحِمَهُ الله درې قسمونه بیان کړي دي، لیکن دغه د دریو شمېر د حصر لپاره نه دی، بلکي له دې څخه بغیر د اوداسه نور قسمونه هم کېدلای سي لکه مکروه او حرام، د مکروه اوداسه مثال لکه تر اودس کولو وروسته سملستي بل اودس کول چي تر اوسه پوري یې د اول اوداسه مجلس بدل سوی نه وي، یا چي تر اوسه پوري یې په اول اوداسه یو عبادت اداء کړی نه وي او د حرام اوداسه مثال لکه د وقف په اوبو او د مدرسو په اوبو سره اودس کول. (شفاء الارواح)

## د اودس قسمونه، فرض اودس

﴿۹۰﴾ اَلْوُضُوْءُ عَلٰى ثَلَاثَةِ أَقْسَامٍ اودس پر درې قسمه دی اَلْأَوَّلُ فَرْضٌ عَلَى الْمُحْدِثِ لِلصَّلٰوةِ اول قسم اودس فرض دی (چي هغه) پر بې اودسه کس (فرض دی) د لمونځ کولو لپاره وَلَوْ كَانَتْ نَفْلًا که څه هم نفلي لمونځ وي وَلِصَلٰوةِ الْجَنَازَةِ او (فرض دی) د جنازې د لمانځه لپاره وَسَجْدَةِ التِّلَاوَةِ او د سجدهٔ تلاوت لپاره وَلِمَسِّ الْقُرْآنِ او د قرآن مسه کولو لپاره وَلَوْ آيَةً که څه هم یو آیت وي.

**تشریح:** اودس پر درې قسمه دی: ① اول قسم فرض اودس دی. چي هغه د هر لمانځه لپاره پر بې اودسه کس فرض دی. برابره ده هغه فرضي لمونځ وي او که نفلي لمونځ وي. یا د جنازې لمونځ وي. همدارنګه د سجدهٔ تلاوت او د قرآن مسه کولو لپاره پر هغه اودس کول فرض دي.

## واجب اودس

﴿۹۱﴾ وَالثَّانِيْ وَاجِبٌ لِلطَّوَافِ بِالْكَعْبَةِ او دوېم قسم اودس واجب دی د کعبې د طواف لپاره.

**تشریح:** د بیت الله طواف د لمانځه په څېر دی او تاسي ته معلومه ده چي لمونځ د بې اودسه کس لپاره ممنوع دی. لهذا طواف کول به هم ممنوع وي، لیکن که څوک بې اودسه طواف وکړي نو جائز

کیږي خو د واجب تارک ګرځي او د واجب پر تارک کوم شی لازمیږي؟ د دې تفصیل به په کتاب الحج کې راسي. إن شاء الله تعالیٰ.

## د مستحب اودس مواقع

﴿۹۲﴾ وَالثَّالِثُ مَنْدُوْبٌ لِلنَّوْمِ عَلٰى طَهَارَةٍ او درېیم قسم اودس مستحب دی د پاکوالي پر حالت د بیدېدو لپاره وَإِذَا اسْتَيْقَظَ مِنْهُ او کله چې له خوب څخه راوېښ سي (له وېښېدو څخه وروسته اودس کول هم مستحب دي) وَلِلْمُدَاوَمَةِ عَلَيْهِ او پر اودس د همېشتوب کولو لپاره (چې کله اودس مات سي نو سملستي اودس کول مستحب دي چې همېشه په اودانه اوسي) وَلِلْوُضُوْءِ عَلَى الْوُضُوْءِ او په اودس باندې د اودس کولو لپاره وَبَعْدَ غِيْبَةٍ وَكِذْبٍ وَنَمِيْمَةٍ او تر غیبت کولو، دروغو ویلو او چغلماری کولو وروسته وَكُلِّ خَطِيْئَةٍ او تر هري ګناه وروسته وَإِنْشَادِ شِعْرٍ او تر شعر ویلو وروسته وَقَهْقَهَةٍ خَارِجَ الصَّلٰوةِ او د لمانځه څخه بهر (په بل حالت کې) له په زوره خندا کولو څخه وروسته وَغُسْلِ مَيِّتٍ او مړي ته تر غسل کولو وروسته وَحَمْلِهِ او د مړي (جنازې) تر پورته کولو وروسته وَلِوَقْتِ كُلِّ صَلٰوةٍ او د هر لمانځه د وخت لپاره (یعني د اودس لرلو بلوجود د هر لمانځه لپاره نوی اودس کول مستحب دي) وَقَبْلَ غُسْلِ الْجَنَابَةِ او د جنابت له غسل څخه مخکې وَلِلْجُنُبِ عِنْدَ أَكْلٍ وَشُرْبٍ وَنَوْمٍ وَوَطْئٍ او د جنب کس لپاره د خوراک، څښاک او وطي کولو په وخت کې وَلِغَضَبٍ او د غصې په وخت کې (ځکه په دې سره د انسان غصه لو خېنم کراریږي) وَقُرْآنٍ وَحَدِيْثٍ وَرِوَايَتِهِ او د قرآن او حدیث او د حدیثو د روایت کولو (نقل کولو) لپاره وَدِرَاسَةِ عِلْمٍ او دیو شرعي علم د درسولو (لوستلو) لپاره وَأَذَانٍ وَإِقَامَةٍ او د اذان او اقامت کولو لپاره وَخُطْبَةٍ او د خطبه ویلو لپاره (که څه هم د نکاح خطبه وي) وَزِيَارَةِ النَّبِيِّ ﷺ او د نبي کریم ﷺ (د روضې مبارکې) د زیارت کولو لپاره وَوُقُوْفٍ بِعَرَفَةَ او په عرفات باندې د درېدلو لپاره (یعني کله چې د ذوالحجې په نهمه حاجیان په عرفات کې وقوف کوي. نو په دې دوران کې په اودانه

اوسېدل مستحب دي) وَلِلسَّعْيِ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ او د صفا و مروه تر مینځ د سعی کولو لپاره (صفا او مروه په مکه مکرمه کي دوه غرونه دي کوم چي اوس د مسجد حرام سره يو ځای کړل سوي دي. د حاجي او عمره کونکي لپاره د صفا او مروه ترمینځ سعی يعني تګ کول واجب دي. نو د هغه لپاره هم اودس کول مستحب دي) وَأَكْلِ لَحْمِ جَزُوْرٍ او د اوښ د غوښو تر خوړلو وروسته (ځکه د هغه تر خوړلو وروسته د هغه د وازګي بوی راځي، نو د بوی د دفع کولو لپاره اودس کول مستحب دي) وَلِلْخُرُوْجِ مِنْ خِلَافِ الْعُلَمَاءِ كَمَا إِذَا مَسَّ امْرَأَةً او د علماؤ له اختلاف څخه د وتلو لپاره (هم اودس کول مستحب دي) لکه کله چي يو څوک ښځه مسه کړي.

**لغات**: ﴿نميمة﴾ اصطلاحي معنیٰ يې ده: چغل خوري (چغلماري)، د فساد په غرض سره د يو چا خبري نورو ته رسول (نقل الكلام بين الناس على وجه الافساد)، يا په بله وينا د جنجال جوړولو لپاره د يوه کس غلطي خبري بل ته رسول او هغوی سره اخته کول، کوم چي ډېره لويه ګناه ده. ﴿قهقهة﴾ د فعللة د باب مصدر دی: په زوره خندل. ﴿إنشاد﴾ د افعال د باب مصدر دی، د دې باب له معناو څخه يوه معنیٰ ده: شعر ويل. ﴿غيبة﴾ د ضرب د باب مصدر دی: په يو چا پسې (پس ترشا) داسي بدي بيانول کوم چي په هغه کي نه وي. ﴿حديث﴾ د ګران پېغمبر ﷺ کلام، جمع: أحاديث. ﴿دراسة﴾ د نصر د باب مصدر دی، دَرَسَ يَدْرُسُ دِرَاسَةً (لكتاب أو العلم): لوستل، درس ويل، په توجه سره يادول (مصباح اللغات). ﴿جزور﴾ د حلالولو قابل اوښ، جمع: جَزَائِرُ و جُزُرٌ.

**تشريح**: په دې عبارت کي مصنف رَحِمَهُ الله داوداسه درېيم قسم بيان کړی دی کوم چي مستحب دی او دلته يې د مستحب اوداسه څو مواقع بيان کړي دي: ① کله چي څوک د خوب اراده وکړي، نو اودس کول مستحب دي او دا استحباب هغه وخت ثابتيږي کله چي داوداسه په حالت کي خوب ورته راسي، او که له خوب راتللو (بيدېدلو) څخه مخکي يې اودس مات سي، نو بيا د مستحب ثواب نه ورته حاصليږي. ② کله چي له خوب څخه را ويښ سي، نو اودس کول مستحب دي. ③ همدارنګه پر اودس د همېشتوب کولو لپاره اودس کول مستحب دي، يعني چي کله يې اودس مات سي نو سملستي بيا اودس وکړي، چي هر وخت په اوداسه وي. ④ او پر اودس د پسه اودس کول هم مستحب دي، دا هغه وخت کله چي يې په اول اوداسه يو عبادت اداء کړی وي. يا ډېر وخت

تېر سوی وي(لکه په شروع کي چي موږ وویل)، ⑤ له هر قسم ګناه څخه وروسته هم اودس کول مستحب دي، د دې فایده به دا وي چي ګناهونه به یې پرېوتل سي او له هغوی څخه د توبې توفیق به ورته حاصل سي، ⑥ همدارنګه که څوک مړي ته غسل ورکړي، او د مړي جنازه پورته کړي. نو د هغه لپاره هم اودس کول مستحب دي، ⑦ ناپاکه (جنب کس) لره د خوراک، څښاک، خوب او د دويم وار وطي کولو لپاره اودس کول مستحب دي، ⑧ د قرآن، حديث وغيره د لوستلو لپاره هم اودس کول مستحب دي، ⑨ همدارنګه په اوداسه اذان کول هم مستحب دي، او که څوک بغير له اوداسه څخه اذان وکړي، نو ګنجائش يې سته او بغير له اوداسه څخه اقامت کول په هر حال کي مکروه دي. د حج کونکي لپاره د ذی الحجې په نهمه (يعني د عرفات په ورځ) تر زوال وروسته اودس کول مستحب دي، ⑩ پر عرفات د درېدلو لپاره، ⑪ د اوښ د غوښو په خوړلو سره که څه هم اودس نه ماتيږي، خو د امام احمد رَحِمَهُ الله د اختلاف په وجه اودس کول مستحب دي، امام احمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي د اوښ د غوښو په خوړلو سره اودس ماتيږي، برابره ده پخې وي او که اومې وي، ⑫ همدارنګه که څوک تر اودس کولو وروسته خپلې ښځي ته يا بلې قابلِ شهوت ښځي ته لاس ور وړي، يا ښځه خاوند مسه کړي او مذي وغيره يې نه وځي، نو په دې سره د احنافو په نېز اودس نه ماتيږي لېکن د ائمه ثلاثه وو په نېز ماتيږي، لهذا د ائمه ثلاثه وو له اختلاف څخه د بچ کېدلو لپاره نوی اودس کول مستحب دي.



# فَصْلٌ (فِيْ نَوَاقِضِ الْوُضُوْءِ)

(دا) فصل (داودس ماتونکو شیانو په بیان کې)

## په کومو شیانو سره اودس ماتیږي؟

﴿۹۳﴾ يَنْقُضُ الْوُضُوْءُ اِثْنَا عَشَرَ شَيْئًا دوولس شیان اودس ماتوي مَا خَرَجَ مِنَ السَّبِيْلَيْنِ (۱) هغه شی کوم چې (دمخ او شا) له دواړو لارو څخه ووځي إِلَّا رِيْحَ الْقُبُلِ فِي الْأَصَحِّ مګر د صحیح ترین قول مطابق د مخ د لارې څخه باد وتل (اودس نه ماتوي).

**لغات**: ﴿ينقض﴾ د نصر د باب مضارع ده: ماتول، فاسدول. ﴿سبيلين﴾ دوې لارې. مراد ځنې د مخ او شا شرمګاه ده (یا په بله وینا د متیازو لاره او د غائطو لاره) یعنې قُبُل او دُبُر. دې ته ځکه سبیلین ویل سوي دي چې دغه دواړه د راوتونکي نجاست وغیره لپاره لارې دي.

**تشریح**: فرمایي چې اودس په دوولسو شیانو سره ماتیږي: ① له هغوی څخه اول دا دی چې له سبیلینُ یعنې د نر او ښځې د مخ یا د شا له شرمګاه څخه یو شی ووځي. برابره ده هغه د عادت په توګه وتونکی شی وي مثلاً متیازي، غائط، باد وغیره. یا خلاف عادت شی وي مثلاً چینجی، شګه او داسې نور.

الا ريح القبل الخ: یعنې له سبیلینُ څخه چې کوم شی هم را ووځي، هغه اودس ماتوي. خو کوم باد چې د سړي او ښځې د مخ له شرمګاه څخه ووځي، په هغه سره د صحیح مذهب مطابق اودس نه ماتیږي: ځکه هغه په حقیقت کې باد نه دی، بلکې هغه د مخ د شرمګاه اختلاج (اضطراب او رپېدل) دي یعنې په هغه کې څه ښوربښت او حرکت راغلی او رپېدلې دی، باد نه دی. خو د امام محمد رحمه الله په نیز د قُبل په باد سره هم اودس ماتیږي پر دُبر په قیاس کولو سره. (شفاء الارواح)

﴿۹۴﴾ وَيَنْقُضُهُ وِلَادَةٌ مِنْ غَيْرِ رُؤْيَةِ دَمٍ (۲) او (همدارنګه) اودس ماتوي د بچي پیدایښت (لنګوالی) بغیر له وینې لیدلو څخه (هم).

**تشریح**: (۲) یعنې صرف د بچي په پیدایښت سره هم اودس ماتیږي که څه هم تر پیدایښت وروسته وینه نه ولیدل سي. خو آیا دا ښځه نفاس والا شمېرل کیږي، که نه؟. دا مسئله مختلف فیه ده. د امام صاحب رحمه الله په نیز احتیاطاً پر هغې غسل لازم دی. (مراقی الفلاح ص:۴۸)

﴿۹۵﴾ وَنَجَاسَةٌ سَائِلَةٌ مِنْ غَيْرِهِمَا كَدَمٍ وَقَيْحٍ (۳) او له سبيلين (دوو لارو) څخه بغير (له بل ځايه) بهيدونکې نجاست لکه وينه او زوې (ژړې اوبه).

**لغات**: ﴿قَيْح﴾ زوې، نو (السائل اللزج الاصفر الذي يخرج) غيرهما: د تثنيه "هما" ضمير و سبيلين ته راجع دی.

**تشريح**: ③ يعني له سبيلين څخه بغير که د بدن له يوې بلې حصې څخه وينه، زوې (نوونه) يا داسې بل بهيدونکی نجاست ووځي، نو هم اودس ماتيږي. لهذا که د ستني يا داسي بل شي د جګيدلو په وجه څه وينه له بدن څخه ووځي او هغه پر خپل ځای پاته نه سي بلکي له خپل ځای (مخرج) څخه وبهيږي او تېره سي، نو اودس ماتيږي او که پاته سي او له خپل ځای څخه تېره نه سي، نو اودس نه ماتيږي؛ ځکه له غير سبيلن څخه چي کوم نجاست را ووځي. په هغه سره علته اودس ماتيږي کله چي د بدن وهغه حصې ته وبهيږي چي په اودس يا غسل کي د هغه حصې پر بولل يا مسح کول فرض يا مستحب دي، نو مثلاً که د چا د سترګي له دننه زخم څخه وينه را ووځي او د سترګي له يوه کونج څخه وبل کونج ته وبهيږي، نو د هغه اودس نه ماتيږي؛ ځکه د سترګي دننه حصه پر بولل په اوداسه يا غسل کي فرض يا مستحب نه دي.

## په ډکه خوله قی وهل

﴿۹۶﴾ وَقَيْءُ طَعَامٍ أَوْ مَاءٍ أَوْ عَلَقٍ أَوْ مِرَّةٍ (۴) او (اودس ماتوي) د خوراک يا داوبو يا د تريخي قی وهل إِذَا مَلَأَ الْفَمَ کله چي خوله ډکه کړي (په ډکه خوله وي) وَهُوَ مَا لَا يَنْطَبِقُ عَلَيْهِ إِلَّا بِتَكَلُّفٍ عَلَى الْأَصَحِّ او هغه (دډکي خولې حد) د صحيح قول مطابق دا دی چي بېله تکلفه پر قيي خوله نه سي بندولای (تينګولای) (يا په بله ويناچي بېله تکلفه په خوله کي قی نه سي ساتلی) وَيُجْمَعُ مُتَفَرِّقُ الْقَيْءِ إِذَا اتَّحَدَ سَبَبُهُ او جمع کول کيږي به بېلابېل (وهل سوي) قيونه کله چي يې سبب (خواګرځی) يو وي (يعني کله چي ديوه ولړ خوا ګرځېدلو په وجه څو واره بېلابېل قيان ووهي، نو ټوله به جمع کول کيږي او يو قی به شمېرل کيږي).

**لغات**: ﴿عَلَق﴾ سخته کاټه يا کلکه سوې وينه. يوې ټوټې ته يې عَلَقَة وايي. ﴿مِرَّة﴾ ژړ رنګه ترخې اوبه کوم چي په تريخي کي وي. يا په بله وينا د صفراء اوبه. د تريخي اوبه.

**تشريح**: ④ که څوک په ډکه خوله د خوراک يا داوبو يا د کلکو وينو وغيره قی ووهي، نو د هغه اودس ماتيږي. برابره ده قی د شي تر خوړلو يا چيښلو وروسته سمدستي ووهل سي، يا د ډېر وخت

وروسته ووهل سي، په دې شرط چې په ډکه خوله وي. او که تر ډکې خولې کم قی ووهي، نو د هغه اودس نه ماتيږي.

او د خولې د ډکوالي په حدّ کې اختلاف دی، د اصح قول مطابق د هغه حدّ دا دی چې قی وهونکی له تکليف او مشقت څخه بغير خپل قی په خوله کې نه سي نيولای او يو قول دا دی چې هغه له خبرو څخه بند کړي. (شفاء الارواح)

ويجمع متفرق إلخ: او که څو واره لږ، لږ قی ووهل سي، مثلاً يو وار لږ قی ووهي کوم چې په ډکه خوله نه وي او څه کړی وروسته لږ قی بيا ووهي او لږ تر هغه وروسته يې بيا ووهي او ټوله چې جمع کړل سي، خوله په ډکيږي، نو آيا دا هم اودس ماتوي، که نه؟ په دې باره کې حکم دا دی چې سبب ته به يې کتل کيږي، که چيري سبب يې يو وي، نو اودس ماتوي او که سبب يې مختلف وي، نو اودس نه ماتوي، په متن کې همدا مسئله بيان سوې ده. (مراقي الفلاح ص۴۹)

**يادونه**: د سبب د يو کېدلو مطلب دا دی چې که ټوله قيان د يوه خوا ګرځې په وجه ووهل سي، يعني کله چې د چا خوا وګرځي او سينه يې را ډکه سي چې د هغه په وجه يو وار قی ووهي بيا هغه خوا ګرځې يې لا نه وي ختم سوې چې (د هماغه خوا ګرځې په حالت کې) بل وقی ووهي، نو د دې دواړو قيانو سبب يو دی، او که له قي وهلو څخه وروسته خواګرځې ليرې سي، بيا تر هغه وروسته د بل وار خوا ګرځېدلو په وجه قی ووهل سي، نو د دې سبب مختلف دی.

او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د مجلس يو والي لره اعتبار دی، نو که په يوه مجلس کې څو واره لږ، لږ قی ووهل سي او ټوله دومره وي چې که جمع کړل سي، خوله په ډکيږي، نو په دې سره اودس ماتيږي. (شفاء الارواح)

## په نارو (لاړو) کې د وينې اثر راتلل

﴿۹۷﴾ وَدَمٌ غَلَبَ عَلَى الْبُزَاقِ أَوْ سَاوَاهُ (۵) او (اودس ماتوي د خولې) هغه وينه کوم چې پر نړو (لاړو) غالبه سي يا ور سره برابره سي.

**لغات**: ﴿بُزاق﴾ لاړي (ناړي)، له خولې څخه را وتلې لاړې، او تر څو چې په خوله کې وي، نو هغه ته "رِيْق" وايي. ﴿ساواه﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: يو د بل سره برابرېدل، مساوي کېدل.

**تشريح**: ⑤ که چيري خوله يا غاښونه وينه وکړي او د وينې سوروالی پر نړو (لاړو) غالب سي يعني لاړي بالکل سرې ښوندې سي، نو اودس ماتيږي او که وينه صرف ژړه وي، نو اودس نه ماتيږي؛ ځکه په دې صورت کې وينه مغلوبه ده او که ناړي او وينه دواړه سره برابر وي، نو بيا هم احتياطاً د اودس ماتېدلو حکم سوی دی. (مراقي الفلاح ص۴۹)

## په کوم خوب سره اودس ماتيږي؟

﴿۹۸﴾ وَنَوْمٌ لَمْ تَتَمَكَّنْ فِيْهِ الْمَقْعَدَةُ مِنَ الْأَرْضِ (۶) او (اودس ماتوي) داسې خوب چې په هغه کې (دبيده کس) مقعده د ځمکې سره (ټينګه) نه وي لګېدلې وَ ارْتِفَاعُ مِقْعَدَةِ نَائِمٍ قَبْلَ انْتِبَاهِهٖ (۷) او (اودس ماتوي) له بيداره کېدو څخه مخکې د بيده کس مقعده پورته کېدل وَإِنْ لَمْ يَسْقُطْ که څه هم هغه لوېدلی (غوځار سوی) نه وي فِي الظَّاهِرِ د ظاهر روايت مطابق (يعني ظاهر روايت همدا دی چې په دې حالت کې يې اودس ماتيږي).

**تشريح:** ⑥ همدارنګه هغه خوب اودس ماتوي په کوم خوب کې چې د بيده کس مقعده پر ځمکه لګېدلې نه وي، بلکې له ځمکې څخه پورته وي، مثلاً هغه پر اړخ پروت وي، يا پر مخې پروت وي، يا داسې بل صورت وي چې په هغه کې د بيده کس کوناټې د ځمکې سره لګېدلې نه وي، نو د هغه اودس ماتيږي.

وارتفاع مقعدة إلخ: ⑦ مثلاً يو څوک په ناسته بيده سي او د خوب په حالت کې د مخ پر طرف جټکه ووهي يعني د مخ وطرف ته لږ کوږ سي، اوس که د کوناټيو له پورته کېدلو څخه مخکې هغه را ويښ سي، نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د هغه اودس نه ماتيږي او که تر را ويښېدلو مخکې د هغه کوناټې له ځمکې څخه پورته سي، نو بيا د هغه اودس ماتيږي، که څه هم هغه پر ځمکه پوره لوېدلی نه وي، همدا خبره په متن کې بيان سوې ده. او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز حکم دا دی چې پر ځمکه د لوېدلو څخه مخکې يا پر ځمکه د بغل لګېدلو څخه مخکې که هغه را ويښ سي يا تر لوېدلو وروسته پر ځمکه د بغل لګېدلو سره سمدستي هغه را ويښ سي، نو د هغه اودس نه ماتيږي او که تر لوېدلو لږ ګړی وروسته را ويښ سي، نو د هغه اودس ماتيږي، او فتویٰ د امام صاحب پر قول ده. (طحطاوي بحوالۀ شفاء الارواح)

## د بې هوښۍ، لېونتوب او نشې حکم

﴿۹۹﴾ وَاِغْمَاءٌ وَ جُنُوْنٌ وَ سُكْرٌ (۸) او (اودس ماتوي) بې هوښي (۹) او لېونتوب (۱۰) او نشه.

**لغات:** ﴿اغماء﴾ بې هوښي (بيهوښي). هغه مرض چې د انسان قوت پکښې زائل سي او عقل يې مغلوبه سي. ﴿جنون﴾ لېونتوب. هغه مرض چې عقل بالکل پکښې زائل سي او قوت زيات سي،

﴿سُکر﴾ نشه کېدل. هغه مستي ته وايي چې د يو نشه داره شي په استعمالولو سره پر عقل غالبه سي چې د هغه په وجه د انسان د عقل موافق کار نه سي کولای، لېکن د هغه عقل بالکل نه زائلېږي، نو ځکه هغه د شريعت د خطاب قابل پاتېږي.

**تشريح:** په دې عبارت کي درې نواقض بيان سوي دي، مخکي تر دې نواقض حقيقيه بيان سول. اوس له دې ځايه د نواقض حکميه وو بيان دی.

(۸) که څوک بې هوښه سي، نو په هر صورت کي د هغه اودس ماتېږي. برابره ده لږ وخت بې هوښه وي او که ډېر وخت.

(۹) که پر چا د لېونتوب جټکه راسي او عقل يې کار پرېږدي، نو د هغه اودس هم ماتېږي.

(۱۰) که د شرابو، يا د هيروينو، چرسو، تارياکو او داسي نورو په وجه څوک دومره نشه سي چې د هغه په چال او تګ کي فرق راسي يعني يوې خوا او بلې خوا ته کوږ او زنګېدلی تګ کوي او پوچ ورد، بې ځايه خبري يې تر خولې راوځي، نو د هغه اودس ماتېږي. او که نشه معمولي وي، نو اودس نه ماتوي. (در مختار مع الشامي ج:۱، ص:۱۳۳، ۱۳۴، کتاب المسائل ص:۱۵۶)

**يادونه:** د نشې حد چې، په هغه سره اودس ماتېږي د بعضي مشايخو په نېز دا دی چې نشه کس د ښځي او نر ترمينځ توپير نه سي کولای، همدا قول صدر الشهيد اختيار کړی دی. او صحيح قول هغه دی کوم چې له شمس الائمه حلواني رَحِمَهُ الله څخه منقول دی کوم چې په تشريح کي مو ذکر کړی دی چې په چال او تګ کي يې فراق راسي... (حاشيه)

## د خندا حکم

﴿۱۰۰﴾ وَقَهْقَهَةُ بَالِغٍ يَقْظَانَ فِيْ صَلٰوةٍ ذَاتِ رُكُوْعٍ وَسُجُوْدٍ (۱۱) او (اودس ماتوي) د بالغ کس په زوره خندل په داسي لمانځه کي کوم چې رکوع او سجدې والا وي وَلَوْ تَعَمَّدَ الْخُرُوْجَ بِهَا مِنَ الصَّلٰوةِ که څه هم هغه په دې (قهقهه خندا) سره قصد کړی وي له لمانځه څخه د وتلو (يا په بله وينا که څه هم هغه د سلام ګرځولو پر ځای په قهقهه خندا سره د لمانځه څخه ووځي. نو هم يې اودس ماتېږي).

**تشريح:** (۱۱) که بالغ کس د رکوع او سجدې والا په لمانځه کي په وېښه دومره په زوره وخاندي چې ده ته نژدې ولاړ کس هغه واوري، نو اودس يې ماتېږي. برابره ده عمداً په زوره وخاندي او که سهواً (يعني هغه ته دا ياده وي چې زه په لمانځه کي يم او که ورته ياده نه وي)، که څه هم هغه د تشهد په اندازه تر ناستي وروسته له لمانځه څخه د وتلو لپاره عمداً قهقهه کړې وي: ځکه چې هغه اوس په لمانځه کي دی او په لمانځه کي (تر تشهد وروسته) په قهقهه کولو سره اودس ماتېږي. لېکن لمونځ يې نه

باطلیږي: ځکه په دې وخت کې پر هغه د لمانځه هیڅ فرض باقي پاته نه دی، او پاته سو دا چې سلام یې پرېښووی، نو په دې سره د هغه په لمانځه کې څه داسې نقصان نه راغلی چې د هغه په وجه لمونځ باطل سي. (شفاء الارواح)

**فایده**: "قهقهه" هغه خندا ته وایي چې خندونکی یې خپله هم واوري او نژدې کس یې هم واوري او خوله یې ښه خلاصه سي. داسې خندا لمونځ او اودس دواړه ماتوي. "ضحک" هغه معمولي خندا ته وایي چې صرف خپله یې واوري. لېکن ور سره نژدې کس یې نه واوري. په دې سره لمونځ ماتیږي لېکن اودس نه ماتیږي. او "تبسم" مسکا ته وایي چې په هغه کې بالکل آواز نه وي یعني داسې خندا چې آواز یې نه خپله واوري او نه یې نژدې کس واوري. په دې سره نه اودس ماتیږي او نه لمونځ. (حاشیه)

**یادونه**: دلته د "بالغ" په قید سره نابالغ ووتی. نو معلومه سوه چې که نابالغه کوچنی د لمانځه په حالت کې په زوره وخاندي. نو د هغه اودس نه ماتیږي. او د "ویښ" په قید سره بیده کس ووتی چې که څوک په لمانځه کې د بیده والي په حالت کې قهقهه وکړي، نو صحیح دا ده چې اودس یې نه ماتیږي. لېکن لمونځ یې باطلیږي. او د "لمانځه" په قید سره د غیر لمانځه حالت ووتی چې که څوک له لمانځه څخه بهر قهقهه وکړي. نو په دې سره اودس نه ماتیږي. او د" رکوع او سجدې والا" په قید سره هغه عبادات ووتل کوم چې رکوع او سجدې والا نه وي. لکه د جنازې لمونځ او سجدهٔ تلاوت. لهذا که څوک د جنازې په لمانځه کې یا په سجدهٔ تلاوت کې قهقهه وکړي. نو اودس یې نه ماتیږي. (حاشیه)

## د مباشرت فاحشه حکم

| |
|---|
| ﴿۱۰۱﴾ وَمَسُّ فَرْجٍ بِذَكَرٍ مُنْتَصِبٍ بِلَا حَائِلٍ (۱۲) او (اودس ماتوي) بغیر له څه حائل (پردې) څخه د ښځې فرج په ولاړه (منتشره) آله سره مس کول (یعني چې ذکر یې له شهوت او مستۍ څخه ولاړ اوږد اوي). |

**لغات**: ﴿منتصب﴾ د افتعال د باب اسم فاعل دی: ولاړ، جګ، درېدونکی، مصدر یې انتصابٌ دی: ولاړېدل، جګېدل، درېدل. ﴿حائل﴾ د دوو شیانو تر مینځ مانع، پرده، خنډ.

**تشریح**: (۱۲) مباشرت فاحشه یعني بغیر له څه حائل او مانع څخه یوه شرمګاه د بلې شرمګاه سره مسه کېدل. برابره ده د سړي شرمګاه د ښځې سره وي یا د ښځې او ښځې یا د سړي او سړي شرمګاوې سره مسه کړل سي، نو په دې سره هم اودس ماتیږي. ښکاره دې وي چې په متن کې د فرج قید اتفاقي دی: ځکه که ذکر او دُبر سره مسه کړل سي، نو هم اودس ماتیږي. او د بلا حائل مطلب دا دی چې د دواړو شرمګاوو تر مینځ هیڅ مانع او پرده نه وي، یا مانع خو وي لېکن هغه دومره نری او باریک وي کوم چې د جسم ګرمي (حرارت) نه سي منع کولای، نو په دې هر صورت کې اودس ماتیږي. (مراقی الفلاح مع الطحطاوی ص۵۱)

# فَصْلٌ (فِيْمَا لَايَنْقُضُ الْوُضُوْءَ)

(دا) فصل دی (په بيان کي د هغو شيانو کوم چي اودس نه ماتوي)

## په کومو شيانو سره اودس نه ماتيږي؟

﴿۱۰۲﴾ عَشَرَةُ أَشْيَاءَ لَا تَنْقُضُ الْوُضُوْءَ لس شيان اودس نه ماتوي ظُهُوْرُ دَمٍ لَمْ يَسِلْ عَنْ مَحَلِّهٖ (۱) داسي وينه ښکاره کېدل (راوتل) کوم چي له خپل ځايه نه وبهيږي.

**لغات:** ﴿لم يسل﴾ د ضرب له باب څخه د جحد صيغه ده چي په هغه کي د لَمْ په وجه فعل مضارع مجزومه ده. سَالَ يَسِيْلُ سَيْلًا: بهېدل.

**تشريح:** که د بدن پر کوم ځای وينه ښکاره سي يعني دومره وينه کوم چي بهيدونکې نه وي چي له خپل ځای څخه بلې خوا ته نه وبهيږي (يا په بله وينا دا چي صرف داغ يې ښکاره سي)، نو په داسي وينه سره اودس نه ماتيږي.

## د غوښي پرېکېدلو حکم

﴿۱۰۳﴾ وَ سُقُوْطُ لَحْمٍ مِنْ غَيْرِ سَيَلَانِ دَمٍ (۲) او غوښه لوېدل بغير له ويني بهېدلو څخه كَالْعِرْقِ الْمَدَنِيِّ الَّذِيْ يُقَالُ لَهٗ "رِشْتَهْ" لکه عرق مدنی کوم ته چي (په فارسي کي) "رشته" ويل کيږي.

**لغات:** ﴿العرق المدني﴾ چي هغه ته "رشته" هم ويل کيږي: دا يوه ناروغي ده کوم چي د دانې په شکل پر بدن ښکاره سي او دا دانه له رګ څخه را پورته سي او له هغې څخه هر وخت د چينچي په شکل څه شی راوځي. او د دې نسب يې د مدينه منوره وطرف ته ځکه کړی دی چي دا ناروغي په مدينه منوره کي زياته وه. (شفاء الارواح بحوالة طحطاوي)

**تشريح:** که د يو چا له بدن څخه غوښه پرې سي ولوېږي او وينه نه وبهيږي، نو اودس نه ماتيږي؛ لکه څرنګه چي په "رشته" نامي ناروغي کي هر وخت څه غوښه له بدن څخه لوېږي.

## له زخم یا پزې او غوږ څخه د چینجي را وتلو حکم

﴿۱۰۴﴾ وَخُرُوجُ دُودَةٍ مِنْ جُرْحٍ وَأُذُنٍ وَأَنْفٍ (۳) او (همدارنګه اودس نه ماتوي) د چینجي راوتل له زخم او غوږ او پزې څخه.

**لغات:** ﴿دودة﴾ چینجی، جمع: دُوْدٌ و دِیْدَانٌ. ﴿جُرْح﴾ زخم، پرهار، جمع: جُرُوْحٌ. ﴿أُذن﴾ غوږ، جمع: آذان. ﴿أَنف﴾ پزه، جمع: أُنُوْفٌ و آنَافٌ.

**تشریح:** که له زخم څخه چینجی داسې را ووځي چې پر هغه څه نجاست مثلاً وینه یا د موادو اثر نه وي، نو محض د چینجي په را وتلو سره اودس نه ماتیږي، او که چیرې د مخ یا د شا د لارې (قُبل یا دُبر) څخه چینجي یا بل شی را ووځي، نو په دې سره اودس ماتیږي، برابره ده په را وتونکي شي باندې د نجاست اثر وي او که نه وي. (در مختار ج:۱، ص:۲۳۷، ط: دار الکتاب، کتاب المسائل: ۱۵۲)



## له پزې یا سترګې څخه را وتونکي اوبه

**مسئله (۱):** د سخت زکام په وخت کې له پزې څخه را وتونکي اوبه، همدارنګه د سترګو د خوږېدلو په وخت کې را وتونکي اوبه ناقضِ وضوء نه دي، خو که دا ثابته شي چې دا اوبه دننه له یو زخم څخه را وځي، نو یقیناً اودس ماتوي. (کتاب المسائل ص: ۱۵۰)

**مسئله (۲):** هغه اوبه کوم چې د پیازو په وجه، یا د سختې ګرمۍ په وجه، یا د دارړمې، یا د ترخو رانجو په وجه له سترګو څخه ووځي، په هغه سره اودس نه ماتیږي. (در مختار ج:۱، ص: ۲۵۰، ط: دار الکتاب)

## له غوږ څخه را بهیدونکي مواد، وینه یا اوبه

**مسئله (۳):** که له غوږ څخه مواد یا وینه را وبهیږي او هغه حصې ته را ورسیږي چې په غسل کې یې پرېولل فرض دي، نو اودس ماتیږي او که له غوږ څخه صرف اوبه را ووځي، نو دې ته به کتل کیږي چې دا اوبه په تکلیف او درد سره را وتلې دي او که بغیر له تکلیفه، که بغیر له تکلیف او درد څخه را وتلې وي، نو اودس نه ماتیږي او که تکلیف او درد ورسره وي، نو اودس ماتیږي.

**مسئله (۴):** که د ښځې یا سړي له تیو یا له نامه (نوم) څخه د یو داخلي ناروغۍ په وجه اوبه را ووځي، نو اودس یې ماتیږي. (شامي ج:۱، ص: ۲۵۱، ط: دار الکتاب، کتاب المسائل ص: ۱۵۱)

## خپله شرمګاه یا ښځه مسه کول

﴿۱۰۵﴾ وَمَسُّ ذَكَرٍ وَمَسُّ امْرَأَةٍ (۴) او (اودس نه ماتوي) د ذکر مسه کول (۵) او د ښځې مسه کول.

**تشریح:** که اودس لرونکی کس خپل ذکر مسه کړي یعنې لاس ور وړي، نو اودس یې نه ماتیږي، برابره د لمانځه په حالت کې یې مسه کړي یا له لمانځه څخه بهر یې مسه کړي، همدارنګه که اودس

لرونکی کس خپلې ښځې ته لاس ور وړي، یا مچه ځنې واخلي، یا ښځه خاوند مسه کړي او مذي وغیره نه ووځي، نو په دې سره هم اودس نه ماتیږي. (طحطاوی علی مراقی الفلاح ص:۵۱)

## له ډکې خولې څخه کم قی وهل

﴿١٠٦﴾ وَقَيْءٌ لَا يَمْلَأُ الْفَمَ (۶) او (اودس نه ماتوي) داسې قی کوم چې په ډکه خوله نه وي.

**تشریح**: که څوک داسې قی ووهي کوم چې په ډکه خوله نه وي، نو په دې سره اودس نه ماتیږي او که په ډکه خوله وي، نو اودس ماتوي. لکه څرنګه چې د دې پوره تفصیل په ﴿۹۶﴾ نمبر مسئله کې تېر سو.

## د بلغمو قی وهل

﴿١٠٧﴾ وَقَيْءُ بَلْغَمٍ وَلَوْ كَثِيْرًا (۷) او د بلغمو قی که څه هم ډېر وي (یعني په ډکه خوله وي).

**لغات**: ﴿بلغم﴾ خراشکي، خرپ، ګروړې (ګروبی). قال فی المعجم: (البلغم): المنعقد من اللعاب والمخاط المفرز من المجاری التنفسیة.

**تشریح**: صاحب د کتاب رحمه الله فرمایي چې د خالص بلغمو په قي سره هم اودس نه ماتیږي، هغه که هر څومره ډېر وي.



**مسئله**: که په بلغمو یا د پزې په ګرنګو کې څه کلکه وینه را ووځي، نو په دې سره هم اودس نه ماتیږي او که بهېدونکې وینه ور سره راووځي یا کلکه وینه په ډکه خوله را ووځي، نو اودس ماتیږي. (شامی ج:١، ص:٢٣٩، ط: دار الکتاب، کتاب المسائل ص:١۵١)

## د ناستې په حالت کې بیدېدل

﴿١٠٨﴾ وَتَمَايُلُ نَائِمٍ احْتَمَلَ زَوَالَ مِقْعَدَتِهِ (۸) او (اودس نه ماتوي، دناست) بیده کس داسې کږېدل (ښورېدل) چې (له ځمکې څخه) د هغه د مقعدې دلیرې کېدلو (صرف) احتمال وي.

**لغات**: ﴿تمایل﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: په تګ وغیره کې کږېدل او ټال خوړل، په ناز و نخره تلل، زنګېدل.

**تشریح**: مثلاً که څوک د ناستې په حالت کې (یعني چې مقعدې پر ځمکه لګېدلې وي) بیده سي او په همدې د خوب په حالت کې بار، بار د ځمکې وطرف ته کوږ سي، چې د هغه پر بناء له ځمکې څخه د

مقعدې د پورته کېدلو احتمال وي. يعني په يقيني توګه مقعده له ځمکې څخه پورته سوې نه وي، نو په دې سره هم اودس نه ماتيږي.

﴿۱۰۹﴾ وَنَوْمُ مُتَمَكِّنٍ (۹) او (اودس نه ماتوي) خوب د هغه کس کوم چې پر ځمکه ځان ټينګ (تکيه) کړی وي (يعني مقعده يې د ځمکې سره ټينګه لګېدلې وي) وَلَوْ مُسْتَنِدًا إِلَى شَيْءٍ لَوْ أُزِيلَ سَقَطَ که څه هم ده وربو داسي شي ته تکيه وهلې وي چې که هغه شی ليرې کړی سي نو دئ به ولوېږي عَلَى الظَّاهِرِ فِيهِمَا د ظاهر روايت (ظاهر مذهب) مطابق په دې دواړو صورتونو کي (اودس نه ماتيږي)

**لغات:** فيهما: د هما ضمير مرجع مخکنۍ مسئله او دغه مسئله ده يعني "تمايل نائم" او "نوم متمکن". (انوار الايضاح)

**تشريح:** مثلاً که څوک دېوال يا بالښت يا مثلاً د موټر سيټ او يا داسي بل شي ته تکيه وکړي چې دواړه کوناټي يې له ځمکې يا سيټ څخه پورته نه وي بلکي ورسره لګېدلي وي او په همدې حالت کي داسي بې خبره بيده سي چې که هغه شی څني ليرې کړی سي، دئ لوېږي. نو په داسي صورت کي د ظاهر مذهب مطابق د ده اودس نه ماتيږي.

خو متأخرينو فقهاء احنافو په داسي صورت کي احتياطاً د اودس ماتېدلو فتویٰ ورکړې ده او که داسي د بې خبرۍ خوب نه وي. نو بالاتفاق اودس نه ماتيږي. (فتح القدير ج:۱، ص:۴۷، کتاب المسائل: ۱۵۴)

## د خوب په حالت کي بيدېدل

﴿۱۱۰﴾ وَنَوْمُ مُصَلٍّ (۱۰) او (اودس نه ماتوي) خوب د لمونځ کونکي وَلَوْ رَاكِعًا أَوْ سَاجِدًا عَلَى جِهَةِ السُّنَّةِ که څه هم هغه د رکوع يا سجدې په حالت کي وي د سنت طريقې مطابق (يعني پر سنت طريقه رکوع او سجده کونکی وي) وَاللهُ الْمُوَفِّقُ او صرف الله تعالیٰ توفيق ورکونکی دی.

**تشريح:** که څوک د لمانځه په حالت کي بيده سي، نو په دې سره اودس نه ماتيږي. تر دې چې که د رکوع يا د سجدې په حالت کي بيده سي. نو هم يې اودس نه ماتيږي. خو شرط دا دی چې سجده به په سنت طريقه سره وي يعني نس به يې له ورنو څخه جلا وي همدارنګه لاسونه (بازوګان) به يې له

بغلو څخه ليري وي، لهذا که دسنت طريقې په خلاف سجده کوي او په هغه کي بيده سي، نو اودس يې ماتيږي.



## ښځه د سجدې په حالت کي بيديدل

**مسئله**: که ښځه په سجده کي بيده سي چي د هغې په حق کي أفضل او أستر دا دي چي نس يې د ورنو سره لګېدلی وي، نو په دې حالت کي په بيديدلو سره اودس ماتيږي؛ ځکه په دې حالت کي هم اندامونه سستيږي، او که نس له ورنو څخه جلا وي کوم چي د سړيو د سجدې هيئت دي، نو اودس نه ماتيږي.

د احنافو په نېز د لمانځه په حالتونو يعني په ولاړه، ناسته رکوع او سجده کي چي پر کوم حالت هم بيده سي، برابره ده په لمانځه کي بيده سي يا د لمانځه څخه بهر، اودس نه ماتيږي. (البحر الرائق ج:۱، ص:۳۹، کتاب المسائل ص،۱۵۶، شامي ج:۱، ص: ۲۴۳، ط: بيروت)

## که مريض کس د ناستي په لمانځه کي بيده سي؟

**مسئله**: که څوک د مرض او کمزوری له کبله په ناسته لمونځ کوي او په همدې حالت کي بيده سي، نو اودس يې ماتيږي. (شامي ج:۱ ،ص: ۲۴۴، ط: بيروت. کتاب المسائل ص: ۱۵۶)



# فَصْلٌ (فِيمَا يُوجِبُ الْاِغْتِسَالَ)

(دا) فصل دی (په بیان کې د هغو شیانو کوم چې غسل کول واجبوي)

**تشریح:** مخکې تر دې یې داوداسه مسئلې او احکام بیان کړل، اوس دغسل مسئلې بیانوي او دلته اول هغه شیان بیانوي چې د هغوی په سبب غسل واجبیږي.

## مني په شهوت سره وتل

﴿۱۱۱﴾ يَفْتَرِضُ الْغُسْلُ بِوَاحِدٍ مِنْ سَبْعَةِ أَشْيَاءَ فرض کیږي غسل په (واقع کېدلو د) یوه شي سره له اُوو شیانو څخه خُرُوجُ الْمَنِيِّ إِلَى ظَاهِرِ الْجَسَدِ (۱) د مني وو راوتل د بدن ښکاره حصې ته إِذَا انْفَصَلَ عَنْ مَقَرِّهٖ بِشَهْوَةٍ مِنْ غَيْرِ جِمَاعٍ کله چې بغیر له جماع په شهوت سره له خپل قرار ځای (قرارګاه) څخه را جلا سوي وي.

**لغات:** ﴿غُسل﴾ د غین په ضمه سره: پر ټوله بدن اوبه بهول (بیول)، او د غین په فتحه سره غَسل: پرېولل، یعني خیره وغیره په اوبو سره لیرې کول. ﴿جماع﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: د ښځې سره کوروالی. ﴿المنی﴾ هغه سپینې او سختې اوبه د ګرنګو په څېر چې د انسان له بدن څخه راوځي او تر وتلو وروسته یې د انسان طبعي خواهش او شهوت ختمیږي. ﴿مَقَرّ﴾ د ظرف صیغه ده: د درېدلو ځای، د مني وو ځای په نر کې ملا ده او په ښځه کې سینه ده. ﴿شهوة﴾ د لذت د درک مېل، زورور نفساني خواهش کوم چې هر قابلِ رغبت شي ته انسان مائل کوي. جمع: شَهَوَاتٌ.

**تشریح:** که مني له خپل ځایه په شهوت سره را جلا سي، نو وروسته د هغوی وتل که څه هم بلا شهوته وي، بیا هم غسل واجبیږي، مثلاً سړی د مني وو له راوتلو څخه مخکې خپل ذکر ونیسي او کله چې شهوت ختم سي، بیا یې ایله کړي او مني ووځي، نو هم غسل واجبیږي د راجح قول مطابق.

(در مختار ج:۱، ص:۲۶۵، ط، دار الکتاب)

من غیر جماع: یعني مخکنی حکم هغه وخت دی کله چې د مني وتل بغیر له جماع څخه وي، مثلاً احتلام کېدل یا ښځې لو داسې نورو ته په کتلو سره مني وتل؛ ځکه د وطي او جماع په صورت کې د غسل د وجوب لپاره مني وتل شرط نه دي. (طحطاوي علی مراقی الفلاح ص:۵۲)

## حشفه پټېدل

﴿۱۱۲﴾ وَتَوَارِيْ حَشَفَةٍ وَقَدْرِهَا مِنْ مَقْطُوْعِهَا (۲) او (دسري) حشفه پټېدل او (يا) د حشفه پرېکړل سوي کس د حشفې په اندازه (ذکر) پټېدل (داخلېدل) فِي أَحَدِ سَبِيْلَيْ آدَمِيٍّ حَيٍّ په يوه د دوو لارو کي (يعني په قُبُل يا دُبُر کي) د ژوندي انسان (يعني چي د ژوندي انسان د مټيازو يا غائطو په لاره کي د سړي حشفه اد ذکر سرا پټ سي. يا د مقطوع الحشفة کس يعني د چا چي حشفه پرېکړل سوي وي د حفه له پاته ذکر څخه د حشفې مقدار پکښي پټ سي، نو غسل فرض کېږي).

**لغات:** ﴿تواري﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: پټېدل، نهامېدل (نيامېدل). ﴿حشفة﴾ د ذکر يعني د نارينه اندام سر، جمع: حِشَافٌ. ﴿آدمي﴾ انسان، د آدمي په قيد سره چارپای او جنات ووتل. ﴿حيّ﴾ژوندی، په دې قيد سره مړه ووتل.

**تشريح:** کله چي د سړي حشفه يعني د ذکر سر د ژوندي انسان (برابره ده ښځه وي او که نر وي) په قُبل يا دُبر کي پټ سي، نو غسل واجبېږي، برابره ده مني ووځي او که نه ووځي. او د کوم چا حشفه چي نه وي مثلاً پرېکړل سوې وي، نو بيا د حشفه په اندازه حصه که پټه سي، نو غسل واجبېږي. (همدارنګه که په لواطت کي د لوطي ملعون صرف حشفه پټه سي. نو پر فاعل او مفعول به دواړو غسل واجبېږي. برابره ده انزال وسي او که نه وسي المحيط البرهاني ج:۱. ص: ۲۲۷. کتاب المسائل ص: ۱۶۱)

## د مړه يا چارپای سره وطي کول

﴿۱۱۳﴾ وَإِنْزَالُ الْمَنِيِّ بِوَطْئِ مَيْتَةٍ أَوْ بَهِيْمَةٍ (۳) او د مني وو انزالېدل په وطي کولو سره د مړې ښځي يا چارپای سره.

**لغات:** ﴿ميتة﴾ مړه ښځه. همدارنګه مردار سوي حيوان ته هم ويل کېږي. ﴿بهيمة﴾ چارپای، د څلورو پښو حيوان، جمع: بَهَائِم.

**تشريح:** که څوک د مړه کس سره وطي وکړي. يا د يو چارپای سره وطي وکړي. نو په دې صورت کي د غسل واجبېدلو لپاره انزال شرط دی: بغير له انزاله صرف په وطي سره غسل نه واجبېږي: ځکه دلته په شهوت کي قصور دی او په انزال سره شهوت تامه موجودېږي. (مراقی الفلاح ص: ۵۲)

## تر خوب وروسته د اوبو لیدل

﴿۱۱۴﴾ وَوُجُوْدُ مَاءٍ رَقِيْقٍ بَعْدَ النَّوْمِ (۴) او له خوب څخه (تر ویښېدو) وروسته د نریو (نرمو) اوبو موجودېدل إِذَا لَمْ يَكُنْ ذَكَرُهُ مُنْتَشِرًا قَبْلَ النَّوْمِ کله چې له خوب څخه مخکې د هغه ذَکَر ولاړ (شک) نه وي.

**لغات:** ﴿رقیق﴾ باریک، نری، جمع: أَرِقَّاء.

**تشریح:** که څوک له خوب څخه راوېښ سي او پر جامو لوندوالی ووېني، که څه هم خوب ورته یاد نه وي یا په خوب کې انزال ورته یاد نه وي، نو هم پر هغه غسل واجبیږي.

**فایده:** په عبارت کې د دې قید "إذالم یکن ذکره الخ" فایده دا ده چې که له بیدېدو څخه مخکې ذَکَر منتشر وي او بیا له راویښېدو څخه وروسته لوندوالی ووېني، نو ممکنه ده چې هغه مذي وي چې د هغه په وجه غسل نه واجبیږي. (مراقی الفلاح ص: ۵۴)

﴿۱۱۵﴾ وَوُجُوْدُ بَلَلٍ ظَنَّهُ مَنِيًّا (۵) او (پر جامه) داسې لوندوالی موجودېدل چې پر هغه د منې وو گومان وکړي بَعْدَ إِفَاقَتِهٖ مِنْ سُكْرٍ وَإِغْمَاءٍ وروسته تر په سد کېدلو (...مېدلو) له نشې او بې هوښی څخه (یعني له نشې او بې هوښی څخه تر وتلو او پرسد کېدلو وروسته داسې لوندوالی موجودېدل هم غسل فرض کوي چې غالب گومان پکښې دا وي چې دا به مني وي).

**لغات:** ﴿إفاقة﴾ د افعال د باب مصدر دی: روغېدل، په هوښ کې راتلل (یا په بله وینا پرسد کېدل). نشه ختمېدل. ﴿بَلَل﴾ د نصر له باب څخه اسم مصدر دی: لوندوالی. منیًا: د دې قید فایده دا ده چې که گومان یې د مذي وي، نو غسل نه واجبیږي.

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چې که څوک له بې هوښی یا د نشې له ختمېدلو څخه وروسته پر خپلو جامو داسې لوندوالی ووېني کوم چې یې هغه مني گڼي. نو پر هغه غسل واجبیږي. (مراقی الفلاح ص: ۵۴)

## د حیض او نفاس پر ختمېدلو غسل واجبېدل

﴿۱۱۶﴾ وَبِحَيْضٍ وَنِفَاسٍ (۶) او (غسل فرض کیږي) په (ختمېدلو د) حیض (۷) او نفاس سره (یعني د حیض او نفاس تر ختمېدلو وروسته هم غسل فرض کیږي) وَلَوْ حَصَلَتِ الْأَشْيَاءُ الْمَذْكُوْرَةُ قَبْلَ

الْإِسْلَامِ که څه هم دا ذکر سوي شيان تر اسلام مخکې حاصل سوي (واقع سوي) وي فِي الْأَصَحِّ د صحيح ترين قول مطابق (يعني زيات صحيح روايت دا دی چې که څه هم دغه مذکوره څو شيان تر اسلام راوړلو مخکې واقع سوي وي. نو بيا هم ا تر اسلام راوړلو وروسته اغسل واجيبږي).

**تشریح:** مسئله دا ده چې کله ښځه له حيض يا نفس څخه پاکه سي، نو پر هغې غسل فرض دی. تر دې وروسته فرمايي چې که څه هم مذکوره شيان (يعني کوم شيان چې پورته د غسل موجبات بيان سول مثلاً حشفه پټېدل. جنابت. حيض او نفاس... که څه هم دا) تر اسلام راوړلو مخکې سوي وي، نو هم د صحيح قول مطابق تر اسلام راوړلو وروسته غسل واجيبږي، لنډه دا چې که يو کافر مسلمان سي او هغه د جنابت په حالت کې وي، نو پر هغه غسل کول واجيبږي؛ ځکه دلمونځ کولو په وخت کې پاکي ضروري ده او د کفر په حالت کې تر جنب کېدلو وروسته غسل نه کول ګواکې د جنابت په حالت کې باقي پاتېدل دي، لهذا کله چې د جنابت حالت باقي پاته دی. نو اوس غسل کول واجب دي. همدا مفتیٰ به قول دی او غيرِ مفتیٰ به قول دا دی چې غسل نه واجيبږي؛ ځکه غسل کول يو شرعي حکم دی او کافر د کفر په حالت کې په احکامو مکلف نه دی. (تبيين الحقائق ج:۱. ص:۱۸. البحر الرائق ج:۱. ص:۶۸)

## مړي ته د غسل ورکولو حکم

﴿۱۱۷﴾ وَيَفْتَرِضُ تَغْسِيْلُ الْمَيِّتِ كِفَايَةً او فرض دي مړي ته غسل ورکول د فرضِ کفايه په توګه (يعني مړي ته غسل ورکول فرض کفايي دي).

**تشریح:** مسلمان مړي ته غسل ورکول فرض کفايي دي يعني که څو خلک دا کار وکړي، نو د نورو خلګو له غاړي څخه دا فرض ساقطيږي، او که يو هم غسل نه ورکړي، نو ټول له ګنهګاره کيږي، او له غسل ورکولو څخه مخکې پر مړي د جنازې لمونځ کول جائز نه دي.

ښکاره دي وي چې باغي او کافر ته به غسل نه ورکول کيږي، همدارنګه شهيد ته به غسل نه ورکول کيږي.



# فَصْلٌ (فِيْمَا لَايَجِبُ الْاِغْتِسَالُ مِنْهُ)

(دا) فصل دی (په بیان کي د هغو شیانو چي له هغوی څخه غسل نه واجبیږي)

## د مذي او ودي حکم او تعریف

﴿۱۱۸﴾ عَشَرَةُ أَشْيَاءَ لَا يُغْتَسَلُ مِنْهَا لس (۱۰) شیان دي چي غسل نه ورڅخه کیږي (یعني چي د هغوی په وجه غسل نه واجبیږي) مَذْيٌ وَوَدْيٌ وَ احْتِلَامٌ بِلَا بَلَلٍ (۱) مذي (۲) ودي (۳) او احتلام بېله لوندوالي.

**تشریح**: په دې عبارت کي درې مسئلې بیان سوي دي: ① د مذي په وتلو سره غسل نه واجبیږي.

**د مذي تعریف**: لفظ د مذی په عربي کي د میم په زور او د ذال په سکون سره فصیح دی او په پښتو کي د میم په زور یا پېښ او د ذال په زېر سره ویل کیږي، مذي هغه نری اوبه دي کوم چي د ښځي سره دلوبي کولو په وخت کي د متیازو له نالی څخه وځي، د هغه وتل ځوک خاص نه احساسوي، مذي له مني وتلو څخه مخکي وځي، د دې لپاره چي د مني وو په وتلو کي څه خنډ رانه سي، د مذي په وتلو سره د طبیعت جوش نور زیات سي.

② د ودي په وتلو سره هم غسل نه واجبیږي.

**د ودي تعریف**: دا اوبه عموماً د طبعي مرض او عارض پر بناء له متیازو څخه مخکي یا وروسته وځي، دا د شکل او صورت په اعتبار سره د مني وو په څېر وي، د دې وتل هم نه احساسیږي.

③ که څوک احتلام سي مثلاً په خوب کي ووینې چي د ښځي سره جماع کوي او انزال هم سي، خو تر ویښېدلو وروسته پر جامو د مني وو اثرات نه ویني، نو پر هغه غسل واجب نه دی؛ ځکه که انزال سوی وي، نو لوندوالی او اثرات یې چیري دي؟. (مراقی الفلاح علی الطحطاوی ص: ۵۵)



## یوه مسئله او د هغې شپږ صورتونه

**مسئله**: کله چي سړی له خوب څخه را ویښ سي او پر خپل ځای لوندوالی ویني، نو د دې مسئلې شپږ صورتونه دي:

① اول صورت دا دی چي احتلام یې په یاد وي او دا یې یقین وي چي دا مني دي.

② احتلام يې په یاد نه وي او دا يې یقین وي چې دا مذي دي.
③ احتلام يې په یاد وي او په دې کې شکمن وي چې دا مني دي او که مذي دي.
په دې پورتني دريو سره صورتونو کې زموږ د علماؤ په اتفاق سره پر هغه غسل واجبیږي: ځکه په اول صورت کې خو د غسل وجوب ښکاره دی. او په دویم او درېیم صورت کې ځکه غسل واجبیږي چې دا احتمال سته چې مني به د هوا، یا د بدن د ګرمۍ په سبب نرۍ سوې وي، او داسي به معلومیږي لکه مذي. یاد مذي کېدلو او مني کېدلو فرق به يې نه معلومیږي.
④ څلورم صورت دا دی چې احتلام يې په یاد نه وي او دا يې یقین وي چې دا مني دي.
⑤ احتلام يې په یاد نه وي او شکمن وي چې دا مني دي که مذي.
په دې دوو صورتونو کې هم په اتفاق سره احتیاطاً پر هغه غسل واجبیږي.
⑥ شپږم صورت دا دی چې احتلام يې په یاد نه وي خو دا يې یقین وي چې دا مذي دي. نو په دې صورت کې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز غسل واجب نه دی، لیکن د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې صورت کې هم غسل واجب دی.

## له ولادت څخه وروسته وینه نه لیدل

﴿۱۱۹﴾ وَوِلَادَةٌ مِنْ غَيْرِ رُؤْيَةِ دَمٍ بَعْدَهَا فِي الصَّحِيْحِ (۴) او زېږونه (بچی زېږول) بغیر له ویني لیدلو څخه تر زېږوني وروسته، د صحیح قول مطابق (یعني چې د بچي تر پیدایښت وروسته وینه ونه لیدل سي. نو هم د صحیح قول مطابق پر ښځي غسل نه واجبیږي).

**تشریح**: که د ښځي بچی پیدا سي او وینه ښکاره نه سي، نو د صحیح قول مطابق پر هغې غسل نه واجبیږي. دا د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله مذهب دی، خو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز احتیاطاً پر داسي ښځي غسل واجبیږي، لکه په ﴿۹۴﴾ نمبر مسئله کې چې هم دا خبره ذکر سوه: ځکه د پیدایښت په وخت کې عموماً څه نا څه وینه ښکاره کیږي. (شفاء الارواح)

## د مانع لذت شي حکم

﴿۱۲۰﴾ وَإِيْلَاجٌ بِخِرْقَةٍ مَانِعَةٍ مِنْ وُجُوْدِ اللَّذَّةِ (۵) او ذکر داخلول (ننه کول) د داسي توکر (ګوډر) سره کوم چې د لذت له موجودېدلو (احساسولو) څخه مانع (منع کونکی) وي.

**لغات**: ﴿إيلاج﴾ د افعال د باب مصدر دی: داخلول، ننه ایستل. ﴿خرقة﴾ د توکر یوه ټوټه (ګوډر). رېښکی.

**تشریح**: یعني که څوک پر خپل ذکر توکر وغیره وپېچي او جماع وکړي، نو که توکر دومره پنډ وي چې د فرج ګرمي او لذت (خوند) ده ته محسوس نه سي، نو تر څو چې انزال نه سي. غسل نه پرې واجبیږي، او که توکر دومره نری وي چې د فرج حرارت او لذت ور ته محسوس سي، نو که څه هم انزال نه سي. غسل پرې واجبیږي. او احتیاط په دې کې دی چې په دواړو صورتونو کې غسل واجب سي. (شفاء الارواح)

## د حقنه حکم

﴿۱۲۱﴾ وَحُقْنَةٌ (۶) او حقنه (اماله) کول (په دې سره هم غسل نه واجبيږي).

**لغات:** ﴿حقنة﴾ اماله، دستور، وضاحت به يې په تشريح کې وسي.

**تشريح:** حقنه ويل کيږي د پيچکارۍ وغيره په ذريعه د شا (مقعدي) لخوا نس ته دوا رسول يا فضلات خارجول (کوم ته چې اماله وغيره وايي او عموماً د تبضيت په صورت کې دا طريقه اختيارول کيږي)، په دې سره هم غسل نه واجبيږي. (ايضاح الاصباح)

## په سبيلينُ کې ګوته وغيره داخلول

﴿۱۲۲﴾ وَإِدْخَالُ إِصْبَعٍ وَنَحْوِهِ فِيْ أَحَدِ السَّبِيْلَيْنِ (۷) او ګوته او (يا) د ګوتې په شان (بل) شی داخلول په يوه لاره کې د دوو لارو (يعني په قُبل يا دُبُر کې).

**تشريح:** يعني ګوته يا د ګوتې په څېر بل شی مثلاً مصنوعي ذکر وغيره که په قُبل يا دُبر کې داخل کړل سي نو تر څو چې انزال نه سي، غسل نه پرې واجبيږي.

## د چارپای يا مړې ښځې سره وطي کول

﴿۱۲۳﴾ وَوَطْءُ بَهِيْمَةٍ أَوْ مَيْتَةٍ مِنْ غَيْرِ إِنْزَالٍ (۸) او د يو چارپای (۹) يا مړې ښځې سره بېله انزاله وطي کول.

**تشريح:** که څوک د چارپای يا د مړې ښځې سره وطي وکړي او انزال نه سي، نو هم غسل نه واجبيږي.

## د باکره ښځې سره د کور والي حکم

﴿۱۲۴﴾ وَإِصَابَةُ بِكْرٍ لَمْ تَزَلْ بَكَارَتُهَا مِنْ غَيْرِ إِنْزَالٍ (۱۰) او د باکره انجلۍ سره بېله انزاله دا سې جماع کول چې د هغې (پرده د) بکارت زائل نه سي (څکه کله چې د بکارت پرده زائله نه سي، نو د دې مطلب دا سو چې د سړي ذکر د ننه فرج ته داخل نه سو او حشفه يې پکښې غائب نه سوه. نو څکه تر څو چې انزال سوی نه وي، غسل نه واجبيږي).

**لغات:** ﴿إصابة﴾ د افعال د باب مصدر د، د دې څو معناوې دي: رسېدل، لګېدل، سيده کول، نه خطا کېدل او داسې نور.

**تشريح:** که څوک د باکره ښځې وشرمګاه ته ذکر داسې داخل کړي چې د هغې د بکارت پرده څيرې نه سي، نو هم غسل نه پرې واجبيږي تر څو چې انزال نه سي. (مراقي الفلاح ص:۵۵)

# فَصْلٌ (فِيْ بَيَانِ الْغُسْلِ)

(دا) فصل (په بیان کي د غسل) دی

**تشریح**: په دې فصل کي د غسل فرائض بیانوي او د ټولو فرائضو خلاصه دا ده چي د بدن کومي حصې ته بلا تکلیفه اوبه رسول ممکن وي، هلته به اوبه رسوي، بیا هم دلته د تعلیم په غرض سره یې یوولس (۱۱) فرائض بیان کړي دي.

دلته له غسل څخه مراد فرض غسل دی، یعني د جنابت، حیض او نفاس غسل؛ ځکه چي په سنت (مسنون) غسل کي خوله او پزه پرېولل فرض نه دي بلکي سنت دي؛ ځکه سنت غسل له دې دواړو څخه بغیر هم اداء کیږي. (شفاء الارواح)

## د غسل فرائض

﴿۱۲۵﴾ يَفْتَرِضُ فِي الِاغْتِسَالِ أَحَدَ عَشَرَ شَيْئًا په غسل کي یوولس (۱۱) شیان فرض دي غَسْلُ الْفَمِ وَالْأَنْفِ وَالْبَدَنِ مَرَّةً (۱) پرېولل د خولې (۲) او (پرېولل) د پزې (۳) او (پرېولل) د (ټوله) بدن یو وار.

**لغات**: ﴿فم﴾ خوله، جمع: أَفْوَاهٌ.

**تشریح**: د خولې پرېوللو حد دا دی چي دننه ټوله خولې ته اوبه ورسول سي او د پزې پرېوللو حد دا دی چي د پزې بېخ (یا په بله وینا خیشوم) ته اوبه ورسول سي او ټوله بدن یو وار پرېولل فرض دي.

دلته یو اشکال واردیږي چي د ټوله بدن په پرېوللو کي خو د پزې او خولې پرېولل هم راځي: ځکه دا دواړه هم په بدن کي داخل دي، نو بیا جلا د دوی ذکر کولو ته څه ضرورت دی؟. د دې جواب دا دی چي که څه هم دا دواړه په بدن کي داخل دي، خو څرنګه چي په دې دواړو کي اختلاف دی. د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَااللّٰه په نېز خوله او پزه پرېولل په فرض غسل کي هم سنت دي، نو ځکه د دوی په جلا بیانولو سره یې دا ښکاره کړه چي دا دواړه هم د احنافو په نېز فرض دي.

## د نا سُنته کس حکم

﴿۱۲۶﴾ وَدَاخِلِ قُلْفَةٍ لَا عُسْرَ فِيْ فَسْخِهَا (۴) او (پرېولل) د ذکر د سر پوستکي دننه حصې (کله) چي د هغه په لیري کولو (خلاصولو) کي تکلیف نه وي.

**لغات:** ﴿قُلفة﴾ او قَلَفَةٌ: هغه پوستکی چې د ناسُنته کس پر ذَکَر وي چې په هغه کي حشفه يعني د ذکَر سر پټ وي، او دا پوستکی د سنت کېدلو پر مهال پرېکول کيږي. جمع: قُلَفٌ، لکه د غُرْفَةٌ جمع چي غُرَفٌ ده. ﴿عُسر﴾ د سمع له بابه اسم مصدر دی: سختي، تکليف او ستونزه.

**تشريح:** کوم څوک چې تر اوسه سنت کړی سوی نه وي او هغه د جنابت غسل کوي، نو که د حشفه د پاسه پوستکی (قلفة) له څه مشقت او ستونزي څخه بغير ليري کول او حشفه ښکاره کول ممکن وي، نو هغه ته اوبه رسول واجب دي، او که داسي کول ممکن نه وي مثلاً د دغه پوستکي (قلفة) سوری تنګ وي، نو د تکليف په خاطر اوبه ور رسول واجب نه دي؛ لکه په غوږو کي جوړ کړل سوي سوريان چي ډک او بند سي، نو د تکليف په وجه هغوی ته اوبه رسول واجب نه دي. (شفاء الارواح)

## د نُو سوري پر يولل

﴿۱۲۷﴾ وَ سُرَّةٍ (۵) او (پرېولل) د نُو (ناف).

**تشريح:** په غسل کي د نُو سوري ته اوبه رسول فرض دي، همدارنګه د بدن هر هغه سوري ته کوم چي ډک سوی او بند سوی نه وي لکه په را روان عبارت کي چې به ذکر سي، مثلاً په غوږو يا پزه کي جوړ کړل سوي سوريان چي په هغه کي غوږ والي (لښتي) يا نته وغيره اچول کيږي، هغوی ته اوبه رسول فرض دي، خو کله چي هغوی ډک سي او غوښه پکښي راسي، نو بيا اوبه ور رسول فرض نه دي.

﴿۱۲۸﴾ وَ ثُقْبٍ غَيْرِ مُنْضَمٍّ (۶) او (پرېولل) د داسي سوري کوم چي سره يوځای سوی (ډک سوی) نه وي (يعني د غوږو يا داسي بل ځای سوری کوم چي په غوښه ډک سوی نه وي).

**لغات:** ﴿ثقب﴾ سوری، جمع: أَثْقُبٌ وثُقُوبٌ وأَثْقَابٌ. ﴿منضم﴾ د انفعال له بابه مفعول دی: سره يو ځای سوی، سره مښتی.

**تشريح:** په تېر عبارت کي يې وضاحت وسو.

## په غسل کي د نر او ښځي د کوڅيو حکم

﴿۱۲۹﴾ وَدَاخِلِ الْمَضْفُوْرِ مِنْ شَعْرِ الرَّجُلِ مُطْلَقًا (۷) او (پرېولل) د سړي د څېل وودل سوو وربښتانو (کوڅيو) داخلي حصه مطلقاً (په هر حال کي. يعني برابره ده د سړي د وربښتانو بېخو ته اوبه ورسيږي، که نه. هغه به مطلقاً په هر حال کي د څېل وودل سوي وربښتان خلاصوي او دننی حصه به پرېولي) لَا الْمَضْفُوْرِ مِنْ شَعْرِ الْمَرْأَةِ إِنْ سَرَى الْمَاءُ فِيْ أُصُوْلِهِ نه (پرېولل) د ښځي د وودل سوي

ورېښتانو که چیري اوبه (دمغې) دورېښتانو بېخو ته ورسیږي.

**لغات**: ﴿المضفور﴾ دضرب له بابه اسم مصدر دی: وودل سوي او چوټې کړل سوي ورېښتان، کوڅې. ﴿سَرَى﴾ دضرب دباب ماضي ده: تلل، سرایت کول (ننوتل). ﴿أصول﴾ جمع دأصلٌ ده چي دهغه یوه معنیٰ ده: بېخ.

**تشریح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې ذکر سوي دي: ① که یو سړي اوږده ورېښتان پرې ایښي وي او له هغوی څخه یې چوټې یا کوڅې جوړي کړي وي. نو دجنابت په غسل کي هغه وودل سوي ورېښتان خلاصول فرض دي، محض دورېښتانو بېخونه لندول کافي نه دي. ② خو پر ښځې د جنابت، حیض او نفاس په غسل کي دچوټیو او کوڅیو خلاصول ضروري نه دي. صرف دورېښتانو لندول هم کافي دي. خو دورېښتانو بېخو ته اوبه رسول فرض دي. یو بېخ به هم وچ نه پرېږدي او که بغیر له خلاصولو د ټولو ورېښتانو بېخو ته اوبه نه سي رسېدلای، نو هغوی دي خلاص کړي او ټوله دي پرېولي.

او که دسر ورېښتان وودل سوي نه وي، برابره ده خلاص وي یا دسر شا ته یې رل وي. نو ټوله ورېښتان لندول او ټوله بېخو ته اوبه رسول فرض دي. که یو ورېښتی هم وچ پاته سي یا دیوه ورېښتي بېخ ته اوبه نه ورسیږي، نو غسل نه کیږي. (الفتاوی التاتارخانیه ج:۱، ص:۲۵۷، مسئله:۳۷۱، در مختار مع الشامي ج:۱، ص:۱۴۲)

## دږیري، برېتو وغیره څرمن ته اوبه رسول

﴿۱۳۰﴾ وَبَشْرَةِ اللِّحْيَةِ (۸) او (پرېولل) دږیري د (لاندي) پوستکي وَبَشْرَةِ الشَّارِبِ وَالْحَاجِبِ (۹، ۱۰) او دبرېتو او دورځو د (لاندي) پوستکي وَالْفَرْجِ الْخَارِجِ او (پرېولل) د دباندیني فرج.

**لغات**: ﴿بشرة﴾ دالفظ دباء او شین په "فتحه" سره دی: دبدن دپوستکي ښکاره حصه، ظاهري پوستکی. ﴿لحية﴾ ږیره، جمع: لُحَى. ﴿شارب﴾ برېت، جمع: شَوَارِب. ﴿حاجب﴾ وروځه، د سترګو دپاسه ورېښتان.

**تشریح**: دخپلي ږیري دورېښتانو بېخ او مینځ ته اوبه رسول فرض دي، همدارنګه دبرېتو او وروځو دورېښتانو بېخ او مینځ ته اوبه رسول فرض دي او پر ښځې دجنابت، حیض او نفاس په غسل کي دباندیني فرج پرېولل فرض دي؛ ځکه دباندیني فرج داسي دی لکه دباندیني خوله چي په مخ کي دهغه پرېولل فرض دي او داخلي فرج داسي دی لکه حلق چي دهغه پرېولل فرض نه دي. (انوار الایضاح، شناه ۳۱ رواج)



# فَصْلٌ فِيْ سُنَنِ الْغُسْلِ

(دا) فصل په (بیان د) سنتونو د غسل کې دی

## د غسل سنت طریقه

﴿۱۳۱﴾ يُسَنُّ فِي الْاِغْتِسَالِ اِثْنَا عَشَرَ شَيْئًا په غسل کې دوولس (۱۲) شیان سنت دي الْاِبْتِدَاءُ بِالتَّسْمِيَةِ (۱) په بسم الله سره شروع کول وَالنِّيَّةُ (۲) او نیت کول وَغَسْلُ الْيَدَيْنِ اِلَى الرُّسْغَيْنِ (۳) او دواړه لاسونه تر مړوندو پورې پرېولل وَغَسْلُ نَجَاسَةٍ لَوْ كَانَتْ (۴) او نجاست پرېولل که چیرې (پر بدن) وو بِانْفِرَادِهَا یوازې (جلا) نجاست (د بانفرادها تعلق د غسل نجاسة سره دی، د قوله جملې معنیٰ دا ده چې: نجاست جلا پرېولل که چیرې پر بدن لګېدلی وو، یعنې له اودس او غسل څخه مخکې اول نجاست پرېولل، د دې لپاره چې بیا د اوبو لګېدلو په وجه نور منتشر نه سي) وَغَسْلُ فَرْجِهٖ (۵) او د خپل شرمګاه پرېولل ثُمَّ يَتَوَضَّأُ كَوُضُوْءِهٖ لِلصَّلٰوةِ فَيُثَلِّثُ الْغَسْلَ وَيَمْسَحُ الرَّأْسَ (۶) بیا دې اودس وکړي د لمانځه دا ودسه په څېر، نو درې، درې واره دې پرېولل وکړي او پر سر دې مسح وکړي (یعنې دا ودسه هر اندام دې درې، درې واره پرېولي او پر سر دې مسح هم وکړي. لکه څرنګه چې د لمانځه په اودسه کې کیږي) وَلٰكِنَّهٗ يُؤَخِّرُ غَسْلَ الرِّجْلَيْنِ اِنْ كَانَ يَقِفُ فِيْ مَحَلٍّ يَجْتَمِعُ فِيْهِ الْمَاءُ لیکن دئ به د پښو پرېولل ځنډوي که چیرې په داسې ځای کې ولاړ وي چې په هغه کې اوبه جمع کیږي ثُمَّ يُفِيْضُ الْمَاءَ عَلٰى بَدَنِهٖ ثَلَاثًا (۷) بیا دې درې واره پر خپل بدن اوبه وبهوي (توی کړي) وَلَوِ انْغَمَسَ فِي الْمَاءِ الْجَارِيْ اَوْ مَا فِيْ حُكْمِهٖ او که دئ غوټه سي په جاري (بهېدونکو) اوبو کې یا په داسې اوبو کې کوم چې د جاري اوبو په حکم کې وي وَمَكَثَ او (څه ګړۍ پکښې) پاته سي (یعنې په هغه اوبو کې د لږ ګړي لپاره درنګ وکړي) فَقَدْ

أَكْمَلَ السُّنَّةَ نو هغه سنت پوره کړی (یا په بله وینا: په داسې کولو سره سنت پوره کیږي: ځکه په غسل کې درې واره پر بدن اوبه بهول سنت دي. نو په تالاب کې چې غوټه ووهي او د څه ګړي لپاره په اوبو کې دننه ودریږي. نو په دې د دریو سنت اداء کیږي) وَيَبْتَدِئُ فِي صَبِّ الْمَاءِ بِرَأْسِهِ (۸) او د اوبو په بهولو کې دې له سر څخه شروع وکړي (اول دې پر سر اوبه توی کړي) وَيَغْسِلُ بَعْدَهَا مَنْكِبَهُ الْأَيْمَنَ ثُمَّ الْأَيْسَرَ (۹) او تر هغه وروسته دې راسته اوږه پرېولي (۱۰) بیا دې چپه اوږده (پرېولي) وَيَدْلُكُ جَسَدَهُ (۱۱) او خپل بدن دې مږي وَيُوَالِي غَسْلَهُ (۱۱) او خپل پرېولل دې پرلپسې کوي (یا په بله وینا غسل دې پرلپسې کوي: یعني د بدن ټوله اعضاء او اندامونه دې پرلپسې پرېولي. داسې نه چې د غسل په مینځ کې دومره ځنډ وکړي چې اندامونه یې وچ او بیا غسل شروع کړي. پرلپسې پرېولل سنت دي).

**لغات**: ﴿رُسغين﴾ تثنیه د رُسْغٌ ده: مړوند. ﴿فَرْج﴾ شرمګاه (پر قُبُل او دُبُر دواړو یې اطلاق کیږي. خو اکثره د قُبُل یعني د مخ د شرمګاه لپاره استعمالیږي)، قال صاحب المصباح: وَالْفَرْجُ مِنَ الْإِنْسَانِ يُطْلَقُ عَلَى الْقُبُلِ وَالدُّبُرِ؛ لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مُنْفَرِجٌ أَيْ مُنْفَتِحٌ وَأَكْثَرُ اسْتِعْمَالِهِ فِي الْعُرْفِ فِي الْقُبُلِ. ﴿يفيض﴾ د افعال د باب مضارع ده، افاض الماء افاضةً: اوبه بهول (تویول)، اوبه اچول. ﴿انغمس﴾ د انفعال د باب ماضي ده: غوټه کېدل، ډوبېدل. ﴿مكث﴾ د نصر د باب ماضي ده: درېدل، ځنډ کول (وخت تېرول)، درنګ کول. ﴿منكب﴾ اوږه (وږه)، جمع: مناكب. ﴿يُوالي﴾ پرله پسې کول، د کارونو په مینځ کې پرلپسې والی چې تر یوه وروسته سمدستي بل کول چې په مینځ کې یې څه ځنډ رانه سي.

**تشریح**: په دې عبارت کې د غسل سنت طریقه بیان سوې ده. تفصیل یې دا دی چې اول دې په زړه کې د غسل نیت وکړي (یعني په زړه کې دې دا اراده وکړي چې دا غسل د جنابت لیرې کولو لپاره کوم) او بسم الله دې ووایي، دواړه لاسونه دې تر مړوندو پوري پرېولي. بیا دې شرمګاه پرېولي. برابره ده پر شرمګاه نجاست وي او که نه وي. همدارنګه پر ورنو وغیره چې کوم ځای نجاست لګېدلی وي، هغه دې پرېولي. بیا دې اودس وکړي یعني خوله او پزه دې پرېولي. بیا دې مخ او لاسونه پرېولي او مسح دې وکړي او پښې دې پرېولي. بیا دې پر ټوله بدن اوبه وبهوي په دې توګه چې په ټوله بدن کې دیو وېښته په اندازه هم وچ ځای پاته نه سي، نو غسل پوره سو.

پر بدن داوبو اچولو طريقه مصنف رَحِمَهُ الله دا بيان کړې ده چې اول دې پر سر اوبه واچوي، بيا دې يې په راسته اوږه او بيا په چپه اوږه باندې واچوي. دويم قول دا هم نقل شوی دی چې اول دې په راسته اوږه باندې درې واره اوبه واچوي، تر دې وروسته دې يې په چپه اوږده باندې درې واره واچوي، بيا دې په سر باندې درې واره اوبه واچوي. درېيم قول دا دی چې اول دې په راسته اوږه باندې، بيا په سرباندې، بيا درې واره په چپه اوږده باندې اوبه واچوي. او ټوله اندامونه دې ښه مږي او مسلسل پرلپسې دې پرېولي. (حلبی کبير ج:۱، ص:۵۰)

قوله ولو انغمس إلخ: که يو جنب کس په جاري اوبو کې يا په ولاړو ډېرو اوبو (ماء کثير) کې غوټه ووهي او ټوله بدن يې لوند سي، يا په باران کې يې ټوله بدن لوند سي، نو غسل وسو. په دې شرط چې خوله هم پرېولي او پزه هم پرېولي. (حلبی کبير ج:۱، ص:۵۲، تحفة الالمعی ج:۱، ص:۳۷۳)

## فَصْلٌ (فِيْ آدَابِ الْاِغْتِسَالِ وَمَكْرُوْهَاتِهٖ)

(دا) فصل (د غسل د آدابو او مکروهاتو په بيان کې) دی

### د غسل ادبونه او مکروهات

﴿۱۲۲﴾ وَ آدَابُ الْاِغْتِسَالِ هِیَ آدَابُ الْوُضُوْءِ او د غسل کولو آداب هاغه دي کوم چې د اوداسه آداب دي إِلَّا أَنَّهٗ لَا يَسْتَقْبِلُ الْقِبْلَةَ خو دا چې غسل کونکي دې د قبلې و طرف ته مخ نه کوي لِأَنَّهٗ يَكُوْنُ غَالِبًا مَعَ كَشْفِ الْعَوْرَةِ ځکه چې غسل زياتره په لڅ عورت سره کيږي (يعني غالبًا د غسل کونکي عورت لڅ وي) وَ كُرِهَ فِيْهِ مَا كُرِهَ فِي الْوُضُوْءِ او مکروه دي په غسل کې هاغه شيان کوم چې مکروه دي په اوداسه کې.

لغات: ﴿العورة﴾ د بدن هره هغه حصه کوم چې يې انسان د شرم يا کراهت پر بناء پټوي. والعورة من الرجل: ماتحت السُّرَّة منه إلى الرُّكبة.

تشريح: صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله فرمايي چې کوم شيان په اوداسه کې مستحب دي. هاغه په غسل کې هم مستحب دي چې د هغوی بيان مخکې تېر سو. خو که څوک په لڅه غسل کوي. نو د قبلې

وطرف ته دي مخ نه کوي (يا په بله وينا دا چي نور آداب دغسل هاغه دي کوم چي داوداسه آداب دي. خو په اوداسه کي قبلې ته مخ کرځول ادب دي لېکن په غسل کي دسړي عورت لڅ وي، نو په دې وجه دا دغسل ادب نه دي، چي په دغه حال کي سړی قبلې ته مخ کړي).

خو که هغه په لنګ وغيره کي غسل کوي يعني عورت يې پټ وي، نو بيا په استقبالُ القبله کي څه حرج نشته.

بيا صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله فرمايي چي کوم شيان په اوداسه کي مکروه دي، هاغه په غسل کي هم مکروه دي.



**مسئله** (۱): په غسلخانه (لمباځي) کي د متيازو کولو دوه صورتونه دي: ① يو دا چي غسلخانه د متيازو ځای وکرځول سي، يعني د کور هر فرد په غسلخانه کي متيازي (بولي) کوي، د دې بالکل اجازه نشته. ② دويم دا چي له غسل کولو څخه مخکي متيازي وځي، ابن المبارک رَحِمَهُ الله فرمايي چي که غسلخانه کچه وي يعني اوبه پکښې جذب کيږي، يا متيازي په نالی کي جمع کيږي، نو هلته متيازي کول مکروه تحريمي دي، په حديثو کي دا دهري او وسوسې د پيدا کولو سبب بنوول سوي دي. (تحفة الالمعي ج:۱، ص:۲۳۵، در مختار مع الشامي ج:۱، ص:۳۱۸)

**مسئله** (۲): د غسل په شروع کي اودس کول سنت دي، لېکن که څوک اودس نه وکړي او صرف غسل وکړي، نو بيا وروسته اودس کولو ته ضرورت نه پاتيږي؛ ځکه چي ټولو اندامونو ته داوبو رسېدلو په وجه د طهارت کبرىٰ تر څنګ طهارت صغرىٰ هم حاصليږي، خو په داسي صورت کي دي دغسل په وخت کي داوداسه نيت هم کول کيږي چي داوداسه ثواب هم ورته حاصل سي. (شامي ج:۱، ص:۱۴۶، کتاب المسائل ص:۱۶۶)



# فَصْلٌ

(دا) فصل (د سنت غسلونو په بيان کي) دی

## سنت غسلونه

﴿۱۳۳﴾ يَسُنُّ الْاِغْتِسَالُ لِأَرْبَعَةِ أَشْيَاءَ سنت دي غسل کول د څلورو شيانو لپاره صَلٰوةُ الْجُمُعَةِ وَصَلٰوةُ الْعِيْدَيْنِ (۱) د جمعې د لمانځه لپاره (۲) او د دواړو اخترونو (کوچني اختر او لوی اختر) د لمانځه لپاره وَلِلْإِحْرَامِ وَلِلْحَاجِّ فِيْ عَرَفَةَ بَعْدَ الزَّوَالِ (۳) او د احرام لپاره (۴) او د حاجي لپاره په عرفات کي تر زوال وروسته.

**لغات**: ﴿إحرام﴾ د حاجي جامه کوم چي پر دوو کپړو مشتمله وي چي يوه پر ځان اچول کيږي او په بلې لنګ وهل کيږي (کوم ته چي احرام تړل وايي)، أَحْرَمَ يُحْرِمُ إِحْرَامًا: د افعال د باب مصدر دی: احرام تړل.

**تشريح**: څلور قسمه غسلونه سنت (مسنون) دي: ① د جمعې د ورځي غسل، ② د دواړو اخترونو غسل، ③ د احرام غسل، ④ د عرفات د ورځي غسل، تفصيل يې دا دی چي د جمعې د لمانځه او د اخترونو د لمانځه لپاره غسل کول سنت دي او دغه سنت د صحيح قول مطابق هغه وخت اداء کيږي کله چي تر لمانځه مخکي غسل وکړي، او بل د حج او عمرې لپاره د احرام تړلو په وخت کي غسل کول سنت دي، همدارنګه د عرفات په ميدان کي تر زوال وروسته د حاجي لپاره غسل کول سنت دي. (مراقی الفلاح ص: ۵۷)



**مسئله**: که چيري جمعه او اختر په يوه ورځ واقع سي او په همدې ورځ د جنابت غسل ته هم ضرورت پېښ سي، نو صرف په يوه غسل سره د جمعې او اختر دواړو سنت اداء کيږي، لېکن د ثواب د حصول لپاره د ټولو نيت کول ضروري دي. (در مختار ج۱، ص۱۵۷، ط: بيروت)

## مستحب غسلونه

﴿۱۳۴﴾ وَيُنْدَبُ الْاِغْتِسَالُ فِيْ سِتَّةَ عَشَرَ شَيْئًا او مستحب دي غسل کول په شپاړسو (۱۶) شيانو کي لِمَنْ أَسْلَمَ طَاهِرًا (۱) د هغه کس لپاره کوم چي د پاکوالي په حالت کي اسلام

راوړي وَلِمَنْ بَلَغَ بِالسِّنِّ (۲) او د هغه کس لپاره کوم چې د عمر په اعتبار سره بالغ سي (یعني سن اعمرا یې پنځلس کاله سي ادمفتی به قول مطابق) وَلِمَنْ أَفَاقَ مِنْ جُنُوْنٍ (۳) او د هغه کس لپاره کوم چې د لېونتوب څخه روغ سي (پرسد سي) وَعِنْدَ حَجَامَةٍ (۴) او د ښکر لګولو په وخت کې (یعني تر ښکر لګولو وروسته) وغُسْلِ مَيِّتٍ (۵) او د مړي د غسل په وخت کې (یعني مړي ته تر غسل ورکولو وروسته) وَفِي لَيْلَةِ بَرَاءَةٍ (۶) او د برات په شپه کې (یعني د شعبان د میاشتې په پنځلسمه) وَلَيْلَةِ الْقَدْرِ إِذَا رَآهَا (۷) او د شب قدر په شپه کې کله چې هغه ووېني (په کومه شپه کې چې د شب قدر یقین وي؛ په سبب د کشف کېدلو، یا یې ګومان وي؛ په سبب د هغه آثارو، علاماتو او احادیثو کوم چې د شب قدر په هکله وارد سوي دي) وَلِدُخُوْلِ مَدِيْنَةِ النَّبِيِّ ﷺ (۸) او د نبي کریم ﷺ ښار (مدینې منورې) ته د داخلېدلو لپاره (ځکه چې هغه یو مقدس او متبرک ځای دی) وَلِلْوُقُوْفِ بِمُزْدَلِفَةَ غَدَاةَ يَوْمِ النَّحْرِ (۹) او په مزدلفه کې د درېدلو لپاره د قربانۍ (لوی اختر) د ورځې په سهار وَعِنْدَ دُخُوْلِ مَكَّةَ (۱۰) او مکې شریفې ته د داخلېدلو په وخت کې وَلِطَوَافِ الزِّيَارَةِ (۱۱) او د طواف زیارت لپاره وَلِصَلٰوةِ كُسُوْفٍ (۱۲) او د لمر د ترنګې نیولو د لمانځه لپاره وَ اِسْتِسْقَاءٍ (۱۳) او د استسقاء د لمانځه لپاره وَفَزَعٍ (۱۴) او د وېرې بېرې (په وخت کې. یعني زیات خوف او بېره خپره سي) وَ ظُلْمَةٍ (۱۵) او د تیارې (په وخت کې. یعني د ورځې پر وخت تیاره وغوړېږي او سخته تاریکه جوړه سي) وَ رِيْحٍ شَدِيْدَةٍ (۱۶) او د سخت باد (په وخت کې).

**لغات:** ﴿کسوف﴾ د ضرب د باب مصدر دی؛ د لمر ترنګې نیول. ﴿استسقاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی؛ د باران طلب کول. ﴿فزع﴾ د فتح د باب مصدر دی؛ بېرېدل، وارېدل، له خوفناکه شي څخه ترهېدل.

**تشریح:** په دې عبارت کې مصنف رحمه الله مستحب غسل بیان کړی دی، فرمایي چې په شپاړسو (۱۶) صورتونو کې غسل کول مستحب دي؛ ① د هغه کافر لپاره غسل کول مستحب دي کوم چې د پاکوالي په حالت کې مسلمان سي، خو که کافر ... اسلام

راوړي، نو پر هغه غسل کول واجب دي د جنابت لیري کولو لپاره . ② همدارنګه د هغه کس لپاره غسل کول مستحب دي کوم چي بالغ سي د عمر په اعتبار سره (او د بلوغ عمر پنځلس کاله دی) . خو کوم څوک چي په مني وتلو سره بالغ سي، یا په جماع سره بالغ سي، نو پر هغه د جنابت غسل کول واجب دي. ③ د هغه کس لپاره کوم چي له لیونتوب څخه روغ سي، نو د روغتیا پر نعمت شکریتاً غسل کول مستحب دي. ④ او له ښکر لګولو څخه وروسته هم غسل کول مستحب دي. ځکه په هغه کي له بدن څخه خرابه وینه وځي، نو کېدای سي چي څه وینه یې پر بدن لګېدلې وي. ⑤ مړي ته تر غسل ورکولو وروسته د غسل ورکونکي لپاره مستحب دي چي خپله هم غسل کړي. ځکه کېدای سي چي څه څاڅکي یې پر بدن لګېدلي وي (ثمرة النجاح). ⑥ د برات په شپه غسل کول مستحب دي کوم چي د شعبان پنځلسمه شپه ده؛ دغه شپې ته د برات ویلو وجه دا ده چي په دې شپه کي الله ﷻ هر مؤمن ته (کله چي هغه حقوق واجبه اداء کړي وي) له جنهم څخه برائت ورکوي (د جهنم له اوره یې بري کوي) او ګناهونه یې بخښي، نو په دې شپه کي هم غسل کول مستحب دي. ⑦ د شب قدر په شپه غسل کول مستحب دي، کله چي د شب قدر یقین وي مثلاً په کشف او الهام سره ورته معلومه سي. یا د شب قدر په علاماتو سره ورته معلومه سي کوم چي په کتابو کي ذکر دي. مثلاً هغه شپه نه زیاته ګرمه وي او نه زیاته یخه وي بلکي معتدله وي او داسي نور، نو په هغې کي غسل کول او په عبادت مشغولېدل مستحب دي. ⑧ مدینې منورې ته د داخلېدلو لپاره غسل کول مستحب دي؛ ځکه دا یو مقدس او معزز ښار دی. لهذا د مدینې منورې د تعظیم او احترام او د رسول الله ﷺ په خدمت کي د حاضرېدو لپاره غسل کول مستحب دي. ⑨ په لسم د ذی الحجې یعني د لوی اختر په ورځ په مزدلفه کي د درېدلو لپاره غسل کول مستحب دي. د وقوف مزدلفه وخت د ذی الحجې په لسمه ورځ له صبح صادق څخه تر طلوع الشمس پوري دی. ⑩ مکې معظمې ته د داخلېدلو لپاره غسل کول مستحب دي؛ ځکه الله ﷻ دغه مبارک ښار ته پر ټولو ښارونو فضیلت ورکړی دی. ⑪ د طواف زیارت لپاره غسل کول مستحب دي؛ ځکه دا هم یوه اهمه موقع ده. ښکاره دي وي چي وقوف مزدلفه. طواف زیارت او رمی جمار (چي بیان به یې وروسته راسي) دغه درې سره په یوه ورځ اداء کول کیږي کوم چي لسمه د ذی الحجې یعني د لوی اختر ورځ ده. نو ځکه صرف په یوه غسل سره هم د دغو درېو سره وو فضیلت حاصلیږي. په دې شرط چي د ټولو نیت یې کړی وي. ⑫ د لمر د ترنڅې (تندرې) او د سپوږمۍ د ترنڅې لپاره غسل کول مستحب دي؛ ځکه دا دواړه د الله ﷻ له سترو نښو او علاماتو څخه دي (ثمرة النجاح). ⑬ د استسقاء یعني د باران طلبولو د لمانځه لپاره غسل کول مستحب دي: ⑭ د زیات خوف او بېرې پر موقع غسل کول مستحب دي. ⑮ په ورځ کي پر وطن د تیارې او تورتم غوړېدلو په وخت کي د لمانځه لپاره غسل کول مستحب دي. ⑯ د سخت باد او دوړې په وخت کي غسل کول مستحب دي؛ برابره په ورځ کي وي او که په شپه کي؛ ځکه دا ټول مصائب او د عذاب شیان دي او د دعاګانو وختونه دي، نو چي اکمل د طهارت څښتن وي. دعاګانې به اجابت ته نژدې وي.



# بَابُ التَّیَمُّمِ

(دا) باب د تیمم (په بیان کي) دی

**تشریح**: مخکي په اوبو سره د طهارت (پاکي) حاصلولو احکام بیان سول، اوس تر هغه وروسته په خاورو سره د طهارت حاصلولو احکام بیانوي، د دوی تر مینځ مناسبت په دې توګه دی چي په اوبو سره طهارت حاصلول اصل دی او په خاوره سره طهارت حاصلول یعني تیمم کول د هغه بدل (خلیفه) دی، او بدل (خلیفه) تر اصل وروسته وي، نو ځکه مصنف رَحِمَهُ الله داودس تر بیان وروسته تیمم بیان کړی دی، او "مسح علی الخفین" یې بیا تر تیمم وروسته بیان کړې ده. حال دا چي هغه په اوبو سره کول کیږي، نو د دې وجه دا ده چي تیمم په قرآن سره ثابت دی او "مسح علی الخفین" په سنت سره ثابته ده. (حاشیه)

**د تیمم لغوي او اصطلاحي معنیٰ**: د تیمم لغوي معنیٰ ده: "مطلقاً اراده کول" او د شریعت په اصطلاح کي د تیمم معنیٰ ده: مخ او دواړه لاسونه په پاکي خاوري سره مسح کول د شرعي قاعدې مطابق د طهارت په نیت سره. (مراقي الفلاح ص: ۶۰)

**تیمم د امتِ محمدیه خصوصیت دی**: تیمم صرف د دې امت خصوصیت دي، په پخوانیو امتونو کي طهارت او پاکي فقط په اوبو سره حاصلېدله. لیکن امتِ محمدیه چي څرنګه الله تعالیٰ په نورو خصوصي انعاماتو سره نازولی دی. له هغوی څخه یې یو انعام دا هم ورکړی دی چي د دوی لپاره یې خاوره هم د پاکۍ ذریعه ګرځولې ده. (بخاري شریف، حدیث رقم: ۳۳۵، کتاب المسائل ص: ۱۷۳)

## د تیمم صحیح کېدلو شرطونه

﴿۱۳۵﴾ یَصِحُّ بِشُرُوطٍ ثَمَانِيَةٍ تیمم په اته (۸) شرطونو سره صحیح کیږي اَلْأَوَّلُ النِّيَّةُ

(۱) اول شرط نیت دی وَحَقِيْقَتُهَا عَقْدُ الْقَلْبِ عَلَى الْفِعْلِ او د نیت حقیقت (تعریف) د زړه اراده کول دي د یو کار پر کولو (یا په بله وینا: د زړه خوټه کول اټینګه اراده کول دا دي په یو کار باندي) وَوَقْتُهَا عِنْدَ ضَرْبِ يَدِهِ عَلَى مَا يَتَيَمَّمُ بِهِ او د نیت کولو وخت د لاس وهلو وخت دی پر هغه شي په کوم سره چي تیمم کوي (یعني کله چي پر خاوره یا داسي بل شي لاسونه ووهي، نو په دې وخت کي دې د تیمم نیت کول کیږي).

**تشريح**: د تیمم صحیح کېدلو ته شرطونه دي: اول شرط نیت دی چي د ناپاکي لیري کېدلو نیت به کوي، بغیر له نیته تیمم نه صحیح کیږي او د نیت حقیقت دا دی چي انسان په زړه کي د يو کار کولو پخه اراده وکړي، مثلاً په تیمم کي دي په زړه کي دا اراده وکړي چي زه د بې اودسی یا جنابت لیري کولو لپاره، یا د لمانځه روا کولو لپاره تیمم کوم، د نیت لپاره څه خاص الفاظ ثابت او منقول نه دي، همدارنګه دا اراده په ژبه سره کول ضروري نه دي، خو بیا هم که زړه او ژبه دواړه سره جمع کړي، نو غوره ده.

ووقتها إلخ: د تیمم نیت به کله کوي؟ نو فرمايي چي کله په خاوره وغیره د تیمم لپاره لاسونه ووهي، هغه وخت دي نیت وکړي.

## د نیت صحیح کېدلو شرطونه

﴿۱۳۶﴾ وَشُرُوْطُ صِحَّةِ النِّيَّةِ ثَلَاثَةٌ او د نیت د صحیح کېدلو درې شرطونه دي اَلْإِسْلَامُ ① اسلام (مسلمان کېدل) وَالتَّمْيِيْزُ ② تمییز (د ښه او بد ترمینځ توپیر، یعني پوه کېدل) وَالْعِلْمُ بِمَا يَنْوِيْهِ ③ او علم (پوهېدل) په هغه څه د کوم چي نیت کوي (یا په بله وینا: په نیت پوهېدل).

**تشريح**: د تیمم د نیت صحیح کېدلو لپاره درې شرطونه دي چي له هغوی څخه بغیر نیت نه صحیح کیږي: ① اول شرط دا دی چي نیت کونکی به مسلمان وي، ؛ لهذا که کافر د مسلمان کېدلو په نیت سره تیمم وکړي او مسلمان سي، نو په دې تیمم سره لمونځ نه سي کولای؛ ځکه کوم وخت چي ده تیمم کړی دی، په هغه وخت کي دئ د نیت اهل نه وو.

② دویم شرط تمییز او پوهه ده، یعني څه چي وایي په هغه به پوهیږي (په خپل کلام به پوهیږي).

③ درېیم شرط دا دی چي د کوم شي نیت کوي په هغه به علم او خبر لري، یعني دئ به په دې خبره هم علم لري او پوهیږي چي زه د کوم شي لپاره تیمم کوم، لهذا که نیت په عربي الفاظو سره اداء کړي او په مطلب یې پوه نه سي، نو هغه الفاظو لره اعتبار نسته. (ایضاح الاصباح)

## د تیمم د نیت نور وضاحت

﴿۱۳۷﴾ وَيُشْتَرَطُ لِصِحَّةِ نِيَّةِ التَّيَمُّمِ لِلصَّلٰوةِ بِهٖ أَحَدُ ثَلَاثَةِ أَشْيَاءَ او په تیمم سره د لمونځ کولو د نیت صحیح کېدلو لپاره یو د دریو شیانو شرط دي (یا په بله وینا د لمانځه د تیمم ایني په کوم تیمم سره چي لمونځ کول کیږي، د هغه د نیت صحیح کېدلو لپاره دا شرط دي چي له دریو شیانو څخه به یو وي) إِمَّا نِيَّةُ الطَّهَارَةِ ① یا به د طهارت (پاکی) نیت وي أَوْ إِسْتِبَاحَةِ الصَّلٰوةِ ② یا به د لمانځه د روا

کولو نیت وي (چې په دې تیمم سره د لمونځ دروا کېدو اجاز کېدو انیت کوم) أَوْ نِيَّةُ عِبَادَةٍ مَقْصُوْدَةٍ لَا تَصِحُّ بِدُوْنِ طَهَارَةٍ ③ یا به د داسې عبادتِ مقصوده نیت وي کوم چې بېله طهارته نه صحیح کېږي فَلَا يُصَلِّيْ بِهِ إِذَا نَوَى التَّيَمُّمَ فَقَطْ نو په دې تیمم سره لمونځ نه سي کولای کله چې یې فقط د تیمم نیت (پکښې) کړی وي أَوْ نَوَاهُ لِقِرَاءَةِ الْقُرْآنِ وَلَمْ يَكُنْ جُنُبًا یا یې د تیمم نیت د قرآن لوستلو لپاره کړی وي په داسې حال کې چې جنب نه وي (نو په دې تیمم سره هم لمونځ نه سي کولای).

**تشریح**: د تیمم نیت هغه وخت صحیح کېږي یا په بله وینا هغه وخت په تیمم سره لمونځ اداء کولای سي کله چې په تیمم کې د لاندینیو دریو نیتونو څخه یو نیت وکړي:

① د پاکي حاصولو نیت، مثلاً داسې نیت وکړي چې: "زه د پاکي حاصلولو لپاره تیمم کوم"، اوس په دې تیمم سره لمونځ صحیح کېږي.

② یا د لمونځ روا کولو نیت، مثلاً: "زه د لمانځه د روا کولو (مباح کولو) لپاره تیمم کوم"، نو په دې تیمم سره لمونځ صحیح کېږي.

③ یا د داسې عبادت مقصوده نیت کوم چې بغیر له طهارت څخه نه صحیح کېږي، مثلاً د جنازې د لمانځه یا د سجدهٔ تلاوت په نیت سره تیمم وکړي، نو په دې تیمم سره فرضي لمونځ کول صحیح دي.

فلا یصلی الخ: لهذا که څوک صرف د تیمم نیت وکړي په دې شرط چې هغه جنب نه وي مثلاً صرف داسې ووایي چې "زه تیمم کوم"، نو په دې تیمم سره لمونځ نه سي کولای؛ ځکه چې له مذکوره دریو شیانو څخه یې د یوه شي نیت هم نه دی کړی.

**فایده**: عبادتِ مقصوده هغه عبادت دی چې هغه صرف د ثواب او الهي رضا لپاره مشروع سوی وي، د یو بل عبادت اداء کولو لپاره مشروع نه وي، لکه لمونځ، سجدهٔ تلاوت او داسې نور عبادات مقصوده دي، په خلاف د قرآن مجید مسه کولو چې په هغه سره صرف ثواب مقصود نه دی، بلکې په هغه سره بل عبادت اداء کول هم مقصود دي چې هغه تلاوت دی، لهذا که څوک د قرآن د مسه کولو لپاره تیمم وکړي نو په دې تیمم سره لمونځ نه صحیح کېږي؛ ځکه چې دا عبادتِ مقصوده نه دی. خلاصه دا چې عبادت به بالذات مقصود وي، د بل عبادت لپاره به وسیله نه وي. او د عبادتِ مقصوده سره یې د "لا تصح الخ" قید هم لګولی دی یعني هغه عبادتِ مقصوده به داسې وي کوم چې له طهارت څخه بغیر نه صحیح کېږي لکه لمونځ، سجدهٔ تلاوت او داسې نور.

او کوم عبادت مقصوده چي له طهارت څخه بغیر صحیح کیږي. هغه لکه د قرآن شریف زباني قرائت یا په بله وینا قرآن په یاده ویل (حفظاً تلاوت کول). لهذا که څوک د زباني قرائت په نیت سره اودس وکړي چي قرآن شریف په یاده ووایي، نو په دې تیمم سره لمونځ نه صحیح کیږي.

ولم یکن جنبًا إلخ: د دغه قید فایده دا ده چي که هغه جنب وي، نو بیا خو په تیمم سره د هغه نیت د طهارت نیت وي (یعني په تیمم سره د ځان د طهارت نیت کوي، ځکه ناپاکه کس اول د خپل ځان د طهارت او پاکېدلو نیت کوي) او کوم تیمم چي د طهارت په نیت سره ووهل سي، په هغه سره لمونځ صحیح کیږي. (انوار الایضاح. شفاء الارواح)

## تیمم کله جائز دی؟

| |
|---|
| ﴿۱۳۸﴾ اَلثَّانِيْ اَلْعُذْرُ الْمُبِيْحُ لِلتَّيَمُّمِ (د تیمم صحیح کېدلو پاره) دویم شرط هغه عذر دی کوم چي د تیمم مباح کونکی وي كَبُعْدِهٖ مِيْلًا عَنْ مَاءٍ وَلَوْ فِي الْمِصْرِ لکه یو څوک له اوبو څخه یو میل لیري کېدل، که څه هم په ښار کي وي وَحُصُوْلِ مَرَضٍ او مرض موجودېدل (مریض کېدل) وَبَرْدٍ يُخَافُ مِنْهُ التَّلَفُ أَوِ الْمَرَضُ او (یا) داسي یخ موجودېدل چي له هغه څخه د هلاکېدلو (ضایع کېدلو) یا مریض کېدلو بېره وي وَخَوْفِ عَدُوٍّ وَعَطَشٍ او (یا لکه) د دښمن او تندي بېره وَاحْتِيَاجٍ لِعَجْنٍ لَا لِطَبْخِ مَرَقٍ او (لکه) د اوړو خیشتولو (اخښلو) ضرورت، نه د ښوروا پخولو ضرورت وَلِفَقْدِ آلَةٍ او (لکه) د آلې (سولاغې او رسۍ) د نیستي والي (نه موجودېدلو) په وجه. |

لغات: ﴿بَرْد﴾ یخ، یخني. ﴿عطش﴾ د سمع له بابه اسم مصدر دی: تنده. عَطِشَ يَعْطَشُ عَطَشًا: تږي کېدل، اوبو ته زړه کېدل. ﴿میل﴾ میل پر دوه قسمه دی: ① شرعي ② انګریزي. شرعي میل د اوسني ګزونو په حساب سره دوه زره (۲۰۰۰) ګزه کیږي او د کیلو متر په حساب سره یو کیلو متر او ۶۱۰ میتره کیږي او د میتر په حساب سره ۶۹. ۱۸۲۸ میتره کیږي، او د مېنځوي ګامونو په اعتبار سره څلور زره ۴۰۰۰ ګامه کیږي، او انګریزي میل ۱۷۶۹ ګزه کیږي، نو انګریزي میل تر شرعي میل کوچنی دی او دلته شرعي میل مراد دی. نو که اوبه دوه زره ګزه یعني ۱۸۲۸ میتره لیري وي، نو بیا تیمم کولای سي ﴿مرق﴾ ښوروا (شوربا).

**تشریح:** د تیمم صحیح کېدلو دویم شرط دا دی چې انسان ته داسې عذر پېش سي چې د هغه په وجه ده ته تیمم کول روا سي، مصنف رَحِمَهُ الله ټوله اووه (۷) عذرونه بیان کړي دي:

① اوبه یو میل لیرې کېدل، لهذا که د چا سره دومره اوبه نه وي کوم چې د بې اودسیا لیرې کولو لپاره کافي وي او د هغه کس او اوبو تر مینځ یو میل فاصله وي، برابره ده په ښار او آبادۍ کې وي یا له ښار څخه بهر وي، نو د داسې کس لپاره تیمم کول جائز دي؛ ځکه اوبه یو میل لیرې کېدل داسې عذر دی کوم چې د تیمم روا کونکی دی.

② وحصول مرض إلخ: که د چا سره کافي اوبه خو وي، لېکن هغه مریض وي او له اوبو څخه د مرض زیاتېدلو خطره وي (چې که اوبه استعمال کړي، نور به مریض سي)، نو په داسې صورت کې هم تیمم کول جائز دي، او له "وَبَرْدٍ يُخَافُ..."څخه چې کومه مسئله بیان سوې ده، هغه د جنب سره متعلق ده، نه د بې اودسه (محدث) سره، مسئله دا ده چې که جنب کس ته دا بېره وي چې د غسل کولو په وجه به د هغه یو اندام تلف او ضایع سي یا مریض به سي، نو د هغه لپاره تیمم کول جائز دي، لهذا که بې اودسه کس ته کوم چې روغ وي دا بېره وي چې که اودس وکړم، مریض به سم، نو د هغه لپاره تیمم جائز نه دی، همدا صحیح ده او پر همدې فتویٰ ده (او د مرض زیاتېدلو په باره کې د مریض خپله رایه هم معتبره ده یعني که هغه ته په خپل تجربه یا ظن غالب سره واقعي د مرض زیاتېدلو خطره وي، نو د هغه لپاره تیمم کول جائز دي). (حاشیه، شفاء الارواح، انوار الایضاح)

③ وخوف عدو إلخ: دریم عذر د دښمن بېره او د تندي بېره ده او دا له دښمن څخه بېره پر خپل ځان وي او که پر خپل مال وي، یا په بله وینا دا چې اوبه داسې خطرناکه ځای وي چې که هلته انسان ولاړ سي نو د هلاکت یا سخت نقصان خطره وي مثلاً هلته یو دښمن ناست وي یا سخت اُور پکښې بل وي یا هلته مار وغیره وي، یا مثلاً سړی داسې ځای وي چې که له هغه څخه لیرې سي بل ځای ته ولاړ سي، نو د مال ضایع کېدلو یې خطره وي، نو په دې صورتونو کې د هغه لپاره تیمم جائز دی.

وعطش: یا د تندي بېره وي، یعني اوبه صرف د څښلو لپاره کافي وي، خو که په هغوی سره اودس یا غسل وکړي، نو دا خطره وي چې هغه یا حیوان وغیره به یې له تندي څخه مړه سي.

④ واحتیاج لعجن إلخ: یعني اوبه دومره کمې وي چې که په هغوی سره اودس یا غسل وکړي، نو بیا د اُوړو د خیشتولو او اخښلو لپاره اوبه نه پاتېږي، نو په داسې صورت کې دې هم اودس نه کوي بلکې تیمم دې وکړي، لېکن د ښوروا پخولو د ضرورت په وخت کې تیمم جائز نه دی؛ ځکه د غوښو د پخولو لپاره بله طریقه هم سته چې هغه کبابول دي، لېکن د اُوړو د پخولو لپاره بله طریقه نسته بغیر له خیشتولو او اخښلو څخه. (ایضاح الاصباح)

⑤ ولفقد آلة: یعني که داوبو راکښلو سامان نه وي، نو په دې صورت کې هم تیمم کول جائز دي، مثلاً مسافر یو ځاي ته ورسیږي، خو هلته رسۍ او سولاغه نه وي او نه ځاي ته د شوه کښلو همت وي، نو دهغه لپاره تیمم جائز دی.



## د قیدي (بندي) لپاره د تیمّم حکم

**مسئله** (۱): که په بندیخانه کي قیدي کس د اوبو پر حصول قادر نه وي، نو د هغه لپاره حکم دا دی چي فی الحاله دي تیمم وکړي، خپل لمونځ دي وکړي او له خلاصون څخه وروسته دي په اوداسه هغه لمونځ راوګرځوي، همدا حکم د هر هغه کس لپاره دی کوم چي ناځاپه په خونه وغیره کي بند کړی سي. (کتاب المسائل ص: ۱۷۶، امداد الفتاویٰ ج۱، ص۷۲)

## په رېل ګاډۍ (اور ګاډۍ) کي د تیمّم حکم

**مسئله** (۲): که په رېل ګاډۍ کي اوبه بالکل نه وي او په کوم تم ځاي (سټېشن) کي چي اوبه وي، هغه دومره لیري وي چي هلته په رسېدلو سره د لمونځ قضا کېدلو ېېره وي، یا دا ېېره وي چي که زه پر تم ځاي (سټېشن) اوبه پیدا کوم او بیا اودس کوم، نو رېل ګاډۍ به راڅخه ولاړه سي. نو دا سي مسافر لپاره تیمم کول جائز دي، او که په رېل ګاډۍ کي دننه اوبه وي، لېکن د رش وغیره په وجه اودس نه سي کولای، نو هغه دي په تیمم سره لمونځ وکړي، خو وروسته یې قضاء راوړل لازم دي. (احسن الفتاویٰ ج:۱، ص:۵۵)

## د غسل تیمّم د اودس لپاره کافي دی

**مسئله** (۳): جنب کس چي د غسل په نیت سره کوم تیمم وکړي، هغه تیمم د اودس لپاره هم کافي دی، لهٰذا که د دې جنب سره دومره اوبه وي چي په هغوی سره اودس کېدلای سي، نو په هغوی سره اودس کول ضروري نه دي، ها! که تر دې وروسته یې اودس مات سي، نو بیا به اودس کوي؛ ځکه دیٔ داوداسه په اوبو باندي قادر دی. (شامي ج۱، ص۲۵۱، احسن الفتاویٰ ج۱، ص:۵۶)

## د کومو لمنځونو لپاره د تیمّم خصوصي اجازه سته

﴿۱۳۹﴾ وَ خَوْفِ فَوْتِ صَلوٰةِ جَنَازَةٍ أَوْعِيْدٍ او (بل عذر لکه) د جنازې یا اختر د لمانځه د فوت کېدلو ېېره وَلَوْبِنَاءً که څه هم دبناء کولو لپاره وي وَلَيْسَ مِنَ الْعُذْرِ خَوْفُ الْجُمُعَةِ وَالْوَقْتِ او د جمعې (فوتېدلو) ېېره او د وخت (ختمېدلو) ېېره عذر نه دی.

**تشریح**: ⑥، ⑦ کله چي جنازه حاضره سي او دا ېېره وي چي که په اوداسه لګیا سم، نو د جنازې لمونځ به راڅخه تېر سي، همدارنګه که د اختر لمونځ ودرېږي او دا ېېره وي چي که په اوداسه لګیا

سم، د اختر لمونځ به را څخه تېر سي، نو هغه ته د تیمم کولو اجازه سته چي تیمم وکړي او په لمانځه کي شرکت کړي.

ولوبناءً: د "بناء" مطلب دا دی چي د لمانځه کومه حصه چي یې مخکي اداء کړې ده، پاته لمونځ پر هغه بناء کړي (یا په بله وینا دا چي د پاته حصې بنیاد پر هغه کېښېږدي)، تفصیل یې دا دی چي که سړی په اوداسه سره د جنازې یا د اختر لمونځ شروع کړي، خو د لمانځه په مینځ کي بې اودسه سي او اوس هغه ته دا بېره وي چي که په اوداسه لګیا سم، نو د جنازې یا اختر لمونځ به را څخه تېر سي، نو اوس د هغه لپاره جائز دي چي تیمم وکړي او پاته لمانځه په تیمم سره پوره کړي یا په بله وینا دا چي پر پاته لمانځه په تیمم سره بناء وکړي، که څه هم دا تیمم د بناء کولو لپاره دی او که څه هم دا بناء پر اوداسه والا لمانځه ده (دا حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د هغه لپاره تیمم جائز نه دی. خو که چا له شروع څخه د جنازې یا اختر لمونځ په تیمم سره شروع کړی وي او بیا د لمانځه په دوران کي بې اودسه سي، نو بېله اختلافه په تیمم سره بناء کول جائز دي). (حاشیه. انوار الایضاح)



## د وقت د تنګۍ په وجه د تیمّم حکم

**مسئله**: که یو لمونځ له چا څخه دومره وځنډیږي چي هغه ته دا بېره سي چي که اوس اودس کوم، نو د لمانځه وخت به ووځي، او دومره وخت وي چي په تیمم سره هغه لمونځ اداء کېدلای سي، نو د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چي په هغه وخت کي دي په تیمم سره لمونځ وکړي، بیا دي وروسته په اوداسه سره هغه لمونځ را وګرځوي، احتیاطاً پر همدې فتویٰ ده. (شامي ج:۱. ص:۳۶۶. ط: بیروت)

## پر کومو شیانو تیمّم جائز دی؟

﴿۱۴۰﴾ اَلثَّالِثُ أَنْ يَّكُوْنَ التَّيَمُّمُ بِطَاهِرٍ مِنْ جِنْسِ الْأَرْضِ (۳) (د تیمم صحیح کېدو لپاره) درېیم شرط دا دی چي تیمم په داسي پاک شي باندي (وهل سوی) وي کوم چي د ځمکي له جنس څخه وي كَالتُّرَابِ وَالْحَجَرِ وَالرَّمَلِ لکه خاوره، ډبره او رېګ لَا الْحَطَبِ وَالْفِضَّةِ وَالذَّهَبِ نه لرګی (بوټي)، سپین او سره زر.

**لغات**: ﴿تراب﴾ خاوره، جمع: أَتْرِبَة و تُرْبَانٌ. ﴿رمل﴾ رېګ، جمع: رِمَال. ﴿حطب﴾ د سوځلو لرګي، بوټي، جمع: أَحْطَابٌ.

**تشريح**: د تیمم د صحیح کېدلو دریم شرط دا دی چي تیمم په پاک شي سره وي، دلته طاهر د طهور (پاکونکي) په معنیٰ سره دی یعني هغه به پاکونکی شی وي، نو مثلاً که ځمکه مرداره سي بیا وچه سي او د نجاست (مرداری) اثر یې ولاړ سي، نو هغه ځمکه خو پاکه سوه او پر هغې لمونځ صحیح دی لیکن تیمم باندي صحیح نه دی؛ ځکه هغه پاکونکې نه ده.

او بله خبره دا ده چي هغه شی به د ځمکي له جنس څخه وي، بیا تیمم کول باندي جائز دي، او د هغه علامت دا دی چي کوم شی د ځمکي له جنس څخه وي، هغه په سوځولو سره نه ایره کیږي، همدارنګه په سوځولو سره نه ویلي کیږي او په ځمکه کي چي واچول سي نو ځمکه هغه نه خوري، لکه دبره، رېګ، خاوره وغیره، دغه شیان نه ویلي کیږي او نه ایره کول کیږي او نه ځمکه دوی خوري، لهذا پر لرګي تیمم جائز نه دی؛ ځکه هغه سوځي، ایره کیږي، همدارنګه پر سرو او سپینو زرو تیمم صحیح نه دی؛ ځکه هغوی په اُور سره ویلي کیږي او نرمیږي، همدارنګه پر غنمو او پر داسي نور دانو او مېوو باندي تیمم نه صحیح کیږي؛ ځکه ځمکه هغوی خوري.



## پر ګرز (ګرد) د تیمم حکم

**مسئله (۱)**: که پر اوسپنه یا پر لرګي وغیره باندي دومره ګرز پروت وي چي پر هغوی په لاس تېرولو سره د ګرز اثر ښکاره سي، نو پر هغوی هم تیمم صحیح دی. (شامي ج:۱، ص:۳۶۱، ط: بیروت، کتاب المسائل ص: ۱۸۰)

## پر سمېټي دېوال او داسي بل شي باندي د تیمم حکم

**مسئله (۲)**: سمېټ، دبره، ګچ دا ټوله د ځمکي له جنس څخه دي، لهذا که هغوی پاک وي، نو تیمم باندي جائز دی، که څه هم پر هغوی ګرز نه وي. (الفتاوی التاتارخانیه ج:۱، ص: ۳۷۴، مسئله: ۷۹۶، بحوالهٔ انوار الایضاح)

## د تیمّم طریقه

| |
|---|
| ﴿۱۲۱﴾ اَلرَّابِعُ اِسْتِيْعَابُ الْمَحَلِّ بِالْمَسْحِ (۴) څلورم شرط پوره نیول دي (د مسح) د محل په مسح سره (یا په بله وینا په مسح سره کښې ایستل، یعني د مسح پر ځای پوره مسح کول). |

**لغات**: ﴿استیعاب﴾ په پوره توګه اخیستل، پوره نیول، راګېرول، احاطه کول، کښې ایستل.

صاحب د معجم یې داسي تعریف کړی دی: الاستیعاب: الأخذ بالشئ کله، یقال استیعاب العضو بالمسح: یعني مسحه کله أجمع (معجم لغة الفقهاء)، ﴿المحل﴾ ځای، د مسح له ځای څخه مراد مخ او دواړه لاسونه تر څنګلو پوري دي.

**تشريح**: په دې عبارت کې د تيمم صحيح کېدلو څلورم شرط بيانوي چې هغه استيعاب دی يعني داسي مسح به کوي چې هيڅ ځای پاته نه سي، که ديوه وربښته په اندازه ځای هم له مسح څخه پاته سي، نو تيمم نه صحيح کيږي، لهذا که گوتمۍ يې په گوته وي، يا يې بنگړي وغيره په لاس کي وي، نو هغه دي وكاږي يا حرکت دي ورکړي يوې او بلي خوا ته چې تر هغه لاندي ځای هم مسح کړي او گوتي دي خلال کړي او خپل ټوله مخ دي مسح کړي او د ږيري هغه وربښتان کوم چې پر مخ دي، نه هغه وربښتان کوم چې لاندي ځړېدلي دي، همدارنګه کوم ځای چې د غوږونو او ږيري تر مينځ دي، د هغه مسح هم ضروري ده. د بعضي علماؤ په نيز د مخ او لاسونو پر اکثره حصه مسح کول کافي دي، لهذا که ټوله مخ او ټوله لاسونه مسح نه کړي بلکي مثلاً يو ثُلث (دريمه حصه) پکښې پرېږدي، نو هم د دوی په نيز تيمم صحيح دی، لېکن اول قول د ظاهر روايت مطابق دی. (حاشيه شفاء الارواح)

**په ټوله يا اکثره لاس سره مسح کول، نه په دوو گوتو سره**
**او د سر د مسح او د تيمم د مسح تر مينځ فرق**

﴿۱۴۲﴾ اَلْخَامِسُ اَنْ يَّمْسَحَ بِجَمِيْعِ الْيَدِ اَوْبِاَكْثَرِهَا (۵) پنځم شرط دا دی چې په ټوله لاس يا د لاس په اکثره حصه سره مسح وكړي حَتّٰى لَوْمَسَحَ بِإِصْبَعَيْنِ تر دې چې که په دوو گوتو سره مسح وكړي لَايَجُوْزُ نو جائز نه دي وَلَوْ كَرَّرَ حَتّٰى اِسْتَوْعَبَ که څه هم (په دوو گوتو سره) مسح دومره مکرّره کړي (بار بار يې وكړي) چې محل پوره ونيسي (يعني د مسح پر ټوله ځای پوره مسح وسي او لاس پر تېر سي) بِخِلَافِ مَسْحِ الرَّأْسِ په خلاف د سر د مسح.

**تشريح**: د تيمم صحيح کېدلو پنځم شرط دا دی چې مسح په ټوله لاس يا د لاس په اکثر حصه سره وكړي، د اکثر مطلب دا دی چې په دريو گوتو يا زياتو سره مسح وكړي، په يوه يا دوو گوتو سره مسح صحيح نه ده. لهذا که په دوو گوتو سره داسي مسح وكړي چې پر ټوله اندام يې وگرځوي، نو بيا هم مسح نه صحيح کيږي؛ ځکه په ټوله لاس يا د هغه په اکثره حصه سره مسح کول شرط دي، په خلاف د سر د مسح کولو. يعني د سر د مسح حکم له تيمم څخه جلا دی، ځکه که څوک په دوو گوتو سره د سر مسح وكړي تر دې چې د سر د څلورمي حصې په اندازه په دوو گوتو سره مسح کړي، نو دا مسح صحيح ده. (شفاء الارواح)

## د تیمم د نورو شرطونو بیان

﴿۱۴۳﴾ اَلسَّادِسُ أَنْ يَّكُوْنَ بِضَرْبَتَيْنِ بِبَاطِنِ الْكَفَّيْنِ (۶) شپږم شرط دا دی چي تیمم به په دوو ضربونو (یعني په دوه واره لاس وهلو) سره وي د دواړو ورغوو په نس (مخ) سره وَلَوْ فِيْ مَكَانٍ وَاحِدٍ که څه هم په یوه ځای کي وي (یعني که څه هم دواړه ضربونه پر یوه ځای ووهي) وَيَقُوْمُ مَقَامَ الضَّرْبَتَيْنِ إِصَابَةُ التُّرَابِ بِجَسَدِهٖ او پر بدن خاوره لګېدل (هم) د دوو ضربونو قائم مقام کیږي إِذَا مَسَحَهٗ بِنِيَّةِ التَّيَمُّمِ کله چي هغه د تیمم په نیت سره (پر بدن) مسح کړي (یعني که پر بدن خاوره اُدېر ګرزا ولوېږي او د تیمم په نیت سره هغه پر بدن ومُږي. نو داسي کول هم د دوو ضربونو قائم مقام کیږي).

**لغات**: ﴿ضربتین﴾ تثنیه د "ضَرْبَةٌ" ده، د "ضَرْبَةٌ" معنیٰ ده: یو وار لاسونه پر ځمکه وهل. یکون: د دې ضمیر تیمم ته راجع دی، ولو: تر دې وروسته فعل ناقص (کَانَ) او د هغه اسم محذوف دی، اصل عبارت داسي دی: ولوکان الضربتان فی مکان واحد. مسحه: د دې ضمیر مفعول د تُراب وطرف ته راجع دی.

**تشریح**: د تیمم صحیح کېدلو شپږم شرط دا دی چي دوه واره به پر ځمکه لاس وهي، په یوه ضرب سره به مخ مسح کوي او په دویم ضرب سره به دواړه لاسونه تر څنګلو پوري مسح کوي. لهذا که صرف په یوه ضرب سره دواړه اندامونه مسح کړي، نو تیمم نه صحیح کیږي.

باطن الکفین: یعني دواړه ضربونه به د دواړو ورغوو په دننۍ حصه سره وي او دا سنت دي او که د ورغوو په ظاهري پورتنۍ حصه سره وي، نو هم کافي دي. (حاشیه شرح وقایه)

ولوفی مکان واحد: همدارنګه دواړه ضربونه که صرف پر یوه ځای وي یعني دواړه واره لاسونه صرف پر یوه ځای ووهل سي، نو هم کافي دي؛ ځکه په تیمم کولو سره خاوره مستعمله نه ګرځي.

ویقوم مقام الخ: یعني که څوک په خاوره کي لت پت سي او پر مخ او لاسونو یې خاوره ولـسي او هغه د تیمم په نیت سره پر مخ او لاسونو لاس وګرځوي، نو د هغه تیمم صحیح کیږي او دا د تیمم په نیت سره لاس ګرځول د دوو ضربونو قائم مقام کیږي.

﴿۱۴۴﴾ اَلسَّابِعُ اِنْقِطَاعُ مَا يُنَافِيْهِ مِنْ حَيْضٍ أَوْ نِفَاسٍ أَوْ حَدَثٍ (۷) اووم شرط منقطع کېدل (ختمېدل) دي (د تیمم په وخت کي) د هغه شیانو کوم چي د تیمم منافي (مخالف) دي یعني

حیض یا نفاس یا بې اودسیا (یعني د تیمم کولو په دوران کې به د تیمم منافي شیان لکه حیض، نفاس او بې اودسي جاري نه وي).

**تشریح**: یعني څرنګه چې د اوداسه د صحیح کېدو لپاره دا شرط دی چې د اوداسه په دوران کې به د اودس منافي شی یعني حیض، نفاس او بې اودسیا (مثلاً د متیازو څاڅکي) نه وي، نو همداسې د تیمم د صحیح کېدو لپاره هم دا شرط دی، لهذا که د حیض، نفاس یا حدث په موجودیت کې څوک تیمم وکړي، نو تیمم یې نه صحیح کېږي.

﴿۱۳۵﴾ اَلثَّامِنُ زَوَالُ مَا يَمْنَعُ الْمَسْحَ كَشَمْعٍ وَ شَحْمٍ (۸) اتم شرط زائلېدل (لیرې کېدل) دي د هغه شیانو کوم چې مسح منع کوي لکه موم (شمه) او وازګه.

**تشریح**: اتم شرط دا دی چې د مسح پر اندامونو (مخ او لاسونو) به څه داسې شی نه وي کوم چې مسحې لره منع کونکي وي، لکه وازګه، موم او داسې نور، د مسح کولو په وخت کې د دې شیانو لیرې کول ضروري دي؛ ځکه که لیرې نه کړل سي، نو مسح به پر دوی راسي، نه پر بدن، لهذا پاکي به حاصله نه سي.

﴿۱۳۶﴾ وَسَبَبُهُ وَشُرُوطُ وُجُوبِهِ كَمَا ذُكِرَ فِي الْوُضُوْءِ او د تیمم سبب او د تیمم د واجبېدلو شرطونو هاغه دي کوم چې په (بیان د) اوداسه کې ذکر سول وَ رُكْنَاهُ مَسْحُ الْيَدَيْنِ وَالْوَجْهِ او د تیمم دوه رکنه (دي) دواړه لاسونه او مخ مسح کول.

**تشریح**: د اودسه لپاره چې کوم اسباب او شرطونه ذکر سول (کوم چې په فصل فی الوضوء کې تېر سول). هاغه اسباب او شرطونه د تیمم لپاره هم دي، او د تیمم ارکان دوه دي: ① پر ټوله مخ لاس تېرول. ② تر څنګلو پوري دواړه لاسونه مسح کول.

## د تیمم سنتونه

﴿۱۳۷﴾ وَسُنَنُ التَّيَمُّمِ سَبْعَةٌ او د تیمم سنتونه اووه دي اَلتَّسْمِيَةُ فِي أَوَّلِهِ (۱) د تیمم په شروع کې بسم الله ویل وَالتَّرْتِيْبُ (۲) او ترتیب (په ترتیب سره تیمم کول) وَالْمُوَالَاةُ (۳) او پرلپسې والی (یعني د تیمم اندامونه پرلپسې ابله غندا مسح کول) وَاِقْبَالُ الْيَدَيْنِ بَعْدَ وَضْعِهِمَا فِي التُّرَابِ (۴) دواړه لاسونه په خاوره کې تر اېښوولو وروسته مخ ته بېول (مخ ته کشول) دَ

إِدْبَارُهُمَا (۵) او (بیا) شا ته راوستل وَنَفْضُهُمَا (۶) او دواړه لاسونه څنډل وَ تَفْرِيجُ الْأَصَابِعِ (۷) او ګوتې خلاصې (پراخې) ساتل.

**لغات:** ﴿اقبال﴾ او ﴿ادبار﴾ دواړه د افعال د باب مصدرونه دي: مخته کول او شا ته کول. ﴿نفض﴾ د نصر د باب مصدر دی: څنډل، ښورول چې ګرز ځنې لیرې سي.

**تشریح:** په دې عبارت کې د تیمم سنتونه بیانوي کوم چې اووه (۷) سنتونه دي: ① د تیمم په شروع کې بسم الله ویل، ② ترتیب، یعني اول مخ مسح کول، بیا دواړه لاسونه تر څنګلو پورې مسح کول، ③ پرلپسې (مسلسل) کول، یعني د تیمم په مینځ کې توقف نه کول، مثلاً داسې دې نه کوي چې د مخ تر مسح کولو وروسته په یو شي مشغوله سي او څه ګړی وروسته لاسونه مسح کړي، دا د سنت خلاف دي، ④ په خاوره کې د لاسونو د اېښوولو پر مهال هغوی مخ ته کښول ⑤ او بیا د شا طرف ته کښول، ⑥ دواړه لاسونه څنډل، یعني کله چې له خاورې څخه لاسونه را پورته کړي، نو دواړه دې سره وڅنډي، طریقه یې دا ده چې دواړه دې لاندې طرف ته کړي او دواړه بټې ګوتې دې سره وجنګوي چې زیاته خاوره ایله سي، ⑦ ګوتې خلاصې ساتل، یعني کله چې په خاوره کې لاسونه وهي، هغه وخت دې ګوتې نه سره یو ځای کوي بلکې هغوی دې خلاصې لري.

## که د اوبو تر لاسه کېدلو اُمید وي، نو څه حکم دی؟

﴿۱۴۸﴾ وَنُدِبَ تَأْخِيرُ التَّيَمُّمِ او مستحب دي د تیمم ځنډول (موخر کول) لِمَنْ يَرْجُو الْمَاءَ قَبْلَ خُرُوجِ الْوَقْتِ د هغه کس لپاره کوم چې د وخت تر وتلو (تېرېدلو) مخکې د اوبو (تر لاسه کېدلو) اُمید لري.

**لغات:** ﴿یرجو﴾ د نصر د باب مضارع ده: امید کول، امید ساتل.

**تشریح:** که اوبه نه وي خو دا اُمید وي چې د لمانځه د وخت تر آخره به پیدا سي، نو لمونځ تر آخر وخته پورې ځنډول مستحب دي، که چېرې اوبه پیدا سوې، نو په هغوی دې اودس وکړي او لمونځ دې وکړي، او که پیدا نه سوې، نو په تیمم سره دې لمونځ وکړي.

**فایده:** دلته له آخر وخت څخه مراد د بعضو په نېز د جواز آخري وخت دی او د بعضو په نېز د مستحب وخت آخر دی، همدا صحیح ده. (شفاء الارواح)

## که څوک د اوبو راوړلو وعده ور سره وکړي، نو څه حکم دی؟

﴿۱۴۹﴾ وَيَجِبُ التَّأْخِيْرُ بِالْوَعْدِ بِالْمَاءِ او واجب دي (د تيمم) ځنډول د اوبو د وعدې په وجه (چي يو څاد اوبو وعده ور سره کړې وي چي د اودسه اوبه درکوم) وَلَوْ خَافَ الْقَضَاءَ که څه هم (د لمانځه) پر قضاء وېرېږي (يعني که څه هم د لمونځ د قضاء کېدلو بېره وي. بيا هم په دې صورت کي تيمم ځنډول واجب دي).

**تشريح**: مسئله دا ده چي که څوک د اُوبو د راوړلو وعده وکړي، نو تيمم ځنډول واجب دي، که څه هم لمونځ قضاء سي، دا حکم هغه وخت دی کله چي د وعده کولو والا سره اوبه په يوه ميل کي دننه دننه موجوده وي، لهذا که د وعده کونکي سره اوبه نه وي، يا هغه اوبه يو ميل ليري وي، نو بيا تيمم ځنډول واجب نه دي؛ ځکه شريعت پر همداسي موقع د تيمم اجازه ورکړې ده. (حاشيه)

## په پورتني صورت کي د کپړې حکم

﴿۱۵۰﴾ وَيَجِبُ التَّأْخِيْرُ بِالْوَعْدِ بِالثَّوْبِ أَوِ السِّقَاءِ او واجب دي (دلمانځه) ځنډول د کپړې يا دڅي (يامثلاً دسولاغې) په وعده سره مَا لَمْ يَخَفِ الْقَضَاءَ تر څو چي (دلمانځه) پر قضاء نه وېرېږي (يعني که دلڅ کس سره کپړه اجمعا نه وي او يو څوک د کپړې ورکولو وعده ور سره وکړي يا د اوبو را اخيستلو اسباب نه وي لکه سولاغه او دلسي نور او يو څوک د هغه وعده ورسره وکړي، نو په دې صورت کي دلمونځ نه قضاء کېدلو تر وخته پوري تأخير کول واجب دي. لهذا کله چي دلمانځه دوخت آخره سي. نو تيمم دي وکړي او لمونځ دي وکړي، او لڅ سړی به په اشاره سره لمونځ کوي).

**لغات**: ﴿السِّقَاء﴾ ڈی (هغه مضبوطه څرمنيزه خلته چي له څرمني (چمړې) څخه جوړه وي چي عموماً پخوا به اوبو دحفاظت لپاره او دسولاغې په توګه استعمالېده. )، د اوبو مَشک، جمع: أَسْقِيَة و أَسْقِيَات.

**تشريح**: يعني که د چا سره جامه نه وي، لڅ وي او يو څوک د هغه سره د جامې وعده وکړي چي زه يې درته راوړم ته انتظار سه!، نو د هغه لپاره ضروري ده چي جامو ته انتظار وکړي او په لڅه لمونځ نه وکړي، لهذا که په لڅه بغير د جامو له انتظار کولو څخه لمونځ وکړي، نو لمونځ يې نه کېږي، همدارنګه که د چا سره د اُوبو راکښلو هيڅ سامان نه وي او يو څوک د سولاغې او رسۍ راوړلو وعده ور سره وکړي، نو تيمم ځنډول ضروري دي، په دې شرط چي د لمانځه د قضا کېدلو بېره نه وي او که دا بېره وي، نو بيا دي په آخري وخت کي په لڅه (اشارتا) او په تيمم سره لمونځ وکړي. (مراقی الفلاح ص، ۶۶)

## تر څومره ځایه پوري د اوبو تلاش واجب دی؟

﴿ ۱۵۱ ﴾ وَيَجِبُ طَلَبُ الْمَاءِ إِلَى مِقْدَارِ أَرْبَعِ مِائَةِ خُطْوَةٍ او واجب دي داوبو طلب (تلاش) کول تر دریو سوو(۳۰۰) گامو پوري إِنْ ظَنَّ قُرْبَهُ مَعَ الْأَمْنِ (په دې شرط) که گومان وي داوبو د نژدې والي د امن سره (يعني که لاره په امن وي او دا گومان وي چې اوبه نژدې سته) وَإِلَّا فَلَا کنې نو (طلب واجب) نه دی.

**لغات:** ﴿الخُطْوة﴾ گام، د دوو قدمونو تر مینځ مسافه، جمع: خُطُوَات.

**تشريح:** يعني کوم مسافر ته چې په څه دليل او علامت سره دا گومان سي چې اوبه به نژدې پیدا سي، مثلاً شنه گیاه (سبزه) په نظر ورسي، یا یو ځای مرغان سره گرځي، یا یو څوک داوبو د نژدې والي خبر ورکړي، نو کوم طرف ته چې يې گومان وي، هغه طرف ته څلور سوه گامه تلاش کول واجب دي او که څلورو سره طرفونو ته يې گومان وي، نو څلور سره طرفونو ته څلور سوه گامه تلاش کول ضروري دي او دا تلاش کول هغه وخت واجب دي کله چې د ځان او مال هيڅ خطره نه وي. خو که د ځان یا مال د هلاکېدلو خطره وي، نو د هغه لپاره تلاش کول واجب نه دي، همدارنگه دا تلاش خپله کول د هغه لپاره ضروري نه دي، بلکې که په بل چاپې وکړي، نو هم کافي دي. (حاشيه)

## له ملگري څخه د اوبو طلب کول

﴿ ۱۵۲ ﴾ وَيَجِبُ طَلَبُهُ مِمَّنْ هُوَ مَعَهُ او واجب دي داوبو طلب کول له هغه کس څخه کوم چې د ده سره (ملگری) وي (یا په بله ترجمه: له هغه کس څخه چې د هغه سره اوبه وي) إِنْ كَانَ فِي مَحَلٍّ لَا تَشُحُّ بِهِ النُّفُوسُ (په دې شرط) که په داسي ځای کي وي چې هلته پر اُوبو خلک بخل نه کوي وَإِنْ لَمْ يُعْطِهِ إِلَّا بِثَمَنِ مِثْلِهِ او که ده ته اوبه نه ورکوي مگر په مثلي قيمت (عام قيمت) سره لَزِمَهُ شِرَاؤُهُ بِهِ نو پر ده په همدې قيمت سره داوبو رانیول لازمیږي إِنْ كَانَ مَعَهُ فَاضِلًا عَنْ نَفَقَتِهِ (په دې شرط) که د ده سره دا قيمت وي په داسي حال کي چې د ده تر خرڅې زيات وي(یا په بله وينا دا چې د ده سره د سفر تر خرڅ زیات مال موجود وي).

**لغات:** ﴿لا تشحّ﴾ د نصر له بابه د فعل مضارع منفي معروف صيغه ده شحًّا: بخل کول، حرص کول، ﴿الثمن﴾ قيمت (پيسې)، نرخ، هغه ريت او قيمت کوم چې يې بائع او مشتري په خپل مينځ کي

وټاکي. ﴿ثمن المثل﴾ عمومي رېټ (دشي مناسب قیمت)، په بازار او منډۍ کې چې د یو شي څومره قیمت وي، هغه ته ثمن مثل وایي، دلته څنې مراد هغه قیمت دی کوم چې یې بائع او مشتري په خپل رضاء سره وټاکي. (انوار الایضاح)

**تشریح**: که د سفر د ملګري سره اوبه وي، نو تر تیمم کولو مخکې له هغه څخه اوبه غوښتل ضروري دي، که هغه اوبه ورکړي، نو په اوداسه دې لمونځ وکړي، کنې په تیمم سره دې لمونځ وکړي، دلته د سفر له ملګري څخه مراد هغه کس دی چې د هغه سره اوبه وي، او که اوبه په قیمت سره پیدا کېږي او قیمت یې عام قیمت وي، ګران نه وي یا په غبن یسیر (یعني له عمومي (بازاري) قیمت څخه څه ګران) یې خرڅوي، نو بیا که د هغه کس سره تر خپل خرچ زیاتې پیسې وي، نو په دې صورت کې د هغه لپاره تیمم جائز نه دی او قیمتاً اوبه اخیستل ضروري دي، او که په غبنِ فاحش سره یې خرڅوي، نو بیا د هغه لپاره تیمم جائز دی. (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

## په یوه تیمم سره هر څو لمنځونه کېدلای سي؟

﴿۱۵۳﴾ وَيُصَلِّيْ بِالتَّيَمُّمِ الْوَاحِدِ مَا شَاءَ مِنَ الْفَرَائِضِ وَالنَّوَافِلِ او کولای سي په یوه تیمم سره څومره چې د ده خوښه له فرضي او نفلي لمونځونو څخه (یعني په یو تیمم سره هر څو فرضي او نفلي لمونځونه کولای سي) وَصَحَّ تَقْدِيْمُهُ عَلَى الْوَقْتِ او صحیح دی تیمم مخکې کول پر وخت (یعني له وخت څخه مخکې تیمم وهل هم صحیح دي).

**تشریح**: صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله فرمايي چې په یوه تیمم سره هر څو لمونځونه کولای سي، برابره ده فرائض وي او که نوافل وي، اداء وي او که قضاء وي یا د نذر لمونځ وي، تر څو چې تیمم مات نه سي، وروسته فرمايي چې څرنګه له وخت څخه مخکې اودس کول صحیح دي، همداسې تیمم هم صحیح دی.

## د اکثره اندامونو د زخمي کېدو په صورت کې د تیمم حکم

﴿۱۵۴﴾ وَلَوْ كَانَ أَكْثَرُ الْبَدَنِ أَوْ نِصْفُهُ جَرِيْحًا او که د بدن اکثره (زیاتره) حصه یا نیمه حصه زخمي (ټپي) وي تَيَمَّمَ نو تیمم دې وکړي (یعني په دې صورت کې تیمم کولای سي) وَإِنْ كَانَ أَكْثَرُهُ صَحِيْحًا او که د بدن اکثره حصه صحیح وي غَسَلَهُ وَمَسَحَ الْجَرِيْحَ نو هغه دې پرېولي او پر زخمي حصه دې مسح وکړي وَلَا يَجْمَعُ بَيْنَ الْغُسْلِ وَالتَّيَمُّمِ او د پرېوللو او تیمم تر مینځ دې جمع نه کوي.

**لغات:** ﴿جريح﴾ زخمي، ټپي، جمع: جرحیٰ.

**تشریح:** که دبدن اکثره حصه یانیمه حصه (نیم بدن) زخمي وي، مثلاً پر هغه دانې وغیره وي، نو د غسل پر ځای به تیمم کوي، لکه څرنګه چي داوداسه اندامونه یعني اعضاء اربعه (مخ، دواړه لاسونه او دواړه پښې) که اکثره زخمي وي مثلاً درې اندامونه زخمي وي، نو تیمم به کوي. لېکن که دبدن اکثره حصه روغه وي، یا په بله وینا له نیم څخه زیات بدن صحیح سلامت وي او څه حصه یې زخمي وي، نو په دې صورت کې به پر زخمي اندامونو مسح کول کیږي او صحیح اندامونه به پرېولل کیږي، او که پر زخمونو مسح نه سي کولای، نو پر جبیره دې مسح وکړي، کني مسح دې پرېږدي.

ها! که زخم داسي ځای وي چي که روغه حصه پرېولل سي نو هغه زخمي حصه له اوبو څخه ساتل مشکل وي، نو هغه روغه حصه هم دزخم په حکم سره شمېرل کیږي او د هغه په وجه د مسح اجازه سته.

ولايجمع الخ: صاحب د "شفاء الارواح" د دې عبارت تشریح داسي کړې ده چي کله دبدن اکثره حصه روغه وي، نو داسي دې نه کوي چي څه حصه پرېولي او پر څه حصې تیمم وکړي (ځکه په شریعت کي دبدل او مبدل منهٔ دجمع کولو هیڅ مثال نه ترلاسه کیږي امراقی الفلاح مع الطحطاوي ص: ۱۶۸)، مثلاً که صرف په پښو باندي زخم وي نو حکم دا دی چي مخ او لاسونه پرېولي او پر پښو مسح وکړي، او داسي نه دي کوي چي مخ پرېولي او پر لاسونو تیمم وکړي، دا پرېولل او تیمم سره جمع کول دي کوم چي جائز نه دي.

## تیمم په کومو شیانو سره ماتیږي؟

﴿۱۵۵﴾ وَيَنْقُضُهُ نَاقِضُ الْوُضُوْءِ او تیمم ماتوي هغه شی کوم چي داودس ماتونکی وي(یعني په کومو شیانو سره چي اودس ماتیږي، تیمم هم په هغوی سره ماتیږي) وَالْقُدْرَةُ عَلَى اسْتِعْمَالِ الْمَاءِ الْكَافِيْ او (همدارنګه تیمم ماتوي) قدرت لرل (قادر کېدل) پر استعمال د کافي اوبو(یعني دومره اوبه کوم چي د طهارت لپاره کافي وي).

**تشریح:** یعني په کومو شیانو سره چي اودس ماتیږي، په هماغه شیانو سره تیمم هم ماتیږي، همدارنګه که تیمم کوونکی داوداسه داوبو پر استعمالولو قدرت پیدا کړي، نو د هغه تیمم ماتیږي، داوبو پر استعمال د قدرت لرلو مطلب دا دی چي اوبه موجوده وي او د څه دښمن یا درنده بېره نه وي او نه هغه داسي مریض وي چي اوبه تاوان ورته کوي، همدارنګه اوبه دومره کمي نه وي چي داوداسه اندامونه یو وار هم نه په پرېولل کیږي.

## که د یو چا دواړه لاسونه پرې وي او مخ یې هم زخمي وي

﴿۱۵۲﴾ وَمَقْطُوْعُ الْيَدَيْنِ وَالرِّجْلَيْنِ إِذَا كَانَ بِوَجْهِهٖ جِرَاحَةٌ او هغه کس چې دواړه لاسونه او دواړه پښې پرېکړل سوي وي کله چې د هغه پر مخ (هم) زخم وي يُصَلِّيْ بِغَيْرِ طَهَارَةٍ هغه دې بېله طهارته (بغیر له اودسه) لمونځ کوي وَلَا يُعِيْدُ او بیا دې (یې) نه راگرځوي.

**لغات**: ﴿جراحة﴾ زخم، پرهار، جمع: جِراح وجِراحات.

**تشریح**: که د کوم چا دواړه لاسونه تر څنگلو او دواړه پښې یې تر بجلکو پرې سوي وي او د هغه پر مخ هم زخم وي مثلاً دانې وي، نو له هغه څخه اودس او تیمم ساقط دي، بس هغه دې په همدې حالت کې چې څرنگه وي بغیر له طهارته لمونځ کوي او وروسته یې د راگرځولو ضرورت هم نسته. (انوار الایضاح، شفاء الارواح)



**مسئله (۱)**: که د کوم چا دواړه لاسونه تر څنگلو پرې سوي وي او مخ یې روغ وي، نو کله چې هغه پر لاسونو تیمم کوي، نو د پرېکېدلو ځای دې مسح کوي. (حلبي کبیر ج:۱، ص:۶۴، عالمگیري ج:۱، ص:۲۶)

### په بل چا تیمّم کول

**مسئله (۲)**: که مریض خپله تیمم نه سي کولای، نو بل څوک هم د هغه تیمم ور کولای سي، په دې شرط چې حکم کونکی نیت هم وکړي. (درمختار مع الشامي ج:۱، ص:۲۵۷، ط: بیروت، کتاب المسائل ص:۱۷۸)



# بَابُ الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ

(دا) فصل پر موزو د مسح کولو (په بیان کې) دی

**تشریح:** تیمم او مسح علی الخفین دواړه عارض دي؛ ځکه اصل غسل (پرېولل) دي، خو ځرنګه چي تیمم په کتابُ الله سره ثابت دی او مسح په سنتو سره ثابته ده، نو ځکه تیمم اقوی دی او د دې مستحق دی چي له "مسح علی الخفین" څخه مخکي کړی سي، نو ځکه یې مخکي بیان کړی دی، لکه مخکي چي هم موږ ذکر کړه.

**د مسح لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** د مَسْح لغوي معنیٰ ده: «إِمْرَارُ الْيَدِ عَلَى شَيْئٍ» (یعني پر یو شي لاس تېرول) او د مَسْح اصطلاحي معنیٰ ده: لوند لاس پر هغه شي تېرول چي پر هغه د لاس تېرولو حکم سوی وي. نو د "مَسْح عَلَى الْخُفَّيْن" معنیٰ سوه: «إِصَابَةُ الْيَدِ الْمُبْتَلَّةِ الْخُفَّ الْمَلْبُوْسَ» (یعني پر اغوستل سوو موزو باندي لوند لاس تېرول).

**د مسح علی الخفین ثبوت:** د مسح علی الخفین مشروعیت په مشهوره حدیثونو سره ثابت دی. امام کرخي رَحِمَهُ الله فرمايي چي زما سره د هغه کس د کفر اندېښنه سته چي پر موزو مسح جائز نه ګڼي، د مسح د مشروعیت په لړ کي علامه ابو الفضل احمد بن علي عسقلاني رَحِمَهُ الله په "الدراية فی تخريج أحاديث الهداية" کي تقريباً (۲۶) حدیثونه بیان کړي دي، چي له هغوی څخه موږ پر درېو حدیثونو اکتفاء کوو:

① «عَنْ عَمْرِو ابْنِ أُمَيَّةِ أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ ﷺ يَمْسَحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ». (بخاري شريف، باب المسح على الخفين، حديث شمېره: ۲۰۴)

② «عَنْ بِلَالٍ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ تَوَضَّأَ وَمَسَحَ عَلَى الْخُفَّيْنِ». (مسلم شريف، باب المسح على الناصية، حديث شمېره: ٦٦٠)

③ «عن عائشة رضي الله عنها قالت: كان رسول الله ﷺ يأمرنا أن نمسح على الخفين يوما وليلة للمقيم، وللمسافر ثلاثة». (نسائي، دارقطني)

د امام صاحب (امام اعظم ابو حنیفه) رَحِمَهُ الله په هکله نقل سوي دي چي یوه سړي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د اهل السنة والجماعت د مذهب په باره کي پوښتنه وکړه، نو امام صاحب رَحِمَهُ الله ورته وفرمایل چي: أَنْ يُفَضِّلَ الشَّيْخَيْنِ وَيُحِبَّ الْخَتَنَيْنِ وَيَرَى الْمَسْحَ عَلَى الْخُفَّيْنِ (یعني کوم څوک چي شیخین یعني حضرت ابو بکر صدیق ﷺ او حضرت عمر فاروق ﷺ له ټولو صحابه وو څخه افضل او غوره ګڼي او د نبي ﷺ د دواړو زومانو یعني د حضرت عثمان ﷺ او د حضرت علي ﷺ سره مینه لري، همدارنګه مسح علی الخفین جائز ګڼي، نو هغه له اهل السنة والجماعت څخه دی).

## د موزو د مسح بیان

﴿۱۵۷﴾ صَحَّ الْمَسْحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ فِي الْحَدَثِ الْأَصْغَرِ لِلرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ جائز ده مسح پر دواړو موزو په کوچنی بې اودسیا کي د سړیو او ښځو (دواړو) لپاره وَلَوْ كَانَا مِنْ شَيْءٍ ثَخِينٍ غَيْرِ الْجِلْدِ که څه هم دواړه موزې له چرمې څخه بغیر له یو (بل) پنډ شي څخه (جوړي) وي سَوَاءٌ كَانَ لَهُمَا نَعْلٌ مِنْ جِلْدٍ أَوْ لَا برابره ده د موزو تلی له چرمې (څرمني) څخه وي او که نه وي.

**لغات:** ﴿الثخین﴾ سخت، مضبوط، ډبل، پنډ. ﴿جلد﴾ چمړه، څرمن، چرم. ﴿النعل﴾ د دې لفظ څو معناوې دي چي له هغوی څخه یې مشهوره معنیٰ ده: څپلی، او بله معنیٰ یې ده: هغه چمړه (څرمن) چي په هغه سره موزه ساتل کیږي، یعني چي د حفاظت لپاره موزه پکښې پوښل کیږي (معجم الوسیط)، او صاحب د انوار الایضاح یې یوه معنیٰ دا هم لیکلې ده (د څپلی تلی) کوم چي په قلموسونو کي نشته، جمع: نِعَال.

**تشریح:** د محدث (بې اودسه) لپاره پر موزو مسح کول جائز دي، محدث برابره ده سړی وي او که ښځه وي، دلته د حدث اصغر (کوچنی بې اودسیا) قید لګول سوی دی، له دې څخه معلومه سوه چي کوم چا موزې اغوستي وي او بیا حدث اکبر (لویه بې اودسیا) ورته پیښه سي یعني غسل پرې واجب سي، نو په دې صورت کي مسح علی الخفین جائز نه ده، بلکي موزې به کاږل کیږي او پښې به هم پریولل کیږي.

ولو کانا الخ، فرمایي که هغه موزې د څرمني (چمړې) نه وي، خو پنډې او سختې وي، نو بیا هم مسح جائز ده، د مسح علی الخفین څلور صورتونه دي:

① یو دا چي دواړه موزې د څرمني (چمړې) وي، پر داسې موزو بالاتفاق مسح جائز ده.

② دویم دا چي د څرمني نه وي خو له پنډي او ډبلي کپړې څخه جوړي وي او مُنَعَّلَیْن یا مُجَلَّدَیْن وي (د مُنَعَّل معنیٰ دا ده چي تلی یې د چمړې وي او پر تلي یې چمړه لګېدلې وي او د مُجلد معنیٰ دا ده چي لاندي باندي چمړه وي یعني پر هغه د پاسه او لاندي دواړو طرفونو ته چمړه لګېدلې وي) چي زموږ په اصطلاح کي ماسې ورته ویل کېږي، نو په دې صورت هم کي بالاتفاق پر هغوی مسح جائز ده.

③ دریم دا چي نه له پنډي کپړې څخه وي او نه مُنعلین وي، نو په دې صورت کي بالاتفاق مسح جائز نه ده.

④ څلورم دا چي له پنډي او سختي کپړې څخه خو وي یعني له داسي مضبوطه او پنډي کپړي څخه جوړي وي چي بغیر له تړلو خپله پر پنډیو پاتېږي او دومره نری نه وي چي بله خوا یې ښکارېږي، لېکن مُنعلین نه وي، نو په دې صورت کي د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نېز مسح جائز نه ده او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز جائز ده، او فتویٰ د صاحبینو پر قول ده؛ ځکه د امام صاحب په هکله دا روایت ذکر سوی دی چي هغه د خپل عمر په آخر کي د صاحبینو قول ته رجوع وکړه، د روایت الفاظ دا دي: «وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله أَنَّهُ مَسَحَ عَلَى جَوْرَبَيْهِ فِي مَرَضِهِ ثُمَّ قَالَ لِعُوَّادِهِ.... (الخ)». [العنایة ج:۱، ص:۱۳۹]، (یعني امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله د وفات په مرض کي (تر مرګ لووه ورځي یا درې ورځي مخکي) پر [غیر مُنعلین] موزو مسح وکړه او بیا یې هغه خلکو ته وویل کوم چي د ده د پوښتني لپاره راغلي وه: "ما [نن] هغه کار وکړی چي خلک به مي له هغه څخه منع کول")، نو په دې قول سره علماء د امام صاحب پر رجوع دلیل نیسي.



مسئله (۱): نن سبا چي کومي جراپي وغیره استعمالول کېږي، پر هغوی بالکل مسح جائز نه ده؛ ځکه په هغوی کي د جواز شرائط نسته. لهذا د اودس کولو پر مهال د هغوی کښل او پښې پرېولل ضروري دي. (المحیط البرهاني ج:۱، ص:۳۴۴)

## د څو جراپو حکم

**مسئله** (۲): که یو چا څو دانې (مثلاً درې یا څلور) نرۍ جراپې یو د بل د پاسه په پښو کړي وي، نو هم پر هغوی مسح جائز نه ده. (بحواله هندیه ج:۱، ص:۳۲)

## پر موزو د مسح صحیح کېدلو شرطونه

| |
|---|
| ﴿۱۵۸﴾ وَيُشْتَرَطُ لِجَوَازِ الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ سَبْعَةُ شَرَائِطَ او پر موزو د مسح جائز کېدلو لپاره اووه شرطونه شرط دي الْأَوَّلُ لُبْسُهُمَا بَعْدَ غَسْلِ الرِّجْلَيْنِ (۱) اول شرط دواړه موزې د |

دواړو پښو تر پړېوللو وروسته اغوستل دي وَلَوْ قَبْلَ كَمَالِ الْوُضُوْءِ إِذَا أَتَمَّهُ قَبْلَ حُصُوْلِ نَاقِضٍ لِلْوُضُوْءِ که څه هم د اوداسه له پوره کولو څخه مخکې وي (خو دا هغه وخت) کله چې يې د اودس ماتونکي شي له پېښېدلو څخه مخکې يې اودس پوره کړی وي.

**لغات**: لبسهما: د "هما" ضمير د خفين (موزو) وطرف ته راجع دی. اتمه: ضمير د وُضوٓ (اودس) وطرف ته راجع دی.

**تشريح**: پر موزو د مسح د جائز کېدلو اول شرط دا دی چې د دواړو پښو تر پړېوللو وروسته به يې موزې اغوستې وي او دا ضروري نه ده چې اول تو له اودس پوره کړي بيا موزې واغوندي. لېکن دا ضروري ده چې د بې اودسه کېدلو په وخت کې به د هغه اودس پوره وي، لهذا که څوک اول خپلې پښې پړېولي او موزې په پښو کړي بيا پاته اودس پوره کړي، تر دې وروسته بې اودسه سي نو اوس هغه ته پر موزو مسح کول جائز دي؛ ځکه که څه هم د موزو د اغوستلو پر مهال طهارت کامله موجود نه وو (يعني اودس پوره سوی نه وو)، لېکن د بې اودسه کېدلو په وخت کې طهارت کامله موجود وو. لېکن که څوک اول خپلې پښې پړېولي او موزې په پښو کړي بيا د پاته اودس له پوره کولو څخه مخکې بې اودسه سي، نو اوس پر موزو مسح جائز نه ده؛ ځکه د بې اودسه کېدلو په وخت کې طهارت کامله موجود نه وو.

﴿۱۵۹﴾ وَالثَّانِيْ سَتْرُهُمَا لِلْكَعْبَيْنِ (۲) او دويم شرط د موزو پټول دي بجلکو لره (يعني موزې به داسې وي چې بجلکې پټوي، کنې مسح باندې جائز نه ده).

**تشريح**: پر موزو د مسح جائز کېدلو دويم شرط دا دی چې هغه موزې به داسې وي چې پښې تر بجلکو پکښې پټې وي، بيا مسح باندې جائز ده، که چيرې موزې تر پونډلو پورې وي، نو پر هغوی مسح جائز نه ده.

﴿۱۶۰﴾ وَالثَّالِثُ إِمْكَانُ مُتَابَعَةِ الْمَشْيِ فِيْهِمَا (۳) او درېيم شرط په دواړو موزو کې د پرلپسې تګ کولو ممکن کېدل دي (يعني په دواړو موزو کې به پرلپسې اسلل اتلل ممکن وي) فَلَا يَجُوْزُ عَلَى خُفٍّ مِنْ زُجَاجٍ أَوْ خَشَبٍ أَوْ حَدِيْدٍ نو د ښيښې يا لرګي (تختې) يا اوسپنې پر موزو مسح جائز نه ده.

**تشريح**: درېيم شرط دا دی چې موزې به داسې وي چې په هغوی کې مسلسل تګ کول ممکن وي، يعني بلا تکلفه درې ميله تګ پکښې کېدلای سي (کوم چې څه د پاسه ۵ کيلو متره کېږي)، محشي رَحِمَهُ

الله فرمايي چي موږ د مذکوره شيانو (لرګي، اوسپني...) موزې نه دي ليدلي، کېداى سي له دوى څخه د موزې په څېر بل شى جوړول کيږي هغه به مراد وي، يا هسې مسئله به داسې فرض کړل سوې وي.

﴿۱۶۱﴾ وَالرَّابِعُ خُلُوُّ كُلٍّ مِنْهُمَا عَنْ خَرْقٍ (۴) او څلورم شرط د موزې خالي کېدل دي له داسې څيري والي (چاک) څخه قَدْرَ ثَلَاثِ أَصَابِعَ مِنْ أَصْغَرِ أَصَابِعِ الْقَدَمِ کوم چي په اندازه د دريو ګوتو وي د پښې له کوچنيو ګوتو څخه.

**لغات**: ﴿خَرْق﴾ سوری، چاک، څيري والی.

**تشريح**: د مسح جائز کېدلو څلورم شرط دا دی چي موزه به ډېره څيري نه وي او د ډېر څيري والي مقدار د پښې درې کوچنۍ ګوتې دي، لهذا که موزه داسې وي چي په هغوى کي د پښې د دريو کوچنيو ګوتو په اندازه سوری (چاک) وي، برابره ده هغه سوری د موزې په لاندينۍ حصه (تلي) کي وي، يا د پاسه وي، يا د پوندي وطرف ته وي، نو پر داسې موزه مسح جائز نه ده او د کوچنيو ګوتو اعتبار هغه وخت دی کله چي سوری له ګوتو څخه بغير پر بل ځاى وي او که سوری پر ګوتو وي. يا په بله وينا ګوتې ښکاره وي، نو بيا مطلقاً دريو ګوتو لره اعتبار دی، لهذا که بټه ګوته او د هغې څنګ والا ګوته ښکاره وي، نو هم مسح جائز ده؛ ځکه درې ګوتې نه دي که څه هم دا دواړه د پښې د دريو کوچنيو ګوتو په اندازه دي، او که بټه ګوته او د هغې څنګ والا دوې ګوتې ښکاره وي، نو مسح جائز نه ده.



**مسئله**: که د يوې موزې څو ځايه لږ، لږ څيري وي او هغه څيري ځايونه (چاکونه) مجموعتاً د پښو د دريو کوچنيو ګوتو په اندازه وي، نو مسح جائز نه ده او که دواړه موزې داسې څيري وي چي مجموعتاً د دريو ګوتو په اندازه وي، نو د هغه اعتبار به نه کول کيږي، پر داسې موزو مسح جائز ده. (درمختار ج۱، ص، ۴۰۰، ط، بيروت، کتاب المسائل ص۱۹۱)

﴿۱۶۲﴾ وَالْخَامِسُ اسْتِمْسَاكُهُمَا عَلَى الرِّجْلَيْنِ مِنْ غَيْرِ شَدٍّ (۵) او پنځم شرط د دواړو موزو ټينګېدل دي پر پښو بغير له تړلو څخه (يعني دواړه موزې به داسې مضبوطه وي چي له تړلو څخه بغير پر پښو ټينګي پاته سي).

**لغات**: ﴿استمساك﴾ د استفعال د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي؛ بندېدل، ټينګ نيول کېدل، ټينګ نيول، منع کېدل. ﴿شدّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: تړل.

**تشريح**: پنځم شرط دادی چي دواړه موزې داسي مضبوطه او ټينګي وي چي بغير د يو شي له تړلو ځخه خپله پر پښو ټينګي پاتيږي او نه خيږي، کنې مسح باندي جائز نه ده.

﴿۱۶۳﴾ وَالسَّادِسُ مَنْعُهُمَا وُصُوْلَ الْمَاءِ إِلَى الْجَسَدِ (۶) او شپږم شرط د دواړو موزو مانع کېدل (چي منع کوي به) بدن ته داوبو رسېدل (يعني که پر دوی اوبه ولوېږي، نو تر دوی لاندي حصې ته نه رسيږي).

**تشريح**: شپږم شرط دادی چي موزې به داسي وي چي که پر هغوی اوبه واچول سي، نو پښو ته نه رسيږي، کنې مسح باندي جائز نه ده.

﴿۱۶۴﴾ وَالسَّابِعُ أَنْ يَبْقَى مِنْ مُقَدَّمِ الْقَدَمِ قَدْرُ ثَلَاثِ أَصَابِعَ (۷) او اووم شرط دادی چي د پښې مخکيني حصه به د درېو ګوتو په اندازه باقي پاته وي مِنْ أَصْغَرِ أَصَابِعِ الْيَدِ د لاس له کوچنيو ګوتو ځخه (يعني د لاس د درېو کوچنيو ګوتو په اندازه به د پښې مخکيني حصه موجوده وي) فَلَوْ كَانَ فَاقِدًا مُقَدَّمَ قَدَمِهِ نو که د يو کس د پښې مخکيني حصه نه وي لَا يَمْسَحُ عَلَى خُفِّهِ نو هغه پر موزه مسح نه سي کولای وَلَوْ كَانَ عَقِبُ الْقَدَمِ مَوْجُوْدًا که څه هم د پښې پونده موجوده وي.

**لغات**: ﴿عقب﴾ پونده، د پښې د ښېلي لانديني برخه، جمع: أَعْقَاب.

**تشريح**: د مسح جائز کېدلو اووم شرط دادی چي د کوم چا پښه پرې سوې وي، نو کم از کم د لاس د درېو کوچنيو ګوتو په اندازه به د هغه د پښې مخکنۍ حصه پاته وي، او که مخکنۍ حصه يې غائبه وي، نو بيا پر موزې مسح کول صحيح نه دي، که څه هم شاتنۍ حصه پاته وي. (انوار الايضاح بحوالۀ فتاوی تاتار خانية ج:۱، ص:۴۲۰، مسئله:۱۰۲۲)

**يادونه**: صاحب د "شفاء الارواح" د مذکوره عبارت تشريح داسي کړې ده: اووم شرط يې دادی چي د مسح کونکي پښه به تر بجلکي لاندي د لاس د درېو کوچنيو ګوتو په اندازه روغه موجوده وي، لهذا که د چا پښه تر بجلکي لاندي پرې سوې وي او د مسح کولو ځای کم از کم (لږ تر لږه) د درېو ګوتو په اندازه پاته وي، نو پر دواړو موزو به مسح کوي، او که د فرض مقدار په اندازه يعني د درېو ګوتو په اندازه حصه پاته نه وي، نو بيا د دواړو پښو پرېولل ضروري دي؛ ځکه د مسح محل باقي نه دی، خود غسل محل باقي دی، لهذا داسي به نه کوي چي د روغې پښې پر موزه مسح کوي او د پرې سوي پښې پاته حصه پرېولي؛ ځکه مسح او غسل (دواړه پريول، غسل) په وظيفه کي د پښو نه سره يو ځای کيږي. (شفاء الارواح، مراقی الفلاح)

## د مسح موده

﴿۱۶۵﴾ وَيَمْسَحُ الْمُقِيْمُ يَوْمًا وَلَيْلَةً او مسح به کوي مقيم کس يوه ورځ او يوه شپه وَالْمُسَافِرُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ بِلَيَالِيْهَا او مسافر کس درې ورځې د هغوی د شپو سره (يعني مسافر به درې ورځې او درې شپې مسح کوي).

**تشريح:** د مقيم لپاره يوه ورځ او يوه شپه (يعني ۲۴ ساعته) او د مسافر لپاره درې ورځې او درې شپې (۷۲ ساعته) پر موزو مسح کول جائز دي.

## د مسح د مذکوره مودې ابتداء له کومه وخته کيږي؟

﴿۱۶۶﴾ وَابْتِدَاءُ الْمُدَّةِ مِنْ وَقْتِ الْحَدَثِ بَعْدَ لُبْسِ الْخُفَّيْنِ او (د مسح) د مودې شروع د بې اودسيا له وخت څخه ده د موزو تر اغوستلو وروسته.

**تشريح:** د مسح موده (يعني د مقيم لپاره يوه ورځ او يوه شپه او د مسافر لپاره درې ورځې او درې شپې، دا موده) له کومه وخته شروع کيږي، يا په بله وينا له کومه وخته شمېرل کيږي؟ په دې باره کې د علماؤ اختلاف دی، صحيح دا ده چې د موزو تر اغوستلو وروسته چې کله د سړي اودس مات سي، نو د همدې بې ولدسيا (حدث) له وخته څخه د مسح موده شروع کيږي، او د امام اوزاعي رَحِمَهُ الله په نيز د موزې اغوستلو له وخته څخه دا موده شروع کيږي، او د امام احمد رَحِمَهُ الله په نيز د مسح له وخت څخه شروع کيږي. (شفاء الارواح)

## مسح کونکی مقيم که مسافر سي؟

﴿۱۶۷﴾ وَإِنْ مَسَحَ مُقِيْمٌ ثُمَّ سَافَرَ قَبْلَ تَمَامِ مُدَّتِهِ او که مقيم کس مسح وکړي بيا د خپل مودې (يوې ورځې او شپې) تر پوره کېدلو مخکې سفر وکړي (مسافر سي) أَتَمَّ مُدَّةَ الْمُسَافِرِ نو هغه دې د مسافر موده (درې ورځې او شپې) پوره کړي.

**تشريح:** که مسح کونکی مقيم له يوې ورځې او يوې شپې څخه مخکې مسافر سي، نو بيا به هغه تر درېو ورځو او درېو شپو پورې مسح پوره کوي. (دا يې مطلب نه دی چې له نوي سره به درې ورځې او شپې مسح کوي). (هنديه ج۱، ص۳۲)

## مسح کونکی مسافر که مقیم سي؟

﴿۱۶۸﴾ وَإِنْ أَقَامَ الْمُسَافِرُ بَعْدَ مَا يَمْسَحُ يَوْمًا وَلَيْلَةً او که چیري مسافر مقیم سي دیوې ورځې او یوې شپې تر مسح کولو وروسته نَزَعَ نو دي (موزې) وکاږي وَإِلَّا يُتِمُّ يَوْمًا وَلَيْلَةً کنې یوه ورځ او یوه شپه دي پوره کړي.

**تشریح:** که څوک د سفر په حالت کې مسح شروع کړي او بیا د یوې ورځې او یوې شپې له پوره کېدلو څخه مخکې مقیم سي، نو تر یوې ورځې او شپې پورې به مسح پوره کوي او که د یوې ورځې او یوې شپې له پوره کېدلو څخه وروسته مقیم سي، نو بیا د اقامت په حالت کې د هغه لپاره مسح کول جائز نه دي، بلکې د موزو کښل او پښې پرېولل ضروري دي. (هندیه ج:۱، ص:۳۴، کتاب المسائل ص:۱۹۰)

## د مسح فرض مقدار

﴿۱۶۹﴾ وَفَرْضُ الْمَسْحِ قَدْرُ ثَلَاثِ أَصَابِعَ او (د موزې) د مسح فرض (مقدار) د دریو ګوتو په اندازه دی مِنْ أَصْغَرِ أَصَابِعِ الْيَدِ د لاس له کوچنیو ګوتو څخه عَلَى ظَاهِرِ مُقَدَّمِ كُلِّ رِجْلٍ د هرې پښې د مخکینۍ حصې پر بښکاره (پلنی) طرف باندې (یعني د هرې پښې د مخ پر پلنی حصه د لاس د دریو کوچنیو ګوتو په اندازه مسح کول فرض دي).

**تشریح:** په دې عبارت کې د مسح د فرض مقدار بیان دی او هغه دا چې پر هرې موزې د لاس د دریو کوچنیو ګوتو په اندازه مسح کول فرض دي، لهذا که څوک پر یوه موزه د دوو ګوتو په اندازه مسح وکړي او پر بلې موزې د پنځو ګوتو په اندازه مسح وکړي، نو مسح نه صحیح کېږي او د هرې موزې پر ظاهري (پلنی) حصه مسح کول ضروري دي، د موزې د تلې پر طرف یا صرف د پوندې پر طرف مسح کول جائز نه دي او شرعاً هیڅ اعتبار ور لره نسته. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

## د مسح سنت طریقه

﴿۱۷۰﴾ وَسُنَّتُهُ مَدُّ الْأَصَابِعِ مُفَرَّجَةً او (د موزې) د مسح سنتونه د ګوتو کښول دي په داسي حال کي چي ګوتي خلاصي (غوړېدلي) وي مِنْ رُؤُوسِ أَصَابِعِ الْقَدَمِ إِلَى السَّاقِ د پښې د ګوتو له سرولو څخه تر پنډۍ پوري (یعني د مسح سنت طریقه دا ده چي پر پښه د ګوتو له سر څخه تر پنډۍ پوري د لاس خلاصي ګوتې کش کړي).

**لغات:** ﴿مفرجة﴾ د تفعيل له بابه مؤنث مفعول دی، فَرَّجَ يُفَرِّجُ تَفْرِيجًا: پراخه ساتل، خلاصول، خلاص لرل.

**تشريح:** يعني فرض مقدار خو صرف دا دی چې د لاس د دريو ګوتو په اندازه د هرې موزې ظاهري حصه لنده سي (لکه مخکې چې ذکر سوه)، خو د مسح سنت طريقه دا ده چې دواړه لاسونه په اوبو سره لانده کړي او د ښې راسته لاس ګوتې د راسته موزې پر مخکنۍ حصه او د چپه لاس ګوتې د چپه موزې پر مخکنۍ حصه کېښږدي بيا دواړه لاسونه د پنډيو وطرف ته (تر بجلکو لوړ پورې) کش کړي او ګوتې دې خلاصې لري، صرف يو وار داسې کول سنت دي او که د ګوتو سره ورغوی هم يو ځای کړي نو غوره ده، او که د دې خلاف وکړي يعني د پنډيو له طرف څخه يا له بل طرف څخه ګوتې راکش کړي، نو مسح خو کيږي لېکن د سنت خلاف به وي. (شفاء الارواح، انوار الايضاح)



## صرف په يوه ګوته سره مسح کول

**مسئله (۱):** که پر يوه موزه صرف يوه ګوته درې واره پر يوه ځای کش کړل سي، نو مسح نه صحيح کيږي، هو! که ګوته درې واره لنده کړل سي او پر درې ځايه، جلا جلا ځايو کش کړل سي، نو مسح صحيح کيږي. (کتاب المسائل ص: ۱۸۶، عالمګيري ج: ۱، ص: ۳۲، ۳۳)

## د مسح پر ځای په لندو وابنو باندې تګ

**مسئله (۲):** که څوک پر موزو د مسح کولو پر ځای په داسې واښو باندې وګرځيږي کوم چې په پاکو اوبو سره لانده وي چې د هغه په وجه د موزو ظاهري پاسنۍ حصه په اوبو سره لنده سي، نو په دې سره هم د مسح على الخفين وظيفه اداء کيږي. (المحيط البرهاني ج: ۱، ص: ۳۴۱، کتاب المسائل ص: ۱۸۷)

## په بل چا مسح کول

**مسئله (۳):** که څوک په مسح کې له بل چا څخه مرسته وغواړي او خپلې موزې په بل چا مسح کړي، نو هم مسح صحيح کيږي. (پورتنی حواله)

## په کومو شيانو سره مسح ماتيږي!

﴿۱۷۱﴾ وَيَنْقُضُ مَسْحَ الْخُفِّ أَرْبَعَةُ أَشْيَاءَ او د موزې مسح څلور شيان ماتوي (په څلورو شيانو سره د موزې مسح ماتيږي) كُلُّ شَيْءٍ يَنْقُضُ الْوُضُوْءَ (۱) هر هغه شی کوم چې اودس ماتوي وَنَزْعُ خُفٍّ (۲) او د موزې کښل وَلَوْ بِخُرُوْجِ أَكْثَرِ الْقَدَمِ إِلَى سَاقِ الْخُفِّ که څه هم د پښې د اکثره حصې په راوتلو سره وي د موزې و پنډۍ ته (يعني چې د قدم اکثره حصه د موزې تر پنډۍ پورې راووځي)

وَإِصَابَةُ الْمَاءِ أَكْثَرَ إِحْدَى الْقَدَمَيْنِ فِي الْخُفِّ (۳) او ديوې پښې اکثره حصې ته په موزه کي (دننه) اوبه رسېدل عَلَى الصَّحِيحِ دصحيح قول مطابق وَمُضِيُّ الْمُدَّةِ (۴) او (دمسح) د مودې تېرېدل (هم مسح ماتوي) إِنْ لَمْ يَخَفْ ذَهَابَ رِجْلِهِ مِنَ الْبَرْدِ که چيري له يخ څخه د پښې پر ضايع کېدلو نه بېرېږي (يعني کله چي دمسح موده پوره سي. نو هم مسح ماتيږي. نو پښې به پرېولي. لېکن که په پرېوللو سره دسخت يخ په وجه د پښو دضايع کېدلو اشل کېدا ېېره وي. نو بيا يې مسح نه ماتيږي او دجبيره اپتې اپه حکم سره ګرځي چي تر څو مجبوري وي. مسح دي کوي) وَبَعْدَ الثَّلَاثَةِ الْأَخِيرَةِ غَسَلَ رِجْلَيْهِ فَقَطْ او تر آخري دريو وروسته دي صرف دواړي پښې پرېولي (يعني تر آخري دريو صورتونو وروسته صرف د پښو پرېولل کافي دي).

**لغات**: ﴿نزع﴾ دضرب دباب مصدر دی: کښل، کاږل، راکشول. ﴿خروج﴾ دنصر دباب مصدر دی: خپله وتل، بهر راتلل. علامه طحطاوي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي اولاً نزع بيا خروج ذکر کول ددې خبري ته اشاره ده چي موزه برابره ده کښل سوې (باسل سوې) وي او که خپله وتلې وي. دمسئلې حکم په دواړو صورتونو کي برابر دی.

**تشريح**: په لاندينيو صورتونو کي مسح على الخفين ماتيږي:

① ... کوم شيان چي اودس ماتوي (نواقض وضوء)، هغوی دموزې مسح هم ماتوي. لهذا دنوي اودس کولو تر څنګ به موزې هم بيا مسح کول کيږي. او په لاندينيو صورتونو کي دموزو کښل او پښې پرېولل ضروري دي، صرف مسح کول کافي نه دي.

② ... توله موزه کښل، يا د پښې اکثره حصه ښکاره کېدل هم مسح ماتوي. لهذا که څوک يوه موزه وکاږي او يا پښه يې خپله راووځي او دموزې تر پنډۍ پوري راسي. نو په دې صورت کي مسح ماتيږي. لهذا دويمه موزه به هم کښل کيږي او دواړه پښې به پرېولل کيږي.

③ ... موزې ته اوبه داخلېدل او د پښې اکثره حصې ته اوبه رسېدل. يعني که يوې موزې ته اوبه ننوځي او توله پښه يا اکثره (يعني له نيمايي څخه زياته) پښه لنده سي، نو مسح ماتيږي. لهذا موزې کښل او دواړه پښې پرېولل واجب دي. مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا قول صحيح دی. بل قول دادی چي موزې ته داوبو ننوتلو په صورت کي مسح نه ماتيږي. (حاشيه)

④ ... دمسح موده تېرېدل (پوره کېدل)، مثلاً که دمقيم کس دمسح يوه ورځ او يوه شپه تېره سي، نو مسح يې ماتيږي. په دې شرط چي دسخت يخ په وجه پښو ته دنقصان رسېدلو بېره نه وي. لهذا کله چي دمسح موده پوره سي نو موزې دي وکاږي او پښې دي پرېولي لمونځ دي وکړي. باقي اودس

راګرځول واجب نه دي، په دې شرط که يو ناقضِ وضوشی پېښ سوی نه وي، لېکن که د موزې په کښلو کي دا بېره وي چي پښې به يې د سخت يخ په وجه تاواني او ضايع سي، نو بيا موزې د پټی (جبیره) په حکم کي دي، لهذا پر هغوی مسح جائز ده، يعني څرنګه چي د زخم پر پټی مسح کول کېږي تر څو چي زخم وي، همداسي دي دواړه موزې مسح کوي تر څو چي مجبوري وي، او صاحب د شفاء الارواح د حاشيې په حواله سره لیکلي دي چي څرنګه پر پوره پټی باندي مسح کول کېږي، همداسي دي پر پوره دواړو موزو لاندي باندي (د پلـه او لاندي او پوندي) ټوله مسح کوي. (حاشيه مخلصاً بحوالهٔ شفاء الارواح، ثمرة النجاح)

⑤ د پښې د دريو کوچنيو ګوتو په اندازه موزه څيري کېدل. (در مختار ج:۱، ص:۲۰۱ - ۲۰۲)

وبعد الثلاثة الأخيرة إلخ: يعني دلته چي کوم آخري درې صورتونه بيان سول (يعني موزه کښل، پښې ته اوبه رسېدل، موده پوره کېدل)، څرنګه چي په دې دريو سره صورتونو کي صرف مسح ماتېږي، لهذا که د هغه اودس وي، نو له نوي سره اودس تازه کول ضروري نه دي، بلکي فقط پښې پرېولل کافي دي. (شفاء الارواح)

## پر لنګوټه وغيره باندي د مسح حکم

| |
|---|
| ﴿۱۷۳﴾ وَلَا يَجُوْزُ الْمَسْحُ او مسح جائز نه ده عَلٰى عِمَامَةٍ وَقَلَنْسُوَةٍ پر لنګوټه او خولۍ (رخچينه) باندي وَبُرْقَعٍ وَقُفَّازَيْنِ او پر چادري (بوغره) او دسکلو (دسکښو) باندي. |

**لغات**: ﴿الْعِمَامَةُ﴾ لنګوټه، جمع: عَمَائِم، ﴿الْقَلَنْسُوَةُ﴾ خولۍ، ټوپی، جمع: قَلَنْسُوَات. ﴿الْبُرْقَع﴾ چادري، بوغره، بورقه، جمع: بَرَاقِع، ﴿الْقُفَّازَيْن﴾ تثنيه د "قُفَّازٌ" ده: دسکله، دسکښه، جمع: قَفَافِيْز.

**تشريح**: پر لنګوټه مسح کول جائز نه دي، همدارنګه پر خولۍ او د ښځي لپاره پر چادري (بوغره) مسح جائز نه ده، همدارنګه پر دسکلو (دسکښو) مسح جائز نه ده، برابره دسکلې د يخ د مخنيوي لپاره اغوستل سوي وي او که د يو حيوان او ښکار د نيولو لپاره، لکه ځيني خلک چي د ښکاري مرغانو د نيولو لپاره سختي دسکلې په لاس کوي چي د مرغانو د منګولو له ضرب څخه خوندي سي. (انوار الايضاح)



# فَصْلٌ (فِي الْجَبِيْرَةِ وَنَحْوِهَا)

(دا) فصل (پر پټۍ د مسح او داسې نورو په بیان کې) دی

## پر زخم د مسح کولو مسئلې

﴿۱۷۳﴾ إِذَا افْتَصَدَ کله چې رګ ووهي (یا په بله وینا له رګ څخه وینه وکاږي) أَوْ جُرِحَ أَوْ كُسِرَ عُضْوُهُ یا زخمي سي یا یې یو اندام مات سي فَشَدَّهُ بِخِرْقَةٍ أَوْ جَبِيْرَةٍ بیا هغه په یو رزبنکي یا پټۍ (پلستر، یا لرګي) سره وتړي وَكَانَ لَا يَسْتَطِيْعُ غَسْلَ الْعُضْوِ وَلَا يَسْتَطِيْعُ مَسْحَهُ او هغه د اندام د پرېوللو طاقت نه لري او نه پر هغه د مسح کولو طاقت لري وَجَبَ الْمَسْحُ عَلَى أَكْثَرِ مَا شَدَّ بِهِ الْعُضْوَ نو واجب دي مسح کول د هغه څه (پټۍ وغیره) پر اکثره حصه په کوم سره چې یې اندام تړلی دی وَكَفَى الْمَسْحُ عَلَى مَا ظَهَرَ مِنَ الْجَسَدِ بَيْنَ عِصَابَةِ الْمُفْتَصِدِ او کافي ده مسح کول د بدن پر هغه حصه باندې کوم چې د رګ وهونکي د پټۍ تر مینځ (ښکاره) پاته وي. (مثلاً چار طرفه پټۍ تړل سوې وي او په مینځ کې ځای ښکاره (خلي) پاته وي چې له هغه څخه بدن ښکاره کېږي، نو د هغه د مینځ ښکاره بدن (پوست) پرېولل نه غواړي، بلکې پر هغه مسح کول کافي دي؛ ځکه مجبوري ده).

**لغات:** ﴿افتصد﴾ د افتعال د باب ماضي ده: رګ وهل، یعني د علاج او درملنې په قصد د يو تېره آلې (نشتر) په ذریعه له رګ څخه خرابه وینه ایستل، د نشتر (نِشتر) په ذریعه د بدن وینه لړول. نشتر یو تېره څوکه لرونکې آله ده. مُفْتَصِد له همدې بابه فاعل دی. ﴿جبيرة﴾ هغه څه کوم چې پر مات هډوکي (مات اندام) تړل کېږي، هغه که پټۍ او پلستر وي او که لرګی وي، یا په بله وینا هغه پټۍ او یا هغه لرګی (د بانس تختو) کوم چې پر مات هډوکي لګول کېږي او تړل کېږي. جمع: جَبَائِر (معجم الوسیط، معجم لغة الفقهاء). ﴿عِصَابَة﴾ د دې لفظ څو معناوې دي چې له هغوی څخه یوه معنیٰ ده: پټۍ، هغه رزبنکی وغیره چې پر اندام وغیره باندې تړل کېږي.

**تشریح:** په دې عبارت کې څو مسئلې بیان سوې دي: ① که څوک رګ ووهي یعني د نشتر په وسیله له بدن څخه خرابه وینه وباسي، بیا پر هغه ځای پټۍ وتړي، نو که د اوبو مسح کولو پر مهال د پټۍ

په خلاصولو کې تکليف وي او اوبه دزخم لپاره تاواني وي، نو پر پټۍ مسح کول صحيح دي، ② که دزخم پر خوله پټۍ او پلستر لګول سوي وي، نو که داودس کولو پر مهال د پټۍ او پلستر په ليري کولو کې تکليف وي او اوبه دزخم لپاره تاواني وي، نو پر پټۍ او پلستر مسح کول جائز دي، برابره ده پټۍ او پلستر په اوداسه لګول سوي وي او که بغير له اوداسه لګول سوي وي، ③ پر مات سوي هلوکي چې کوم پلستر اچول کيږي، هغه د پټۍ په حکم کې دی، پر هغه د پاسه مسح کول جائز دي. (عالمګيري ج:١، ص:٣٥)

وجب المسح على أكثر الخ: د دې عبارت مطلب دا دی چې د پټۍ او پلستر پر اکثره حصه مسح کول واجب دي او د بدن هغه حصه کوم چې له پټۍ څخه ښکاره وي، پر هغه هم مسح کول کافي دي؛ د پرېولو ضرورت يې نسته؛ ځکه که په پرېولو يې مکلف کړی سي، نو کېدلای سي چې هغه اوبه زخم ته ورسيږي او تاوان وکړي، نو ځکه هغه حصه پرېولل ضروري نه دي.



## تر پټۍ لاندې د اضافي حصې حکم

**مسئله**: که زخم داسې ځای وي چې په پټۍ کې له اصل زخم څخه بغير د بدن څه نوره حصه هم ور سره پټه وي، نو پر هغه ټوله حصې ضرورتاً مسح جائز ده. (شامي ج:١، ص:٢٠٨، ط: بيروت، کتاب المسائل ص:١٩٣)

## د مسح على الجبيرة او مسح على الخفين تر منځ فرق

﴿١٦٣﴾ وَالْمَسْحُ كَالْغَسْلِ او (د پټۍ) مسح د پرېولو په څېر ده فَلَا يَتَوَقَّتُ بِمُدَّةٍ نو هغه په يو (ټاکلې) موده سره نه متعين کيږي (يعني د دې مسح لپاره څه موده ټاکل سوې نه ده لکه د موزې د مسح لپاره چې ټاکل سوې ده) وَلَا يُشْتَرَطُ شَدُّ الْجَبِيرَةِ عَلَى طُهْرٍ او پټۍ پر پاکۍ (پر اوداسه) تړل شرط نه دي وَيَجُوزُ مَسْحُ جَبِيرَةِ إِحْدَى الرِّجْلَيْنِ مَعَ غَسْلِ الْأُخْرَى او جائز ده مسح د يوې پښې پر جبيرې د بلې پښې د پرېولو سره (يعني د يوې پښې پر پټۍ مسح کول او بله پښه پرېولل هم جائز دي) وَلَا يَبْطُلُ الْمَسْحُ بِسُقُوطِهَا قَبْلَ الْبُرْءِ او نه باطليږي مسح د پټۍ په لوېدلو سره تر جوړېدلو مخکې (يعني د زخم او مات ځای تر جوړېدلو مخکې د پټۍ په لوېدلو سره مسح نه ماتيږي) وَيَجُوزُ تَبْدِيلُهَا بِغَيْرِهَا او جائز دي دا (تړل سوې) پټۍ په بلې (نوې) پټۍ سره بدلول (يعني د پټۍ

بڼلول هم جائز دي) وَلَايَجِبُ إِعَادَةُ الْمَسْحِ عَلَيْهَا او واجب نه دي پر هغه (نوې پټۍ) باندي مسح راګرځول وَالْأَفْضَلُ إِعَادَتُهُ (خو) راګرځول يې افضل دي.

**لغات**: ﴿يتوقّت﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: مؤقّت کېدل، په وخت سره متعيّن کېدل.

**تشريح**: صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله فرمايي چي مسح علی الجبيره د پرېوللو په څېر ده. بدل او خليفه نه ده، په خلاف د مسح علی الخفين چي هغه د پرېوللو (غسل) بدل او قائم مقام ده. په همدې وجه يوه پښه مسح کول او بله پرېولل صحيح نه دي (ځکه چي اصل او بدل به سره جمع سي. کوم چي صحيح نه دي)، تر دې وروسته مصنف رَحِمَهُ الله د مسح علی الجبيره او مسح علی الخفين تر مينځ فرق بيان کړی دی، نو د دواړو تر مينځ په څلورو اعتبارو سره فرق دی: ① د مسح علی الجبيره لپاره هيڅ موده متعينه نه ده؛ ځکه هغه د پرېوللو په حکم کي ده او پرېولل په هيڅ موده سره متعيّن نه دي، په خلاف د مسح علی الخفين. ② د زخم پټۍ په پاکي باندي تړل ضروري نه دي. يعني که بغير له اوداسه يې وتړي، نو بيا هم مسح پرې کولای سي، ③ که له دواړو پښو څخه يوه زخمي وي او بله روغه وي، نو پر يوې مسح کول او بله پرېولل جائز دي، ④ که د زخم له روغېدلو څخه بغير پټۍ خلاصه سي، نو دوباره دي يې وتړي او د مسح راګرځول ضروري نه دي: ځکه اوس هم عذر باقي دی. ها! که د زخم له روغېدلو څخه وروسته پټۍ خلاصه سي يا ايله سي، نو اوس زخم يعني تر پټۍ لاندي حصه پرېولل ضروري دي، په خلاف د مسح علی الخفين چي په هغه کي ديوې موزې په کښل کېدلو سره مسح باطلېږي (عالمګيري ج:۱، ص:۳۵)، او که چا پر خپل زخم دوچنده (ډبله) پټۍ تړلې وي او بيا له هغه څخه پورتنۍ پټۍ خلاصه کړي، يا د دواء لګولو لپاره بله پټۍ بدله کړي، نو د مسح راګرځول ضروري نه دي خو مستحب دي چي د پاسنۍ پټۍ تر ليري کولو وروسته والا پټۍ باندي مسح وکړی سي، همدارنګه پر نوې بدلې سوې پټۍ هم نوې مسح کول مستحب دي. (انوار الايضاح)

## که د زخم والا لپاره اوبه تاواني وي نو څه به کوي؟

﴿۱۷۵﴾ وَإِذَا رَمِدَ او کله چي سترګه خرابه سي (يا په بله ورنا، سترګه يې خوږه سي، درد او څښتي شروع کړي) وَ أُمِرَ أَنْ لَّا يَغْسِلَ عَيْنَهُ او ده ته (دډېر خبري) حکم وسي چي سترګه دي نه پرېولي (ځکه چي له اوبو څخه بد وړي) أَوِ انْكَسَرَ ظُفُرُهُ يا د يو چانوک مات سي وَجَعَلَ عَلَيْهِ دَوَاءً أَوْ

عَلَكًا أَوْ جِلْدَةَ مِرَارَةٍ او دئ پر هغه باندي دواء او ګوند یاد تریخي پوستکی کېږدي وَ ضَرَّهٗ نَزْعُهٗ او دهغه لیري کول ده ته ضرر (نقصان) کوي جَازَ لَهُ الْمَسْحُ نو دده لپاره مسح جائز ده وَ إِنْ ضَرَّهُ الْمَسْحُ او که مسح (هم) ضرر ورته کوي تَرَكَهٗ نو مسح دي (هم) پرېږدي.

**لغات:** ﴿رَمَدٌ﴾ دسترګو درد او چخنې (چغړي) کول، سترګي خوږېدل او خرابېدل. ﴿علک﴾ هر هغه ګوند (کندوري) چي ژوول کېږي او په ژوولو سره نه ویلي کېږي (نه ختمېږي)، جمع: عُلُوْك و أَعْلَاك. ﴿مرارة﴾ تریخی، دانسان په نس کي د صفرا کڅوړه کوم چي داینې سره لاندي لګېدلی وي او دخوړو په هضم کي مرسته کوي، جمع: مَرَائِر.

**تشریح:** که دچا سترګه خرابه سي او یو ماهر حکیم ورته ووایي چي له اوبو څخه یې ساته!، یا یې نوک مات سي نو هغه پر نوک دواء یا ګوند یا داسي بل شی ولګوي او دهغه زخم لپاره اوبه تاواني وي، نو په لانده لاس سره دي پر هغه مسح کوي او که مسح کول هم تاوان ورته کوي، نو بیا معاف دی، د مسح هم ضرورت نسته. (عالمګیري ج:١، ص:٣٥١)

﴿١٤٦﴾ وَلَا يَفْتَقِرُ إِلَى النِّيَّةِ فِي مَسْحِ الْخُفِّ وَالْجَبِيْرَةِ وَالرَّأْسِ او نیت ته حاجت (ضرورت) نسته دموزې، پټۍ او سر په مسح کي.

**تشریح:** فرمایي چي دموزې، پټۍ او دسر په مسح کولو کي نیت ته ضرورت نسته؛ لهذا که څوک اودس وکړي او پر موزې یا پټۍ یا سر باندي مسح وکړي، خو دطهارت نیت نه وکړي، نو هم مسح صحیح سوه؛ ځکه چي نیت ورلره شرط نه دی. (انوار الایضاح. شفاء الارواح)



# بَابُ الْحَيْضِ وَالنِّفَاسِ وَالْاِسْتِحَاضَةِ

## (دا) فصل د حیض، نفاس او استحاضې (په بیان کې) دی

**تشریح:** مخکې مصنف رَحِمَهُ الله د پاکۍ (طهارت) هغه احکام بیان کړل چې په هغوی کې سړی او ښځه دواړه شامل دي، اوس هغه احکام بیانوي کوم چې صرف د ښځو سره متعلق دي.

**حیض په لغت او اصطلاح کې:** حیض په لغت کې "بهېدلو" ته وايي، او اصطلاحي معنیٰ یې ده: «دَمٌ يَخْرُجُ مِنْ رَحِمِ بَالِغَةٍ سَلِيْمَةٍ» (هغه وینه چې د روغې بالغې ښځې له رحم څخه وځي) کوم چې کم از کم له نهو کالو څخه وروسته تر پنځه پنځوس کالو پورې راځي، او تر پنځه پنځوس کالو وروسته عموماً ښځې ته حیض نه راځي، لهذا تر دې عمر وروسته که ښځې ته وینه راسي، نو بیا به د وینې رنګ ته کتل کیږي، که هغه خالص د وینې رنګ وي یعنې ښه سور یا تور غوندې وي، نو حیض دی او که که بل رنګ وي، نو حیض نه دی، ها! که د دغه ښځې عادت له مخکې څخه د هغه بل رنګ وینې وي، نو د هغه رنګ وینه به هم حیض شمېرل کیږي.

**نفاس په لغت او اصطلاح کې:** نفاس په لغت کې "ساه کښلو" ته وايي، او اصطلاحي معنیٰ یې ده: «دَمٌ يَخْرُجُ مِنَ الرَّحِمِ عَقِيْبَ الْوِلَادَةِ» (هغه وینه چې له رحم څخه د کوچني تر زېږېدلو وروسته وځي).

**د استحاضې تعریف:** "سِيْلَانُ الدَّمِ مِنَ الرَّحِمِ فِي غَيْرِ أَوْقَاتِهِ الْمُعْتَادَةِ" (یعنې د عادت له وختونو (ایام الحیض والنفاس) څخه بغیر په نورو وختونو کې له رحم څخه بهېدونکې وینه)، او مستحاضه هغه ښځې ته وايي چې د خپل عادت تر ورځو وروسته یې هم وینه جاري وي د مرض په وجه، هره ښځه په دې مرض نه مبتلا کیږي بلکې ښځینه مرض والا ښځې د دې تکلیف سره مخامخ کیږي.

﴿۱۷۷﴾ يَخْرُجُ مِنَ الْفَرْجِ حَيْضٌ وَنِفَاسٌ وَاسْتِحَاضَةٌ راوځي د ښځې له فرج څخه (درې قسمه وینه) حیض او نفاس او استحاضه فَالْحَيْضُ دَمٌ يَنْفُضُهُ رَحِمُ بَالِغَةٍ نو حیض هغه وینه ده کوم چې یې رابلسي (راپلشي) دیو داسې بالغې ښځې رحم لَا دَاءَ بِهَا وَلَا حَبَلَ چې په هغې

باندې نه څه ناروغي وي او نه حمل (یعني نه ناروغه وي او نه حامله وي) وَلَمْ تَبْلُغْ سِنَّ الْأَيَاسِ او نه هغه دناامیدۍ عمر ته رسېدلې وي.

**تشریح**: حیض هغه وینه ده کوم چې د روغې ښځې له رحم څخه راوځي. او که د دواء په ذریعه دا وینه بنده کړل سي، نو تر څو چې وینه جاري سوې نه وي، ښځه پاکه شمېرل کېږي، لېکن که داسې کول د صحت لپاره تاواني وي لکه څرنګه چې دا تجربه سوي دي، نو دا عمل دي نه کول کېږي. (کتاب الفقه علی المذاهب الاربعة ج:١، ص:١٢)

**فوائد قیود**: په عبارت کي دَمٌ د جنس په درجه کي دی چي په هغه کي هر ډول وینه داخله ده، یعني سره وینه، ژړه وینه، خړه وینه او داسي نور، ینفضه: په دې سره هغه وینه ووتله کوم چي په رحم کي موجوده وي او راوتلې نه وي، رحم بالغة: په دې سره د زخم، رګ او د پزې وغیره وینه ووتله، لا داء بها: په دې سره د نفاس وینه ووتله؛ ځکه د نفاس والا ښځه د مریضه په حکم کي ده، سن ایاس: د ناامیدۍ عمر د مفتیٰ به قول مطابق پنځه پنځوس (۵۵) کاله دی. (مراقی الفلاح ص:۷۵)

## د حیض اقل او اکثر وخت

﴿۱۷۸﴾ وَأَقَلُّ الْحَيْضِ ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ او د حیض کمه (کمتره) موده درې ورځې ده وَأَوْسَطُهُ خَمْسَةٌ او مینځوی (میانه) موده یې پنځه ورځې ده وَأَكْثَرُهُ عَشَرَةٌ او زیاته موده یې لس ورځې ده.

**تشریح**: د حیض کم از کم (لږ تر لږه) موده درې ورځې او درې شپې ده، له دې څخه په کمه موده کي چي کومه وینه راوځي، هغه حیض نه ده، او د حیض اکثره موده لس ورځي او لس شپې ده، له دې څخه زیاته چي کومه وینه جاري وي، هغه حیض نه ده.

﴿۱۷۹﴾ وَالنِّفَاسُ هُوَ الدَّمُ الْخَارِجُ عَقْبَ الْوِلَادَةِ او نفاس هغه وینه ده کوم چي د بچي تر پیدایښت (زېږېدني) وروسته راوځي وَأَكْثَرُهُ أَرْبَعُونَ يَوْمًا او د نفاس زیاته موده څلوېښت ورځې ده وَلَا حَدَّ لِأَقَلِّهِ او کمې مودې لره یې هیڅ حد نسته.

**تشریح**: د کوچني تر پیدایښت وروسته چي کومه وینه راوځي، هغه ته نفاس وایي، د نفاس کمه موده متعینه نه ده، څه ګړۍ وروسته هم دا وینه بندېدای سي، تر بندېدلو وروسته یې غسل واجبېږي او

❀ ❀ ❀

## د حمل تر اسقاط (نخسان) وروسته د راتلونکي وينې حکم

**مسئله (١)**: که د يوې ښځې حمل ساقط (نخسان) سي، نو د څلورو مياشتو يا له دې څخه زيات حمل په ساقطولو (نخسانولو) سره چې کومه وينه راوځي، هغه به نفاس شمېرل کيږي. (تنوير الابصار على الدر المختار ج:١، ص:٢٣٢)

## د آپرېشن په ذريعه د بچي پيدا کېدلو په صورت کي د نفاس حکم

**مسئله (٢)**: که د يوې ښځي بچی د آپرېشن په ذريعه له نس څخه وايستل سي. نو که وينه له بچه داني څخه وبهيږي، هغه ښځه نفاس والا شمېرل کيږي او که له بچه داني څخه د متيازو د لارې څخه وينه نه وبهيږي، نو دې ته نفاس نه ويل کيږي، بلکې دا به پر ظاهري زخم حمل کول کيږي. خو غسل په هر حال کي ضروري دی. (عالمگيري ج:١، ص:٣٧، ١۶، در مختار ج:١، ص:٣٣٠، ط: بيروت)

**مسئله (٣)**: که د بچي اکثره حصه راووځي، نو تر هغه وروسته بهېدونکې وينه به نفاس شمېرل کيږي. او که د بچي صرف يو، دوه اندامه راووځي او اکثره اندامونه تر اوسه يې دننه پاته وي. نو په دې وخت کي بهېدونکې وينه استحاضه ده او په دې حالت کي هم پر هغې لمونځ کول فرض دي. (در مختار ج:١، ص:٣٣٠، کتاب المسائل ص:٢١۶)

---

﴿١٨٠﴾ وَالْاِسْتِحَاضَةُ دَمٌ نَقَصَ عَنْ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ أَوْزَادَعَلَىٰ عَشَرَةٍ فِي الْحَيْضِ او استحاضه هغه وينه ده کوم چې په (موده د) حيض کي تر دريو ورځو کمه سي يا تر لسو ورځو زياته سي وَعَلَىٰ أَرْبَعِيْنَ فِي النِّفَاسِ او په نفاس کي تر څلوېښتو ورځو (زياته سي).

---

**تشريح**: يعني کومه وينه چې د حيض له کم مودت (دريو ورځو) څخه کمه راسي، هغه استحاضه ده. همدارنګه کومه وينه چې د حيض له اکثره مودت (لسو ورځو) څخه زياته راسي، هغه هم استحاضه ده. لهذا که يوه ښځه داسي وي چې دا يې لول حيض وي او په همدې حيض سره بالغه سوې وي او دا وينه يې تر لسو ورځو زياته سي. نو اوس به لس ورځې د حيض شمېرل کيږي لو تر لسو ورځو وروسته ورځې به استحاضه شمېرل کيږي. او که دا يې اول حيض نه وي، بلکې مخکې هم څو واره حيض ورته راغلې وي، خو په دې وار تر لسو ورځو زيات سي. نو که د هغې عادت مخکې معلوم وي مثلا پنځه ورځې يا اووه ورځې، نو د عادت ورځې به په حيض کي شمېرل کيږي او پاته ورځې به د استحاضې وينه شمېرل کيږي. همدارنګه د نفاس له اکثر مودت (څلوېښتو ورځو) څخه زائده وينه استحاضه ده. (شفاء الارواح)



## له نهو کالو څخه په کم عمر کې د راتلونکي وینې حکم

**مسئله**: نجلۍ کم از کم د نهو کالو په عمر کې بالغه کیږي، لهذا که له نهو کالو څخه په کم عمر کې وینه راسي، نو هغه ته به حیض نه ویل کیږي، بلکې هغه به استحاضه شمېرل کیږي. (انوار الایضاح)

## د پاکۍ (طهر) موده

﴿۱۸۱﴾ وَأَقَلُّ الطُّهْرِ الْفَاصِلِ بَيْنَ الْحَيْضَتَيْنِ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا او د طهر (پاکۍ) کمه موده کوم چې د دوو حیضونو ترمینځ فاصل (جلا کونکې) ده پنځلس ورځې ده وَلَا حَدَّ لِأَكْثَرِهِ او د طهر زیاتې مودې لره هیڅ حد نشته إِلَّا لِمَنْ بَلَغَتْ مُسْتَحَاضَةً مګر د هغې ښځې لپاره کوم چې د مستحاضه کېدلو په حالت کې بالغه سوې وي (یا په بله وینا: په داسې حالت کې بالغه سوې وي چې د هغې وینه جاري وي او نه بندیږي، نو د داسې ښځې لپاره د طهر موده شل اېانولس اورځې ده. یعنې د هغې په حق کې د هرې میاشتې لس ورځې د حیض شمېرل کیږي او پاته شل ورځې د طهر کیږي. نو ګواکې د هغې لپاره د طهر حد مقرر سو).

**تشریح**: د دوو حیضو ترمینځ د پاکۍ موده پنځلس (۱۵) ورځې ده، له دې څخه په کمه موده کې چې کومه وینه راځي، هغه به حیض نه شمېرل کیږي، او د طهر اکثره موده معلومه او ټاکل سوې نه ده، بلکې ترڅو چې وینه نه راځي، ښځه طاهره (پاکه) ده، لمونځ او روژه دې اداء کوي، که څه هم ټوله عمر رانه سي.

إِلَّا لمن بلغت إلخ: لېکن که یو نجلۍ په داسې حالت کې بالغه سي چې وینه یې جاري وي او نه بندیږي، یا په بله وینا چې که یو نجلۍ اول وار وینه ووینې او هغه تر لسو ورځو زیاته جاري پاته سي، نو په داسې صورت کې به د شروع لس ورځې د حیض شمېرل کیږي او نورې شل (۲۰) ورځې به د پاکۍ (طهر) شمېرل کیږي چې پر هغه به د پاکۍ احکام جاري کول کیږي.

﴿۱۸۲﴾ وَيَحْرُمُ بِالْحَيْضِ وَالنِّفَاسِ ثَمَانِيَةُ أَشْيَاءَ او په حیض او نفاس سره اته (۸) شیان حرامیږي اَلصَّلٰوةُ وَالصَّوْمُ (۱) لمونځ (۲) او روژه.

**تشریح**: د حیض او نفاس په زمانه کې لمونځ کول او روژه نیول صحیح نه دي، دومره فرق دی چې لمونځ خو بالکل ورته معاف کیږي چې تر پاکېدلو وروسته هم د هغه قضاء نه واجبیږي، لېکن روژه نه معاف کیږي، تر پاکېدلو وروسته به د روژو قضا راوړل کیږي.



## د حيض په حالت کي يو مستحب عمل

**مسئله (۱)**: د ښځو لپاره د حيض په زمانه کي يو مستحب عمل دا دی چي د لمانځه په وختونو کي دي اودس کوي او پر يو ځای دي څه ګړۍ کښېني، تسبيح او دلسي نور دي وايي، د دې لپاره چي د عبادت اهتمام او عادت باقي پاتـه سي او پـه زړه کي يې ور څخـه څـه بوج را نـه سي. (کتاب المسائل ص:۲۰۶، تاتارخانيه ج:۱، ص:۴۷۸، مسئله:۱۲۷۴)

## د لمانځه په دوران کي حيض راتلل

**مسئله (۲)**: که د فرضي لمانځه په دوران کې حيض راسي، نو هغه لمونځ بالکل معاف دی او که د نفلي لمانځه په دوران کي حيض ورته راسي، نو وروسته به د هغه قضاء را وړل کيږي. (در مختار مع الشامي ج:۱، ص:۴۲۱، ط: بيروت، کتاب المسائل ص:۲۰۵)

﴿۱۸۳﴾ وَقِرَاءَةُ آيَةٍ مِّنَ الْقُرْآنِ (۳) او د قرآن يو آيت ويل.

**تشريح**: د حيض او نفاس په حالت کي بالقصد د قرآن کريم تلاوت جائز نه دی، يعني يو آيت ويل هم جائز نه دي، تر يو آيت په کم کي اختلاف دی او مناسب همدا ده چي نه يې ووايي.



## د قرآن استاذه ښځه (معلمه) به د حيض په حالت کي څنګه سبق ورته وايي؟

**مسئله (۱)**: که چيري د قرآن کريم د معلمي ښځي لپاره د حيض په حالت کي کوچنيانو ته درس ويل ضروري وي، نو د درس ټوله الفاظ به پر يوه ځای (روان) نه ورته وايي، بلکي هر لفظ او هره کلمه به جلا ورته وايي مثلاً قُلْ ـ هُوَ ـ اللهُ ـ أَحَدٌ، يعني د هري کلمې تر منځ به فصل کوي، روان به يې نه ورته وايي. (تاتارخانيه ج:۱، ص:۴۸۰، مسئله: ۱۲۸۳، البحر الرائق ج:۱، ص:۲۰، کتاب المسائل ص:۲۰۹)

## د حيض په حالت کي د حديثو او د فقهي تدريس

**مسئله (۲)**: د ښځو په مدرسو کي چي کومي ښځي استاذاني (معلمات) حديث، تفسير او فقه تدريسوي، د هغوی لپاره د حيض په ورځو کي د درس اجازه سته، لېکن د دوو (۲) خبرو خيال دي ساتي: ① يوه دا چي د قرآن کريم د آيت تلاوت دي نه کوي، ② او دويمه دا چي د کتابونو هغه حصې ته به لاس نه ور وړي چي هلته يو قرآني آيت ليکلی وي. (طحطاوي ص:۷۷، ديني مسائل ص:۲۰)

## د تلاوت له نيت څخه بغير قرآني آيتونه ويل

**مسئله (۳)**: که چيري د تلاوت نيت نه وي، بلکي د دعاء او ذکر او د الله ﷻ د حمد په غرض سره د قرآن کريم آيتونه د حيض په حالت کي وويل سي، نو په دې باره کي تفصيل دا دی چي په دعاء او حمد باندي مشتمله آيتونه ويل مطلقاً جائز دي، برابره ده آيتونه اوږده وي او که مختصره وي، او که د

حمد او ثناء والا آيتونه نه وي مثل سورة اللهب (تَبَّتْ يَدَا)، نو د كوچنيو آيتونو د ويلو اجازه سته او د اوږدو آيتونو ويل منع دي. (شامي ج:۱، ص:۴۲۳، كتاب المسائل ص:۲۰۹)

## د حيض په حالت كې قرآني او نبوي دعاګانې ويل

**مسئله (۴)**: د حيض په حالت كې هر ډول دعاګانې ويل جائز دي، حتى هغه دعاګانې هم ويل كېدلاى سي چې د معنوي الفاظ په قرآن كريم او احاديثو كې وارد وي، همدارنګه په دې حالت كې دعاء قنوت ويل هم صحيح دي. (در مختار ج:۱، ص:۴۲۴، كتاب المسائل ص:۲۱۰)

## د حيض او نفاس په حالت كې قرآن كريم ته لاس ور وړل

| |
|---|
| ﴿۱۸۴﴾ وَمَسُّهَا إِلَّا بِغِلَافٍ (۴) او (همدارنګه حرام دي) د قرآن كريم مسه كول مګر د پوښ سره. |

**تشريح**: د حيض او نفاس په ورځو كې قرآن كريم ته له پوښ څخه بغير لاس ور وړل جائز نه دي او په كوم پوښ او بسته چې كې قرآن ايښوول سوى وي، هغه د پاسه نيول د ښځې لپاره صحيح دي، او پاته سو هغه پوښ كوم چې د قرآن كريم سره مښتي (ښلول سوى يا ګنډل سوى) وي، هغه د قرآن په حكم كې دي، او په لستوني سره قرآن مسه كول مكروه تحريمي دي، او په قلم يا داسي بل شي د قرآن پاني (ورقې) اړول جائز دي، خو بايد هيڅ قسم توهين پكښې را نه سي. (مراقى الفلاح مع الطحطاوي:۷۲)



**مسئله (۱)**: د حيض په ورځو كې ديني كتابونه مطالعه كول او درسول جائز دي، لېكن په هغوى كې چې چيري د قرآن كريم آيت ليكلى وي، هغه ځاى ته لاس ور وړل او په ژبه سره ويل جائز نه دي.

**مسئله (۲)**: د حيض په حالت كې قرآن كريم په كمپيوټر كې ليكل (كمپوزول) مكروه دي، د قرآن كريم د عظمت تقاضا دا ده چې تر كامل پاكوالي وروسته دا مبارک كار تر سره كړل سي. (انوار الايضاح)

## د حيض په حالت كې مسجد ته تلل

| |
|---|
| ﴿۱۸۵﴾ وَدُخُولُ مَسْجِدٍ (۵) او مسجد ته داخلېدل. |

**تشريح**: د حيض او نفاس په حالت كې مسجد ته داخلېدل جائز نه دي، كه څه هم په مسجد كې د تېرېدلو لپاره وي، په دې حكم كې ټول مسجدونه داخل دي، خو عيدګاه او جنازه ګاه (يعني په كوم ځاى كې چې د لمونځ يا د جنازې لمونځ كېږي، هغوى) په دې حكم كې داخل نه دي.

## د حیض او نفاس په حالت کې د طواف حکم

﴿۱۸۶﴾ وَالطَّوَافُ (۶) او (همدارنګه حرام دي) طواف کول.

**تشریح**: د حیض او نفاس په ورځو کې د کعبې شریفې طواف کول حرام دي، لېکن که کومه ښځه چې په دې حالت کې مجبوراً "طواف زیارت" وکړي، نو دا طواف یې معتبر دی، خو په جرمانه کې د یوه اوښ قربانې لازمیږي او دا ښځه سخته ګناهګاره کیږي، او که تر پاکېدلو وروسته طواف راوګرځوي، نو جرمانه ساقطیږي. (مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص:۸)

## د حیض او نفاس په حالت کې د جماع حکم

﴿۱۸۷﴾ وَالْجِمَاعُ (۷) او جماع (کورواله) کول.

**تشریح**: د حیض او نفاس په حالت کې د خاوند لپاره جماع حرامه ده، او کوم خاوند چې د حیض او نفاس په حالت کې د خپلې ښځې سره جماع وکړي او په دې حالت کې جماع حلاله ګڼي، نو هغه کافر کیږي، او که حرامه یې ګڼي، نو د ګناه کبیره مرتکب شمېرل کیږي او پر هغه توبه او استغفار لازم دي، او که ښځه مجبوره کړل سوې وي، نو پر هغې ګناه نسته. او د سړي لپاره مستحب دا ده چې که د حیض په شروع کې یې جماع کړې وي کله چې سره وینه روانه وي، نو یو دینار (یعني څلور نیمې ماشې او د ګرام په حساب سره ۴ ګرامه او ۳۷۴ ملي ګرامه) سره زر یا د هغه قیمت دې پر غریبانو صدقه کړي، او که د حیض په آخر کې یې وطي ور سره کړې وي، نو نیم دینار (یعني ۲ ګرامه او ۱۷۸ ملي ګرامه) سره زر یا د هغه قیمت دې صدقه کړي، او که څوک د دې په حُرمت خبر نه وي، یا بل چا مجبوره کړی وي، هیڅ قصد او هیڅ اختیار نه لري، یا حیض څني هېر وي، نو ګناه کبیره نه ده، یعني د هغه لپاره معافي شته. (شفاء الارواح)

## د حیض او نفاس په حالت کې له ښځې څخه لذت حاصلول

﴿۱۸۸﴾ وَالِاسْتِمْتَاعُ بِمَا تَحْتَ السُّرَّةِ إِلَى تَحْتَ الرُّكْبَةِ (۸) او نفع اخیستل (خوند اخیستل) (د ښځې) له هغه حصې څخه کوم چې تر نامه لاندې ده (بیا) تر ځنګنو پورې (یعني د حیض او نفاس په حالت کې له نامه څخه لاندې بیا تر ځنګنو پورې له ښځې څخه خوند اخیستل هم حرام دي).

**لغات**: ﴿استمتاع﴾ د استفعال د باب مصدر دی: (له ښځې څخه) نفع او خوند اخیستل، مثلاً په مچولو یا مسه کولو سره خوند اخیستل، ﴿سُرّة﴾ نُو، نلف، جمع: سُرَّاتٌ وسُرَرٌ.

**تشریح**: د حیض او نفاس په وخت کې له نامه څخه تر ځنګنو لاندې حصې پورې له ښځې څخه لذت او نفع اخیستل هم منع او حرام دي، کله چې کپړه وغیره په مینځ کې حائل نه وي، خو که دلسې

کپړه وغیره په مینځ کي حائل وي چي د ښځي د بدن حرارت (ګرمايي) نه ورته محسوسیږي، نو بیا په پرېوتلو او مسه کولو کي څه حرج نسته، او پاته سو نُو (سرة) او تر هغه لوره حصه او له ځنګنو څخه بغیر له حائله هم مسه کول او لذت حاصلول جائز دي. (طحطاوي، شامي، کتاب الحائل)

## د حیض په حالت کي له ښځي څخه ځای او بستره جلا کول

**مسئله:** د حیض او نفاس په وجه له ښځي څخه ځای او بستره جلا کول پکار نه دي. بلکي د عادت مطابق پرېوتل پکار دي، په دې حالت کي بستره جلا کول د یهودو فعل دی چي د هغوی له مشابهت څخه ځان ساتل ضروري دي. (شامي، کتاب الحائل)

## د وېني تر انقطاع وروسته د جماع حکم

﴿۱۸۹﴾ وَإِذَا انْقَطَعَ الدَّمُ لِأَكْثَرِ الْحَيْضِ وَالنِّفَاسِ او کله چي (د حیض او نفاس) وینه د حیض او نفاس پر اکثره موده بنده سي (مثلاً د حیض اکثره موده لس ورځي ده او وینه هم پر لسمه ورځ بنده سي)

حَلَّ الْوَطْءُ بِلَا غُسْلٍ نو بېله غسل کولو څخه وطي (جماع) کول حلال دي.

**لغات:** ﴿انقطع﴾ د انفعال د باب ماضي ده: منقطع کېدل، ختمېدل، درېدل.

**تشریح:** که د حیض وینه پر لسو ورځو بنده سوې وي، یا د نفاس وینه پر څلوېښتو ورځو بنده سوې وي، نو که څه هم تر هغه وروسته سملستي جماع کول روا دي، لیکن مستحب همدا ده چي تر غسل کولو وروسته جماع وکړي. (در مختار ج:۱، ص:۴۲۲، مراقی الفلاح ص:۷۸)



## د دواء په ذریعه حیض بندول

**مسئله:** که د یوې ښځي حیض د عادت موافق شروع سي، بیا هغه یو دواء وخوري او په مینځ کي حیض بند کړي، نو محض د وېني په بندېدلو سره هغه نه پاکیږي، بلکي د خپل عادت تر ورځو هغه ناپاکه شمېرل کیږي. (منهل الواردین ص:۸۱)

## تر لسو ورځو مخکي د حیض تر انقطاع وروسته د جماع حکم

﴿۱۹۰﴾ وَلَا يَحِلُّ إِنِ انْقَطَعَ لِدُونِهِ لِتَمَامِ عَادَتِهَا او حلال نه دي (وطي کول) که چیري له دې (اکثره مودې) څخه پر کمه موده وینه بنده سي د ښځي د عادت پوره کېدلو په وجه (یعني تر اکثره مودې مخکي د ښځي د خپل عادت مطابق وینه بنده سي، نو په دې صورت کي تر هغه وخته پوري جماع کول حلال نه دي تر څو چي له دریو شیانو څخه یو موجود نه سي) إِلَّا أَنْ تَغْتَسِلَ (۱) مګر دا چي غسل وکړي أَوْ تَتَيَمَّمَ وَتُصَلِّيَ (۲) یا تیمم وکړي او لمونځ وکړي أَوْ تَصِيرَ الصَّلٰوةُ دَيْنًا فِي ذِمَّتِهَا (۳) یا

لمونځ دهغې پر ذمه قرض وګرځي (يا په بله وينا، ديوه وخت لمونځ څني قضاء سي) وَ ذٰلِكَ بِأَنْ تَجِدَ بَعْدَ الْاِنْقِطَاعِ مِنَ الْوَقْتِ الَّذِيْ اِنْقَطَعَ الدَّمُ فِيْهِ زَمَنًا او دا (لمونځ دهغې پر ذمه قرض کېدل) په دې توګه دي چي ښځه ومونلي (پيدا کړي) دويني تر بنديدو وروسته له هغه وخت څخه چي وينه پکښې بنده سوې ده دومره زمانه (يعني دويني له دريدو څخه وروسته دومره زمانه اوخت ايبدا کړي) يَسَعُ الْغُسْلَ وَالتَّحْرِيْمَةَ فَمَا فَوْقَهُمَا چي (په هغه زمانه کي) ګنجايش وي دغسل کولو او تحريمه ويلو او (يا) تر دې دواړو دزيات (ګنجايش وي) وَلَمْ تَغْتَسِلْ وَلَمْ تَتَيَمَّمْ حَتّٰى خَرَجَ الْوَقْتُ او ښځه نه غسل وکړي او نه تيمم وکړي تر دې چي وخت ووځي (نو دهغه وخت لمونځ د دې ښځي پر ذمه قرض سو، او دې سره وطي کول حلال سوه).

**لغات:** لايحلّ: ددې ضمي د الوَطْءُ وطرف ته راجع دی. لدونه: ددې ضمير د أکثر وطرف ته راجع دی.

**تشريح:** که تر لسو ورځو مخکي دعادت مطابق وينه بنده سوې وي، مثلاً دښځي عادت أووه ورځي وي او پر أوومه ورځ وينه بنده سي، نو په داسي صورت کي تر هغه وخته پوري جماع نه حلالېږي ① تر څو چي ښځه غسل نه وکړي، ② يا داوبو دنشتوالي په صورت کي تيمم او لمونځ نه وکړي که څه هم نفلي لمونځ وي (دادلمنځه شرط صرف دتيمم سره دی، نه دغسل سره)، ③ يا دومره وخت تېر سي چي دښځي پر ذمه کم از کم يو لمونځ لازم سي يا په بله وينا ديوه وخت لمونځ څني قضاء سي (له دغه دريو شيانو څخه ديوه تر موجوديدلو وروسته جماع حلالېږي).

وذٰلك إلخ: دښځي پر ذمه ديوه لمونځ لازميدلو صورت دا دی چي مثلاً ديوې ښځي وينه دعادت مطابق تر لسو ورځو مخکي بنده سوه او مثلاً تر صبح صادق وروسته بنده سوه، نو لوس دهغې سره بيله غسله وطي کول حلال نه دي، خو هغې غسل نه وکړی او د تيمم د جائز والي په صورت کي يې نه تيمم وکړی، حال دا چي دومره وخت سته چي هغه غسل کولای سي او تر غسل او جامې اغوستلو وروسته تحريمه يعني يو وار الله اکبر ويلای سي، بلکي تر دې زيات وخت پاته دی، تر دې چي لمر راوختی او دلمانځه وخت ووتی او دهغې لمونځ قضاء سو (پر ذمه يې لازم سو). نو ددې ښځي سره بغير له غسله هم وطي جائز کېږي. په حاشيه کي يو بل صورت هم بيان سوی دی چي که وينه د عادت له ورځو څخه په کم وخت کي بنده سي، مثلاً عادت يې دلوو ورځو وي او وينه په پنځو ورځو کي بنده سي، نو په داسي صورت کي دښځي سره وطي کول جائز نه دي، که څه هم دا ښځه غسل

وکړي، تر څو چې د عادت ورځې پوره نه سي، لېکن احتیاطاً پر داسي ښځې لمونځ او روژه لازم دي.(شفاء الارواح)



**مسئله (۱)**: که تر لسو ورځو مخکې وینه بنده سي او په داسي وخت کې بنده سي چې ښځه په تېزي سره تر غسل کولو وروسته تکبیر ویلای سي، نو پر دغه ښځې له هغه وخت څخه لمونځ فرض سو چې د هغه قضا به راوړي، او که هغه وخت دومره تنګ وي چې غسل او تکبیر تحریمه سر ته نه سي رسولای، نو د هغه وخت لمونځ پر هغې فرض نه دی، لعرا روان وخت څخه به لمونځ شروع کوي. (شامي ج:۱، ص:۴۲۸، ط: بیروت)

**مسئله (۲)**: که لس ورځې پوره سي او بیا د لمانځه بالکل په آخري وخت کې وینه بنده سي چې ښځه صرف الله اکبر پکښې ویلای سي، نو هم پر هغې د هغه وخت لمونځ فرض سو چې تر دې وروسته به یې قضا راوړي. (پورتنی حواله)

**مسئله (۳)**: کله چې د حیض یا نفاس وینه له اکثره مودې څخه په کم وخت کې د یو لمانځه د شروع په وخت کې بنده سي، نو افضله دا ده چې په غسل کې تلوار نه وسي. بلکې د لمانځه تر آخري مستحب وخته پوري احتیاطاً غسل وځنډول سي چې د بل وار وینې ښکاره کېدلو احتمال پاته نه سي.(تاتارخانیه ج:۱، ص:۴۸۲، مسئله:۱۲۹۵، کتاب المسائل ص:۲۰۷)

## د حیض او نفاس په حالت کې د لمانځه او روژې حکم

| |
|---|
| ﴿۱۹۱﴾ وَتَقْضِي الْحَائِضُ وَالنُّفَسَاءُ الصَّوْمَ دُوْنَ الصَّلوٰةِ او حیض او نفاس والا ښځه به(صرف) د روژې قضاء راوړي، نه د لمانځه. |

**لغات:** ﴿دُوْن﴾ ظرف مکان منصوب دی: د دې لفظ څو معناوي دي، د مضاف الیه په بدلون سره یې معنیٰ هم بدلیږي، دلته په معنیٰ د غَیْر سره دی، یعني غیر الصلاة، لکه څرنګه چې په دې آیت کې په همدې معنیٰ سره دی ﴿وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ﴾.

**تشریح**: د حیض او نفاس په حالت کې لمونځ بالکل معاف دی یعني د هغه قضاء هم نسته، او روژه که څه هم فی الحاله جائز نه ده، لېکن وروسته د حیض د ورځو د روژو قضاء لازم ده.

علامه نووي رَحِمَهُ الله فرمایي: چې تمام اهل سنت والجماعت پر دې خبره متفق دي چې حائضه او نفاس والا ښځه به تر پاکېدلو وروسته د لمانځه قضاء نه راوړي، لېکن د روژو قضاء به راوړي، لېکن د خوارجو په نېز د روژو په څېر د لمنځونو قضاء هم پر ښځې لازم ده. اهل سنت والجماعت فرمایي چې که د لمنځونو قضاء لازمه سي، نو فرض به مکرر او دوچنده سي (څکه ښځه به

يو د خپل وخت لمونځ اداء کوي او بل به قضائي لمونځ اداء کوي)، چې په دې کې حرج او ستونزه ده او د روژو په قضا کې دا خرابي نه لازميږي. (معارف السنن ج:۱، ص:۴۲۱)

## د جنابت په حالت کې کوم شيان حرام دي؟

﴿۱۹۲﴾ وَيَحْرُمُ بِالْجَنَابَةِ خَمْسَةُ أَشْيَاءَ او د جنابت په وجه پنځه شيان حراميږي اَلصَّلٰوةُ (۱) لمونځ کول وَقِرَاءَةُ آيَةٍ مِنَ الْقُرْآنِ (۲) او د قرآن يو آيت ويل وَمَسُّهَا إِلَّا بِغِلَافٍ (۳) او قرآن مسه کول مګر د پوښ سره (يعني له پوښ او جامې څخه بغير قرآن ته لاس وروړل) وَدُخُولُ مَسْجِدٍ (۴) او مسجد ته داخليدل وَالطَّوَافُ (۵) او طواف کول وَيَحْرُمُ عَلَى الْمُحْدِثِ ثَلَاثَةُ أَشْيَاءَ او پر بې اودسه کس درې شيان حراميږي اَلصَّلٰوةُ وَالطَّوَافُ (۱) لمونځ (۲) او طواف کول وَمَسُّ الْمُصْحَفِ إِلَّا بِغِلَافٍ (۳) او قرآن کريم مسه کول مګر د پوښ سره.

**لغات:** ﴿مَصْحَف﴾ او مُصْحَف: په اصل کې هر مجلد کتاب ته وايي (يعني هر هغه کتاب چې وتاپې ورته لګيدلي وي). دلته څني مراد قرآن کريم دی او غالباً دا لفظ د قرآن کريم په معنیٰ سره مستعمل وي.

**تشريح:** د جنابت په حالت کې پنځه شيان حرام دي: ① لمونځ، بغير له غسل کولو څخه لمونځ کول حرام دي، ② د قرآن پاک يو آيت لوستل، برابره ده پوره آيت وي يا کم وي، د تلاوت په اراده سره لوستل حرام دي، د دې په هکله مخکې هم تفصيل تېر سو، ③ له پوښ څخه بغير قرآن کريم مسه کول، لهذا که پر دېوال، يا د کتاب پر يو پاڼه آيت ليکل سوی وي، نو د آيت ځای مسه کول حرام دي، خو له هغه څخه بغير د بل ځای په مسه کولو کې څه حرج نسته، په دې هکله مخکې تفصيل تېر سو، ④ مسجد ته داخليدل، ⑤ او طواف کول، په دې هکله هم مخکې تفصيل تېر سو.

ويحرم على المحدث إلخ: او د بې اودسې په حالت کې درې شيان حرام دي: ① لمونځ، ② طواف، ③ او له پوښ څخه بغير قرآن کريم مسه کول.

## د استحاضه د وينې حکم

﴿۱۹۳﴾ وَدَمُ الْاِسْتِحَاضَةِ كَرُعَافٍ دَائِمٍ او د استحاضې (د مرض) وينه د پزې د همېشنۍ (جاري) وينې په څېر ده (يعني داسې ده لکه د پزې وينه چې همېشه روانه وي) لَا يَمْنَعُ صَلٰوةً وَلَا صَوْمًا وَلَا وَطْئًا (نو د پزې د روانې وينې په څېر) نه منع کوي لمونځ او نه روژه او نه وطي.

**لغات:** ﴿رُعَاف﴾ د فتح او نصر له بابه مصدر دی: پزه وینې کېدل. له پزې څخه وینه روانېدل. هغه وینه چې له پزې څخه د ناروغۍ په وجه راوځي.

**تشریح:** د استحاضې وینه د رګ وینه ده. هغه له رحم څخه نه راوځي او علامت یې دا دی چې له رحم څخه چې کومه وینه راوځي، د هغه بوی ځي او د رګ په وینه کې بوی نه وي (حاشیه). دلته دا بیانوي چې د استحاضه حکم داسې دی لکه پزه چې همېشه وینه کوي. څرنګه چې د پزې وینې کېدل له لمانځه، روژې او جماع څخه مانع نه دي، همداسې د استحاضه وینه هم د دې دریو لپاره مانع نه دي، لهذا مستحاضه ښځه به لمونځ کوي. روژه به نیسي او د هغې سره جماع کول هم حلال دي.

## د معذوره کس حکم

| |
|---|
| ﴿۱۹۴﴾ وَتَتَوَضَّأُ الْمُسْتَحَاضَةُ وَمَنْ بِهِ عُذْرٌ او اودس به کوي مستحاضه ښځه او هغه کس چې هغه لره یو (جاري) عذر وي كَسَلَسِ بَوْلٍ وَاسْتِطْلَاقِ بَطْنٍ لکه مسلسل متیازې څڅېدل او نس چلېدل (له نس څخه ایله کېدل) لِوَقْتِ كُلِّ فَرْضٍ (دوی به اودس کوي) د هر فرض لمانځه د وخت لپاره وَيُصَلُّوْنَ بِهِ مَا شَاءُوْا مِنَ الْفَرَائِضِ وَالنَّوَافِلِ او په دې (یوه) اوداسه سره دوی کولای سي څومره چې دوی وغواړي له فرضي او نفلي لمنځونو څخه (یعني په دې اوداسه دوی هر څو فرائض او نوافل کولای سي. د هر لمانځه لپاره جلا اودس تازه کول لازم نه دي). |

**لغات:** ﴿سَلِس بول﴾ مشهور مرض دی چې په دې باندې مبتلا کس د خپلو متیازو (بولو) مخه نه سي نیولای او متیازې یې بې اختیاره څاځي، دا مرض یا د مثانې د کمزورۍ په وجه وي. یا د یخ پر بناء داسې کیږي. ﴿استطلاق﴾ د استفعال د باب مصدر دی: د نس ایله کېدل. بهېدل. اسهالونه راتلل. (د اسهالو ناروغي). دلته د محل (بطن) په ذکر کولو سره حال مراد کړی سوی دی یعني هغه شی کوم چې په نس کې دی د هغه بهېدل.

**تشریح:** مستحاضه ښځه او د کوم کس متیازې یا اسهالونه چې نه دریږي. د دغو معذورینو په باره کې حکم دا دی چې د هر لمانځه د وخت لپاره دې اودس کوي او په دې اوداسه سره چې په وخت کې دننه څومره لمنځونه وغواړي. هغه کولای سي. برابره ده فرض وي او که نفل وي.

**فایده:** معذور هغه کس دی کوم چې په داسې عذر مبتلا وي چې د هغه منع کول د ده په وس کې نه وي او د ده دا عذر د یوه لمانځه تر پوره وخت پوري باقي وي. یعني دومره وخت پیدا نه کړي چې د هغه وخت لمونځ په طهارت سره وکړی سي. نو مستحاضه ښځه او هغه کس چې هر وخت یې د متیازو څاڅکي روان وي. یا یې اسهال جار وي، دا ټول له معذورین دي.

## د معذورينو اودس كله باطليږي؟

﴿۱۹۵﴾ وَيَبْطُلُ وُضُوْءُ الْمَعْذُوْرِيْنَ بِخُرُوْجِ الْوَقْتِ فَقَطْ او باطليږي دمعذوره كسانو اودس صرف دوخت په وتلو سره.

**تشريح**: كله چي د فرضي لمانځه وخت ووځي، نو د دي معذورينو اودس باطليږي. اوس كه معذوره كس بل فرضي لمونځ كوي، نو د هغه لپاره نوى اودس كول ضروري دي. لهذا كه معذوره كس د لمانځه له وخت څخه مخكي د بل لمانځه په وخت كي اودس وكړي، نو په هغه اودس سره د راروان وخت لمونځ كول صحيح نه دي؛ ځكه چي د وخت په وتلو سره د معذوره كس اودس ماتيږي.

**فايده**: دلته په عبارت كي د "فقط" قيد لكول سوى دى. يعني د مذكوره معذورينو اودس فقط د وخت په وتلو سره ماتيږي، همدا د امام صاحب رحمه الله مذهب دى. په دې قيد سره د امام زفر رحمه الله او د امام ابو يوسف رحمه الله مذهب خارج سو. امام زفر رحمه الله فرمايي چي د معذورينو اودس د وخت په داخليدلو سره ماتيږي، نه د وخت په وتلو سره، او امام ابو يوسف رحمه الله فرمايي چي په خروج او دخول دواړو سره ماتيږي. (مراقي الفلاح ص: ۸۰)

## معذور شرعي څوك دى؟

﴿۱۹۶﴾ وَلَا يَصِيْرُ مَعْذُوْرًا حَتّٰى يَسْتَوْعِبَهُ الْعُذْرُ وَقْتًا كَامِلًا او (يو څوك تر هغه وخته پوري) معذوره نه ګرځي تر دې چي عذر هغه پوره وخت ونيسي (يعني د يوه لمانځه پوره ابتدا وخت په عذر مبتلا وي) لَيْسَ فِيْهِ انْقِطَاعٌ بِقَدْرِ الْوُضُوْءِ وَالصَّلٰوةِ چي په دې پوره وخت كي د اودس او لمونځ كولو په اندازه عذر منقطع (ختم ابند) نه سي وَهٰذَا شَرْطُ ثُبُوْتِهٖ او دا د عذر د ثابتېدلو (لپاره) شرط دي وَشَرْطُ دَوَامِهٖ وُجُوْدُهٗ فِيْ كُلِّ وَقْتٍ بَعْدَ ذٰلِكَ وَلَوْ مَرَّةً او د عذر د دوام (دائمي كېدلو) شرط تر دې وروسته د هر لمانځه په وخت كي د عذر موجودېدل دي. كه څه هم يو وار وي (يعني چي د پوره وخت تر نيولو وروسته بيا د هر لمانځه په وخت كي عذر واقع كيږي. كه څه هم يو وار وي) وَشَرْطُ انْقِطَاعِهٖ وَخُرُوْجِ صَاحِبِهٖ عَنْ كَوْنِهٖ مَعْذُوْرًا او د عذر ختمېدلو او له معذوره كېدلو څخه د

ده دوتلو شرط خُلُوُّوَقْتِ كَامِلٍ عَنْهُ له عذر څخه د پوره وخت خالي کېدل دي (یعنې معذوره کس هغه وخت له معذوریت څخه وځي او عذر یې ختمېږي کله چې دیوه لمانځه په ټوله وخت کي هغه عذر واقع نه سي).

**تشریح**: انسان هغه وخت معذوره شمېرل کېږي کله چې هغه عذر د فرضي لمانځه پوره وخت ونیسي (لکه څه مخکي چې هم ددې وضاحت وسو)، یا خو حقیقتاً پوره وخت ونیسي په دې توګه چې د هر لمانځه پوره وخت په همدې عذر کي تېرېږي، یا حکماً پوره وخت ونیسي په دې توګه چې هغه ته دومره فرصت او وقفه نه حاصلېږي چې اودس وکړي او فرض لمونځ وکړي. بلکي د اودس او لمانځه په دوران کي هغه عذر خامخا پېښېږي. (شفاء الارواح)

وشرط دوامه إلخ: په دې سره د عذر د دائمي کېدلو او باقي پاتېدلو شرط بیانوي. نو انسان تر هغه وخته پوري معذوره شمېرل کېږي کله چې دیو لمانځه وخت پر انسان داسي تېر نه سي چې په هغه کي دده عذر موجود نه وي، که څه هم یو وار وي، مثلاً که دیو چا د متیازو څاڅکي دیوه لمانځه پوره وخت جاري سي، نو هغه معذوره سو. تر دې وروسته چې کله چې دلمانځه وخت راځي، په هغه کي ټوله وخت د متیازو څاڅکي بهېدل شرط نه دي بلکي په ټوله وخت کي که یو وار هم څاڅکي راځي او نور ټوله وخت بند وي، نو هم شرعاً هغه معذوره پاتېږي.

او که په را روان وخت کي پر معذوره کس دیوه لمانځه پوره وخت داسي تېر سي چې په هغه کي یې عذر مثلاً د متیازو څاڅکي بالکل نه راسي، نو اوس هغه د معذور له حکم څخه وځي او دا به ویل کېږي چې عذر یې ختم سو. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)



## د اشراق یا څاښت په اوداسه سره د ماپښین لمونځ کول

**مسئله (۱)**: کوم څوک چي شرعاً معذوره وي، هغه هم د اشراق یا څاښت په اوداسه سره د ماپښین لمونځ کولای سي، په دې شرط چي په دې دوران کي څه اودس ماتونکی شی (ناقض وضوء) پېښ سوی نه وي؛ ځکه له اشراق څخه تر زواله پوري دا وخت دیو خاص لمانځه لپاره متعیّن نه دی. (در مختار ج۱، ص۴۳۹، کتاب المسائل ص۱۹۵)

## د لمانځه له وخت داخلېدلو څخه وروسته عذر پېښېدل

**مسئله (۲)**: که د لمانځه وخت داخل سي، تر دې وروسته په انسان کي داسي زخم پیدا سي چې وینه یې نه بندېږي، نو داسي کس دي د وخت تر آخره پوري انتظار وکړي او بیا دي اودس او لمونځ وکړي، بیا که د بل لمانځه په ټوله وخت کي هم هغه وینه جاري وي، نو د اول لمانځه اعاده ضروري نه

ده. ځکه چي عذر متحقق سو. او که هغه وينه تول وخت جاري پاته نه سي، نو د اول لمانځه اعا
لازم ده: ځکه دا کس شرعاً معذوره نه وګرځېدی. (شامي ص: ٢٣٨، کتاب المسائل ص: ١٩٥)

## د باد وتلو (خروج رياح) والا مريض اودس په خوب سره نه ماتيږي

**مسئله (٣)**: کوم څوک چي د باد وتلو په مرض مبتلا وي يعني هر وخت يې بادونه جاري وي ا
نيول يې د ده په وس کي نه وي. نو ښکاره ده چي هغه معذوره دی (لکه مخکي چي د معذور تعري
تېر سو) او د داسي کس په حق کي بيدېدل ناقض وضوء نه دي: ځکه خوب بذات خود اود
ماتونکی نه دی بلکي د باد وتلو د غالب ګومان پر بناء هغه ناقض ګرځول سوی دی (لکه مخکي چي
ذکر سوه). او کله چي دغه کس د نفس باد وتلو په وجه معذوره ګرځېدلی دی. نو د ده په حق کي د ب
وتلو ګومان لره هيڅ اعتبار نسته. (شامي ج:١، ص: ٢٤٣)

## د څاڅکو د مريض لپاره د طهارت آسانه طريقه

**مسئله (٤)**: تر متيازو وروسته چي د کوم چا څاڅکي نه بنديږي، هغه ته پکار دي چي له متياز
څحه تر فارغېدلو وروسته د ذکر په سوري کي يو شی مثلاً پمبه وغيره کښېږدي چي له داخل څخ
خارج ته څاڅکي رانه سي: ځکه تر څو چي د متيازو قطره بهر ته رانه سي، تر هغه وخته پوري د
اودس نه ماتيږي. لېکن د روژې په حالت کي دا عمل نه کول اولیٰ دي. (شامي ج:١، ص: ٤٨٢)



# بَابُ الْأَنْجَاسِ وَالطَّهَارَةِ مِنْهَا

(دا) فصل د مردارېو او له هغوی څخه د پاکۍ (په بیان کې) دی

**تشريح:** مخکې مصنف رَحِمَهُ الله د نجاست حکمیه یعنې د بې اودسیا، جنابت، حیض او نفاس او له هغوی څخه د پاکي حاصلولو احکام بیان کړل، اوس له دې ځایه نجاست حقیقیه او له هغه څخه د پاکي حاصلولو احکام بیانوي.

أَنْجَاس: نَجَسٌ (د نون او جیم په فتحه سره) اسم دی عین نجاست (مرداري) ته وايي لکه غائط، متیازي، وینه او داسې نور. او نَجِسٌ (د جیم په کسره سره) نجس شي ته وايي لکه نجسه کپړه او داسې نور (یا په بله وینا: نَجِسٌ مردار شي ته وايي او نَجَسٌ خودي مرداري ته وايي).

نجس په اصل کې مصدر دی د سَمِعَ او کَرُمَ له باب څخه چې د هغه معنی ده: نجس کېدل (مردارېدل)، ناپاکه کېدل. بیا د دې استعمال په اسم کې هم وسو، او په دې وخت کې د هغه معنی د عینِ نجاست ده. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

### د نجاست (مرداري) قسمونه

﴿۱۹۷﴾ تَنْقَسِمُ النَّجَاسَةُ إِلَى قِسْمَيْنِ تقسیمېږي نجاست و دوو قسمونو ته غَلِيظَةٌ وَخَفِيفَةٌ (۱) غلیظه (۲) او خفیفه (یعنې یو سخت اورند انجاست دی او بل سپک نجاست دی) فَالْغَلِيظَةُ كَالْخَمْرِ وَالدَّمِ الْمَسْفُوحِ نو غلیظه نجاست لکه شراب او بهېدونکې وینه وَلَحْمِ الْمَيْتَةِ وَإِهَابِهَا او (لکه) د مړزګي (مردار سوي حیوان) غوښه او د هغه څرمن وَبَوْلِ مَا لَا يُؤْكَلُ او (لکه) متیازې د هغه حیوان چې غوښه یې نه خوړل کیږي (یعنې د حرام حیوان بولې) وَنَجْوِ الْكَلْبِ او (لکه) د سپي ګندګي (فضله) وَرَجِيعِ السِّبَاعِ وَلُعَابِهَا او (لکه) د درندګانو ګندګي او د هغوی نارې وَخُرْءِ الدَّجَاجِ وَالْبَطِّ وَالْإِوَزِّ او (لکه) د چرګي، هیلۍ او بتي ګندګي وَمَا يَنْقُضُ الْوُضُوْءَ بِخُرُوْجِهِ مِنْ بَدَنِ الْإِنْسَانِ او (لکه) هغه شیان چې د انسان له بدنه د هغوی په وتلو سره اودس ماتیږي:

**لغات:** ﴿خمر﴾ شراب، دانګورو اوبه (رس) چي کله جوش وخوري او ځګ را وغورځوي او نشه پکښې پیدا سي، نو هغه ته خمر وايي، ﴿الدم المسفوح﴾ بهېدونکې وینه. ﴿إهاب﴾ د حیوان اوم پوست، یعني لنده څرمن چي تر اوسه وچه کړل سوې او پخه سوې نه وي. او کله چي وچه کړل سي نو هغه ته "أدِيْم" وايي. ﴿نجو الكلب﴾ د سپي فضله (دسپي غول)، نَجْوٌ په اصل کي له نس څخه وتونکې ګندګي او باد ته وايي، دلته د سپي ګندګي مراد ده. ﴿رجيع السباع﴾ د درندګانو فضله. ﴿البطّ﴾ اسم جنس دی، واحد يې "بَطَّةٌ" دی: هیلی (ایلی). ﴿الإوَزّ﴾ (دراء په شد سره) او إِوَزَّةٌ: بته. یو ډول غټه هیلی ده (مصباح). ﴿ما ينقض الوضوء﴾ کوم څه چي د انسان له بدن څخه ووځي، په هغه سره اودس ماتیږي، هغه د نجاست غلیظه په حکم سره دي، خو له دې څخه باد (ریح) مستثنی سوی دی چي هغه د صحیح قول مطابق پاک دی، او له ناقض څخه مراد ناقضِ حقیقي دی، نه حکمي لکه خوب، خندا، دغه شیان په طهارت او نجاست سره نه سي متصف کېدلای.

**تشریح:** نجاستِ حقیقیه پر دوه قسمه دی: ① نجاستِ غلیظه. ② نجاستِ خفیفه. د دې دواړو په تعریف کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله او د صاحبینو رَحِمَهُمَاالله تر مینځ اختلاف دی، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز چي د کوم شي په نجس والي (مردار والي) باندي په دلائلو کي هیڅ تعارض نه وي یعني د هغه نجس والی په داسي نصّ سره ثابت وي چي د هغه معارض بل نصّ طهارت ثابتونکی نه وي، نو هغه نجاستِ غلیظه دی، لکه شراب او بهېدونکي وینه، چي شرابو ته الله تعالیٰ په قرآن کریم کي رِجْس (نجس) فرمایلي دي او دم مسفوح ته يې هم رِجْس او فِسْق فرمایلي دي او د دې دواړو حرمت په قطعي نصّ سره ثابت دی او د هغه معارض بل هیڅ طهارت ثابتونکی نصّ نسته. او نجاست غلیظه ځکه ورته وايي چي د دې نجاست حکم سخت او سنګین دی، یعني معاف مقدار يې لږ دی.

او نجاستِ خفیفه هغه دی چي د هغه په نجس والي (مردار والي) باندي په دلائلو کي تعارض راغلی وي، یعني له یوه نص څخه د هغه ناپاکوالی (مردار والی) ښکاره کیږي او له بل نص څخه د هغه پاکوالي معلومیږي، لکه د اوښ متیازي، چي په دې حدیث "استنزهوا من البول فإن عامة عذاب القبر منه" څخه معلومیږي چي د اوښ متیازي ناپاکه دي، لیکن بل حدیث د دې معارض دی چي هغه حدیث د عُرنیین دی، چي نبي کریم ﷺ د "عُرَیْنه" قبیلې وخلکو ته (د یو مرض په وجه) د اوښ د متیازو اجازه ورکړه "اشربوا بألبانها وأبوالها". له دې څخه دا معلومیږي چي د اوښ متیازي پاکي دي، ځکه که ناپاکه وای، نو نبي کریم ﷺ به د هغوی د چښلو حکم نه ورته کولای، لهذا کله چي د

هغه په ناپاکوالي باندي په دلائلو کي تعارض راغلی، نو د اوښ متيازي نجاست خفيفه سوې. او نجاست خفيفه ځکه ورته وايي چي د دې نجاست حکم سپک دی، يعني معاف مقدار يې زيات دی.

او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز غليظه هغه نجاست دی چي د هغه پر نجس والي علماؤ اتفاق کړی وي، او خفيفه هغه نجاست دی چي د هغه په نجاست او طهارت کي د علماؤ اختلاف واقع سوی وي.

د امام صاحب او صاحبينو د اختلاف ثمره په خوشايو کي ښکاره کيږي: ځکه خوشايي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز نجاست غليظه ده؛ په دې دليل چي نبي کريم ﷺ هغوی ته رِجس (نجس) فرمايلي دي او بل هيڅ دليل د هغه معارض نسته کوم چي د خوشايو پر طهارت دلالت کوي. او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز خوشايي نجاست خفيفه دی؛ په دې دليل چي د هغوی په نجاست کي د علماؤ اختلاف دی، ځکه چي امام مالک رَحِمَهُ الله د خوشايو د پاکوالي قائل دی. (شفاء الارواح)

الدم المسفوح: يعني د هر ساکښ بهيدونکې وينه نجاست غليظه ده؛ دلته د "مسفوح" قيد لګول سوی دی، لهذا که هغه بهيدونکې وينه نه وي، نو نجسه نه ده، او مطلق دم مسفوح ته نجاست غليظه ويل سوي دي، لېکن له دې څخه د شهيد وينه جلا ده؛ ځکه د شهيد وينه که څه هم دم مسفوح ده لېکن شريعت هغه پاکه ګرځولې ده تر څو چي هغه د شهيد پر بدن وي، لېکن کله چي له هغه څخه ليري سي، د بل چا پر بدن يا کپړه ولګيږي، نو د هغه پرېولل ضروري دي.

ولحم الميتة إلخ: يعني د داسي مردار سوي حيوان غوښه چي په هغه کي بهيدونکې وينه وي، نجاست غليظه ده، او په کوم مردار سوي حيوان کي چي بهيدونکې وينه نه وي، لکه ماهی، ملخ او داسي نور، د هغوی غوښه نجاست غليظه نه ده، همدارنګه د کوم مردار سوي حيوان څرمن ته چي دباغت نه وي ورکول سوی، هغه نجاست غليظه ده (د دباغت په هکله مصنف رَحِمَهُ الله وروسته يو مستقل فصل ذکر کړی دی).

﴿۱۹۸﴾ وَأَمَّا الْخَفِيْفَةُ فَكَبَوْلِ الْفَرَسِ او کوم چي خفيفه نجاست دی نو (هغه) لکه د آس متيازي (بولې) وَكَذَا بَوْلُ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ او همدارنګه متيازي د هغه حيوان (څاروي) چي غوښه يې خوړل کيږي وَخُرْءُ طَيْرٍ لَا يُؤْكَلُ او ګندګي د هغه مرغه کوم چي نه خوړل کيږي (لکه باز، تپوس او داسي نور).

تشريح: په دې عبارت کي مصنف رَحِمَهُ الله هغه شيان بيانوي کوم چي نجاست خفيفه دي، له هغوی څخه يو د آس متيازي دي، دلته يې په مثال کي آس ځکه ذکر کړی دی چي يو چا ته دا ګومان نه سي چي آس ... لهذا د هغه متيازي په هم

نجاست غليظه وي. منصف رَحِمَهُ الله فرمايي چي د آس متيازي په نجاست خفيفه کي داخلي دي او د غوښو ممانعت يې د جهاد پر بناء دی چي آس د جهاد آله ده.

همدارنګه د غوا، ګاميښي، اوښ، پسه او داسي نورو يعني د کومو ښاروو چي غوښي خوړل کيږي، د هغوی متيازي نجاست خفيفه دي، او همدارنګه د هغه مرغانو ګندګي چي غوښه يې نه خوړل کيږي، نجاست خفيفه ده. دلته يې د بول قيد لګولی دی؛ ځکه د آس، خره، غاترې خرشينه او دغوا خوشايي او د پسه، بزې وغيره پُچي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز نجاست غليظه دي او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز نجاست خفيفه دي.

## د نجاست غليظه څومره مقدار معاف دی؟

﴿۱۹۹﴾ وَعُفِيَ قَدْرُ الدِّرْهَمِ مِنَ الْمُغَلَّظَةِ او له نجاست غليظه څخه د يوه درهم مقدار معاف کړی سوی دی.

**تشريح**: په دې عبارت کي مصنف رَحِمَهُ الله دا خبره بيانوي چي د نجاست غليظه څومره مقدار معاف دی او څومره مقدار يې معاف نه دی. تفصيل يې دا دی چي که نجاست غليظه نری (باريک) او بهېدونکی وي، نو هغه د يوه ورغوي په اندازه يا تر هغه کم معاف دی. يعني که د هغه له پرېوللو څخه بغير لمونځ وکړي. نو هم لمونځ يې صحيح کيږي. لېکن نه پرېولل او داسي لمونځ کول بد او مکروه تحريمي دي. او که له ورغوي څخه زيات وي. نو هغه معاف نه دی.

او که نجاست غليظه سخت او کلک غوندي وي لکه غائط، د چرګي ګندګي او داسي نور، نو هغه د يوه درهم په اندازه (يعني ۳ ګرامه او ۶۲ ملي ګرام) يا تر دې کم معاف دی. لهذا که د هغه له پرېوللو څخه بغير لمونځ وسي، نو صحيح دی، خو د کراهت سره. نو ځکه غوره همدا ده چي که له مخکي څخه په دې نجاست خبر سي، نو د هغه تر لېري کولو وروسته دي لمونځ وکړي. او که دا نجاست له يوه درهم څخه زيات وي. نو معاف نه دی او لمونځ نه ورسره صحيح کيږي.

## د نجاست خفيفه څومره مقدار معاف دی؟

﴿۲۰۰﴾ وَمَا دُوْنَ رُبْعِ الثَّوْبِ أَوِ الْبَدَنِ (مِنَ الْخَفِيْفَةِ) او (له نجاست خفيفه څخه) د کپړې يا بدن تر څلورمي حصې کم مقدار (معاف دی).

**تشريح**: يعني که پر جامه يا پر بدن نجاستِ خفيفه ولګيږي او هغه د کپړې يا بدن له څلورمي حصې څخه کم وي. نو معاف دی. يعني د هغه سره لمونځ صحيح او جائز دی. او که د جامې يا بدن له څلورمي حصې څخه زيات نجاستِ خفيفه لګېدلی وي. نو لمونځ نه صحيح کيږي.

بيا د جامې يا بدن د څلورمې حصې په اندازه کې د فقهاؤ اختلاف دی، د څينې حضراتو په نېز د ټوله جامې يا ټوله بدن څلورمه حصه مراد ده، يعني که د ټوله جامې يا ټوله بدن له څلورمې څخه پر کمه حصه نجاست لګېدلی وي، نو هغه معاف دی، او د بعضې حضراتو په نېز چې پر کوم طرف نجاست لګېدلی وي، د هغه طرف د کپړې يا بدن څلورمه حصه مراد ده، مثلاً که د جامې پر لمنه، يا پر لستوني نجاست لګېدلی وي، نو د لمنې يا لستوني د څلورمې حصې اعتبار به کول کيږي. او که په بدن کې پر لاس يا پښو نجاست لګېدلی وي، نو د دوی د څلورمې حصې اعتبار به کول کيږي او پر همدې فتویٰ ده. (شفاء الارواح)

## د متياوزو څاڅکي (قطرې)

| |
|---|
| ﴿٢٠١﴾ وَعُفِيَ رَشَاشُ بَوْلٍ كَرُؤُوسِ الْإِبَرِ او (همدارنګه) د ستنې د سرونو په اندازه د متيازو څاڅکي معاف دي. |

**لغات:** ﴿رَشَاش﴾ او رِشَاش (بفتح الراء وكسر الراء) واحد يې رَشَاشَةٌ او رَشٌ دی: کوچنی څاڅکي. ﴿رؤوس﴾ جمع د رَأْسُ ده: سر، د هر شي پورتنی (پاسنی) حصه. ﴿الإبَرِ﴾ اسم جنس دی چې پر واحد يې هم اطلاق کيږي، واحد يې إبْرَةٌ ده: ستن، لکه د سِدْرٌ واحد چې سِدْرَةٌ دی. (مصباح)

**تشريح:** د متيازو څاڅکي نجس او مردار دي، لېکن زياتره وخت د متيازو کولو پر مهال پر بدن او جامې د متيازو کوچني څاڅکي ولوېږي چې له هغوی څخه بچ کېدل مشکل دي، که چېرې هغوی دېر کوچني وي د ستنې د سر په اندازه کوم چې بغير له توجه څخه نه ليدل کيږي، نو هغوی معاف دي، که څه هم پر ټوله جامه ولوېږي. (حاشيه بحوالة شفاء الارواح)



## د پړپولل کېدونکي مرداري جامې د څاڅکو حکم

**مسئله:** د مردارو جامو (کاليو) د پړېولو په صورت کې که څه معمولي څاڅکي پر بدن يا پر جامې ولګيږي، نو هغوی معاف دي، جامه نه مردارېږي، خو احتياطاً پړېولل پکار دي، لېکن که مردار څاڅکي په بالتۍ (ستل) وغيره کې ولوېږي، نو هغه اوبه مردارېږي. (فتاویٰ هنديه ج:١، ص:۴۶، کتاب المسائل ص:٩٩)

## پر مرداره لنده بستره يا خمکه باندې بدن يا پښه لګېدل

| |
|---|
| ﴿٢٠٢﴾ وَلَوِ ابْتَلَّ فِرَاشٌ أَوْ تُرَابٌ نَجِسَانِ او که لنده سي نجسه (مرداره) بستره يا نجسه خاوره مِنْ عَرَقِ نَائِمٍ أَوْ بَلَلِ قَدَمٍ د بيده کس په خوله سره يا د پښې په لوندوالي سره وَظَهَرَ |

أَثَرُ النَّجَاسَةِ فِي الْبَدَنِ وَالْقَدَمِ او د نجاست (مرداری) اثر په بدن يا پښه باندې ښکاره سي تَنَجَّسَا نو دوى دواړه (بدن او پښه) مرداريږي وَإِلَّا فَلَا كني نه (مرداريږي).

**لغات:** ﴿ابتل﴾ د افتعال د باب ماضي ده: لندېدل. ﴿بلل﴾ لوندوالى (لندوالى).

**تشريح:** كه څوک پر داسي بستره (ځاى) يا پر داسي خاوره پرېوځي چي پر هغه بستره يا خاوره باندې نجاست (مرداري) لګېدلې وي، مثلاً بستره په متيازو ككړه وي، بيا د پرېوتونكي كس بدن خوله وكړي او بستره يا خاوره لنده سي، يا هغه پر دې بستر يا خاوره باندې پښه كښېږدي حال دا چي پښه يې لنده وي چي د پښې په لوندوالي سره بستر يا خاوره لنده سي، نو په دې صورت كي حكم دا دى چي كه پر بدن يا پر پښه د نجاست اثر (رنګ. بوى) ښكاره سي، نو بدن او پښه هم مرداريږي. او كه د نجاست اثر باندې ښكاره نه سي، نو هغه نه مرداريږي.

د پورتنۍ مسئلې د مثال په توګه مصنف رَحِمَهُ الله په را روان عبارت كي يوه مسئله ذكر كړې ده چي څرنګه چي كه يوه پاكه وچه جامه په داسي مرداره لنده جامه كي ونغښتل سي چي كه هغه ونښېږل سي نو اوبه نه ځني څڅيږي، نو په داسي مرداره جامه كي پېچل سوې پاكه جامه نه مرداريږي، په دې شرط چي په پاكه كپړه كي د نجاست اثر ښكاره نه سي، نو همداسي په دې پورتنۍ مسئله كي چي تر څو د نجاست اثر پر بدن يا پر پښه ښكاره نه سي، تر هغه وخته پوري نه مرداريږي. (شفاء الارواح، انوار الايضاح)

﴿۲۰۳﴾ كَمَا لَا يَنْجُسُ ثَوْبٌ جَافٌّ طَاهِرٌ لُفَّ فِيْ ثَوْبٍ نَجِسٍ رَطْبٍ لكه څرنګه چي نه مرداريږي هغه وچه كپړه كوم چي پېچل سوې وي په داسي لنده (خيشته) مرداره كپړه كي لَا يَنْعَصِرُ الرَّطْبُ لَوْ عُصِرَ چي لوندالي يې نه را نښېږل كېږي كه چيري ونښېږل سي (يعني داسي لنده مرداره جامه چي په نښېږلو سره يې لوندلوالى (څڅېدونكې اوبه) نه راوځي. يعني اوبه پكښې نه وي محض نمناكه وي).

**لغات:** ﴿جاف﴾ د ضرب له بابه اسم فاعل دى؛ وچ. جَفَّ يَجِفُّ جَفًّا وَجَفَافًا، وچېدل. ﴿لف﴾ د نصر له بابه ماضي مجهوله ده؛ پېچل. ﴿رَطْب﴾ (د طاء په سكون سره)؛ لوند. خيشت.

**تشريح:** په تېر عبارت كي د دې وضاحت وسو.

## لنده جامه پر مرداره ځمکه هوارول

﴿۲۰۴﴾ وَلَا يَنْجِسُ ثَوْبٌ رَطْبٌ بِنَشْرِهِ عَلٰى أَرْضٍ نَجِسَةٍ يَابِسَةٍ او نه مردارېږي لنده(خیشته) کپړه په غوړولو (هوارولو) سره پر مرداره (نجسه) ځمکه باندې فَتَنَدَّتْ مِنْهُ چې نمجنه(لنده) سي هغه مرداره ځمکه له کپړې څخه (یعني محض د مرداري ځمکې په لندېدو سره هغه پاکه لنده کپړه نه مردارېږي، بلکې هغه وخت مردارېږي کله چې د دې مرداري ځمکې د نجاست اثر پر لنده کپړه باندې ښکاره سي) وَلَا بِرِيحٍ هَبَّتْ عَلٰى نَجَاسَةٍ فَأَصَابَتِ الثَّوْبَ او نه په هغه باد سره (مردارېږي) کوم چې پر يو نجاست وچلېږي. بيا هغه د کپړې سره ولګېږي (کپړې ته ورسېږي) إِلَّا أَنْ يَظْهَرَ أَثَرُهَا فِيْهِ مګر (هغه وخت دا کپړه مردارېږي) چې د نجاست اثر په کپړه کې ښکاره سي.

**لغات**: ﴿رَطْبٌ﴾ په تېر عبارت کې ذکر سو. ﴿تَنَدَّتْ﴾ د تفعل له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: لندېدل، خيشتېدل. ﴿هَبَّتْ﴾ د نصر له بابه مخکينی صيغه ده: باد چلېدل، هوا چلېدل. اثرها: د ضمير مرجع نجاسة دی. فيه: د ضمير مرجع ثَوْب دی.

**تشريح**: مسئله دا ده که ځمکه په متيازو يا داسې بل نجس شي سره مرداره سي، بيا په لمر وغيره سره وچه سي او يو څوک پر هغه باندې لنده خيشته جامه هواره کړي. نو که پر هغه لنده جامه د نجاست اثر ښکاره نه سي، نو نه مردارېږي.

ولا بريح هبت إلخ: مثلاً د لندې پاکې جامې تر څنګ خوشايي يا مرداره خاوره پرته وي او پر هغه باد وچلېږي او دا مرداري هغه پاکې جامې ته ورسوي، نو په دې سره جامه نه مردارېږي. په دې شرط چې پر هغه جامه د نجاست اثر ښکاره نه سي.

## د نجاست مرئيه بيان

﴿۲۰۵﴾ وَيَطْهُرُ مُتَنَجِّسٌ بِنَجَاسَةٍ مَرْئِيَّةٍ او پاکېږي هغه شی کوم چې نجس سوی وي په ليدل کېدونکي (نظر راتلونکي) نجاست سره بِزَوَالِ عَيْنِهَا (داسې شی پاکېږي) د نجاست د ذات په لیري کېدلو سره وَلَوْ بِمَرَّةٍ که څه هم په يوه وار پرېولو سره وي (يعني که څه هم په يو ځل پرېولو سره د نجاست ذات زائل اليري اسې) عَلَى الصَّحِيْحِ د صحيح قول مطابق وَلَا يَضُرُّ بَقَاءُ أَثَرٍ

شَقَّ زَوَالُهُ او (پاکوالي) ته ضرر نه رسوي د (نجاست) داسي اثر (نښان) باقي پاتېدل چي د هغه لیري کول مشکل وي.

**تشریح**: نجاست پر دوه قسمه دی: (۱) نجاست مرئیه، (۲) نجاست غیر مرئیه. په دې عبارت کي د نجاست مرئیه بیان دی. نجاست مرئیه هغه نجاست دی کوم چي تر وچېدلو وروسته هم په نظر راځي لکه وینه یا غائط. صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله فرمایي چي که نجاست مرئیه پر جامه ولګېږي. نو دومره به پرېولل کېږي چي نجاست لیري سي او داغ یې ختم سي، برابره ده په هر څو وارو لیري سي. کله چي نجاست لیري سي، نو جامه پاکېږي، او که پر بدن ولګېږي. نو د هغه هم دغه حکم دی. مصنف رَحِمَهُ الله فرمایي چي که د نجاست ذات په یوه وار پرېوللو سره لیري سي. نو هم د صحیح قول مطابق د پاکېدو حکم به کول کېږي.

وروسته فرمایي چي که یو نجاست داسي وي چي تر څو واره پرېوللو وروسته هم د هغه اثر مثلاً بدبویي یا داغ نه ختمېږي، نو هم کپړه پاکېږي. په صابون وغیره سره د هغه داغ او بوی لیري کول ضروري نه دي.

**فائده**: د "عن الصحیح" په قید لګولو سره دا بیانوي چي په مذکوره مسئله کي اختلاف دی. امام فقیه ابو جعفر هندواني رَحِمَهُ الله فرمایي چي د نجاست د ذات تر زائلېدلو وروسته دوه واره پرېولل ضروري دي او علامه فخر الاسلام رَحِمَهُ الله فرمایي چي درې واره پرېولل ضروري دي. خو صحیح قول هغه دی کوم چي مصنف رَحِمَهُ الله ذکر کړی دی. (مراقی الفلاح)

## د نجاست غیر مرئیه بیان

۲۰۶ ﴿ وَغَيْرِ الْمَرْئِيَّةِ بِغَسْلِهَا ثَلَاثًا وَالْعَصْرِ كُلَّ مَرَّةٍ او نالیدل کېدونکي نجاست (سره نجس سوی شی. پاکېږي) په درې واره پرېوللو او هر وار نښېړلو سره.

**تشریح**: په دې عبارت کي د نجاست غیر مرئیه بیان دی. غیر مرئیه هغه نجاست دی کوم چي تر وچېدلو وروسته نه لیدل کېږي لکه متیازي. شراب. مرداري اوبه. نو د هغه د پاکولو لپاره درې واره پرېولل او هر وار نښېړل ضروري دي. او په اصل کي غالب ګومان لره اعتبار دی. یعني هغه دي دومره پرېولل سي چي د پرېولونکي غالب ګومان داسي چي اوس نو پاک سو. لېکن فقهاوو د غالب ګومان اندازه په درې واره پرېوللو سره متعینه کړې ده؛ ځکه چي په دې شمېر سره غالب ګومان حاصلېږي. نو د آساني لپاره د درېو شمېر د غالب ګومان قائم مقام کړی سو چي که غیر مرئي نجاست درې واره پرېولل سي. نو هغه پاکېږي.



## د لوی فرش، غالی او کارپیټ د پاکولو طریقه

**مسئله**: لوی فرش یا غالی یا کارپیټ چي د هغه نسټېړل ناممکن دي، که هغه مردار سي، نو د هغه د پاکوالي طریقه دا ده چي درې واره دي پرېولل سي او تر هر وار پرېوللو وروسته دي دومره وخت پرېښول سي چي له هغه څخه اوبه څڅېدل بند سي (څاڅکي یې ختم سي)، په پوره توګه وچول ضروري نه دي، په درې واره داسي کولو سره هغه فرش وغیره پاک ګرځي. (عالمګیري ج:۱، ص:۴۲، کتاب المسائل ص:۱۰۸)

## په کومو شیانو سره نجاست حقیقي لیري کول جائز دي؟

﴿۲۰۷﴾ وَتَطْهُرُ النَّجَاسَةُ عَنِ الثَّوْبِ وَالْبَدَنِ او پاکیږي نجاست له کپړې (جامې) او بدن څخه بِالْمَاءِ وَبِكُلِّ مَائِعٍ مُزِيْلٍ په اوبو سره او په هر داسي نرم (بهېدونکي) شي سره کوم چي (د نجاست) لیري کونکی وي كَالْخَلِّ وَمَاءِ الْوَرْدِ لکه سرکه او د ګلابو اوبه.

**لغات**: ﴿نجاسة﴾ مرداري ناپاکي، له نجاسة څخه مراد نجاست حقیقیه دی: ځکه نجاست حکمیه (بې اودسي او جنابت) په هر زائلېدونکي شي سره نه زائلیږي، هغه صرف په اوبو یا تیمم سره پاکیږي، او نجاسة یې مطلق ذکر کړی دی چي مرئیه او غیر مرئیه دواړو لره شامل سي او ماء (اوبه) یې هم مطلق ذکر کړي دي چي ماء مطلق او ماء مستعمل دواړو لره شامل سي. (حاشیه)

**تشریح**: داوبو په څېر چي کوم شی بهېدونکی، نری او پاک وي او په هغه کي د ناپاکي لیري کولو (زائلولو) صلاحیت وي، نو په هغه سره هم د نجاست حقیقیه لیري کول جائز دي، لکه د ګلاب اوبه، سرکه وغیره، لېکن غوړي، تېل او په داسي بل غوړ لرونکي شي سره پرېولل صحیح نه دي، په هغه سره بدن یا کپړه نه پاکیږي.

**عقلي دلیل**: بهېدونکی شی نجاست له بېخه کاږي او لیري کوي یې، او په اوبو کي د پاکولو صفت په همدې وجه دی چي هغه نجاست لیري کوي، لهذا کله چي دا معنی په بل بهېدونکي شي کي موجوده وي، نو داوبو په څېر به هغه هم پاکونکی او نجاست لیري کونکی وي. (بدائع الصنائع ج:۱، ص:۲۴۰)

## د چمړې موزې او خپلې د پاکولو طریقه

﴿۲۰۸﴾ وَيَطْهُرُ الْخُفُّ وَنَحْوُهُ بِالدَّلْكِ مِنْ نَجَاسَةٍ لَهَا جِرْمٌ او پاکیږي موزه او داسي بل شی په مږلو سره له هغه نجاست څخه چي هغه لره جسم (صورت) وي (یعني جسم لرونکی نجاست

| |
|---|
| په مږلو سره پاکیږي) وَلَوْكَانَتْ رَطْبَةً که څه هم هغه لوند وي. |

**لغات:** ﴿جِرْم﴾ جسم، صورت، پړی، بدنه، جمع: أجْرَام.

**تشریح:** که د چمړې (څرمنې) پر موزه یا څپلۍ باندې نجاست ولګیږي (په یو مرداري سره ککړه سي).
نو د هغه په پاکولو کې تفصیل دی: ① که نجاست داسې وي کوم چې جسم والا نه وي. مثلاً متیازې یا شراب وغیره، نو په دې صورت کې هغه موزه یا څپلۍ پرېولل ضروري دي. برابره ده نجاست لوند وي او که وچ سوی وي، بغیر له پرېوللو څخه نه سي پاکېدلای. ② او که نجاست داسې وي کوم چې په سترګو لیدل کیږي لکه لانده خرشینه، خوشایې، غائط او داسې نور، نو که هغه په خاوره یا خښته سره ومږل سي او داسې صفا کړل سي چې د نجاست هیڅ اثر باقي پاته نه سي. نو د عموم بلوىٰ او ابتلاء عام په وجه د مفتیٰ به قول مطابق موزه او څپلۍ پاکیږي. ③ او که نجاست وچ وي لکه د پُسه پُچې یا داوښ پُچې، نو محض د هغه په مږلو او لیرې کولو سره موزه وغیره پاکه ګرځي. (المحیط البرهاني ج:١، ص:٣٨٥، کتاب المسائل ص:١١۶)

## د توري او هینداري وغیره د پاکولو طریقه

| |
|---|
| ﴿٢٠٩﴾ وَيَطْهُرُ السَّيْفُ وَنَحْوُهٗ بِالْمَسْحِ او پاکیږي توره او داسې بل شی په مسه کولو (وچولو) سره (یعني چې خاوره یا توکر باندې تېر کړی سي او په هغه سره وچ اصفا کړی سي). |

**تشریح:** که په توره، چاړه او ښیښه باندې نجاست ولګیږي، نو هغه په پرېوللو سره هم پاکېدلای سي او که په یو پاکه کپړه سره نجاست وچ او صفا کړی سي، نو هم پاک ګرځي.
لېکن که توره، چاړه، هینداره او داسې نور نقشداره او ځیږه وي چې د دوی په کرښو (لیکو) کې د نجاست پاتېدلو امکان وي، نو دوی محض په وچولو او صفا کولو سره نه پاکیږي، بلکې پرېولل او د نجاست اثرات لیرې کول ضروري دي. (عالمګیري ج:١، ص:۴٢، کتاب المسائل ص:١١۶)

## د ناپاکه ځمکې د پاکېدلو طریقه

| |
|---|
| ﴿٢١٠﴾ وَإِذَا ذَهَبَ أَثَرُ النَّجَاسَةِ عَنِ الْأَرْضِ وَجَفَّتْ او کله چې د نجاست اثر له ځمکې څخه ولاړ سي او ځمکه وچه سي جَازَتِ الصَّلٰوةُ عَلَيْهَا نو جائز دي پر هغې لمونځ کول دُوْنَ التَّيَمُّمِ مِنْهَا نه له هغې څخه تیمم کول (یعني پر داسې ځمکه تیمم وهل جائز نه دي). |

**لغات:** ﴿جفّت﴾ د ضرب له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صیغه ده: وچېدل، لوندوالی ختمېدل.

**تشریح:** ناپاکه ځمکه محض په وچېدلو او د نجاست په زائلېدلو سره پاکیږي.

لېکن که د ځمکې وچېدلو ته انتظار نه سي کېدلای او سمدستي پاکولو ته يې ضرورت وي، نو لاندينۍ طريقې دي اختيار کړل سي: (۱) که د ځمکې کيندل ممکن وي، نو په نجاست سره ککړه حصه دي په کيندلو سره جلا کړل سي، (۲) دويم صورت دا دی چې هغه ځای وکيندل سي او واړول سي يعني تر کيندلو وروسته پاسنۍ حصه لاندې کړل سي او لاندينۍ حصه راپورته کړل سي، (۳) درېيم صورت دا دی چې که هغه ځمکه پسته وي چې اوبه پکښې جذب کېږي، نو د هغې د پاسه دي اوبه وبهول سي او کله چې اوبه جذب سي، نو ځمکه به پاکه سي. او که ځمکه کلکه وي چې اوبه نه جذبوي، نو د پاسه دي اوبه باندې واچول سي او بيا دي اوبه له هغه ځای ليرې او صفا کړل سي، نو هغه ځمکه به پاکه سي. (طحطاوي على مراقي الفلاح ص:۸۸، كتاب المسائل ص:۱۱۷)



## پر ناپاکه وچه ځمکه تيمم صحيح نه دی

**مسئله (۱)**: مخکې ذکر سوه چې ناپاکه ځمکه په وچېدلو سره حکماً پاکه ګرځي، نو پر دا سې ځمکه لمونځ کول خو جائز دي، لېکن تيمم باندې جائز نه دی؛ ځکه دا ځمکه که څه هم طاهره ده، خو مُطهِّره (پاکونکې) نه ده. (طحطاوي ص:۸۸، كتاب المسائل ص:۱۱۹)

## د سمېټي يا دبريني ځمکې د پاکولو طريقه

**مسئله (۲)**: د سمېټي يا دبريني ځمکې (سمېټي او دبرين فرش) حکم هم د ځمکې په شان دی، چې که پر هغه متيازي يا لوند نجاست ولګېږي، نو په وچېدلو او د نجاست د اثر په زائلېدلو سره پاکېږي، او د سمدستي پاکولو طريقه يې دا ده چې د پاسه اوبه باندې واچول سي او وچه کړل سي. يا په بالټۍ يا نل (پيپ) سره دومره زياتي اوبه پر وبهول سي چې د نجاست د اثراتو ليرې کېدل يقيني سي، نو هم هغه پاکېږي. (المحيط البرهاني ص:۳۸۲، كتاب المسائل ص:۱۱۸)

## د درختي او وښو حکم

﴿۲۱۱﴾ وَيَطْهُرُ مَا بِهَا مِنْ شَجَرٍ وَكَلَإٍ قَائِمٍ او پاکېږي هغه شيان کوم چې په ځمکه باندې (ولاړ) وي يعني درختې او ولاړ وابنه بِجَفَافِهِ د هغوی په وچېدلو سره.

**لغات**: ﴿كَلأ﴾ وابنه، برابره ده لانده وي او که وچ. د بِهَا د ضمير مرجع ځمکه ده.

**تشريح**: درختې او هغه وابنه کوم چې پر ځمکه ولاړ وي يعني پرېکړل سوي نه وي، د هغوی حکم هم د ځمکې په شان دی چې که نجاست پرې ولګېږي او بيا وچ سي، نو هغوی پاکېږي کله چې د نجاست اثر ختم سي. لهذا کومه درخته يا بوټي چې پرې سي او له ځمکې څخه جلا سي او بيا مردار سي، نو هغوی له پرېولو څخه بغير نه پاکېږي.

## د ذات په بدلېدلو سره د پاکۍ حکم

﴿۲۱۲﴾ وَتَطْهُرُ نَجَاسَةٌ اِسْتَحَالَتْ عَيْنُهَا او پاکيږي هغه نجاست چي ذات يې بدل سوی وي (يعني که د نجاست ذات او صورت بدل سي. نو په دې سره هغه پاکيږي) كَأَنْ صَارَتْ مِلْحًا أَوِ احْتَرَقَتْ بِالنَّارِ (مثلا) لکه نجاست چي مالګه وګرځي يا په اُور سره وسوځي.

**لغات:** ﴿استحالت﴾ د استفعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده. اِسْتِحَالَۃ: د دې باب خو معناوي دي چي له هغوی څخه يې يوه معنیٰ ده: بدلېدل. اوښتل (له يوه حالت څخه په بل حالت بدلېدل). او په كَأَنْ کي کاف حرف جر دی کوم چي پر أَنْ ناصبه داخل دی.

**تشريح:** که د نجاست ذات او حقيقت بدل سي، نو په دې سره هم هغه پاکيږي، مثلاً له شرابو څخه سرکه جوړه سي (سرکه وګرځي)، نو پاکيږي، يا غائط خاوره وګرځي، نو پاکيږي؛ ځکه ذات يې بدل سو، همدارنګه که نجاست وسوځول سي او ايره کړل سي، نو پاکيږي، مثلاً خوشايي، غائط وغيره وسوځول سي او ايره وګرځي، نو هغه ايرې پاکي دي.

﴿۲۱۳﴾ وَيَطْهُرُ الْمَنِيُّ الْجَافُّ بِفَرْكِهِ عَنِ الثَّوْبِ وَالْبَدَنِ او پاکيږي وچ مني د هغوی په ګرولو سره، له کپړې او بدن څخه (چي وګرول سي او ليري کړل سي) وَيَطْهُرُ الرَّطْبُ بِغَسْلِهِ او پاکيږي لانده مني د هغوی په پرېولو سره.

**لغات:** ﴿فرک﴾ د نصر د باب مصدر دی: مږل او ګرول، يُقَال: فرك المنى من الثوب، أى دلکه وحکه حتى يتفتت ويزول عن الثوب (يعني مني مږل او ګرول چي سره ذره. ذره سي او له جامې څخه ليري سي). (معجم لغة الفقهاء)

**تشريح:** د انسان مني ناپاک دی، که مني لانده وي، نو هغوی صرف په پرېولو سره پاکيږي، او که پر بدن يا پر جامه باندي وچ سي، نو ګرول يې کافي چي په ګرولو او مږلو سره صفا او ليري کړل سي، نو بدن او جامه پاکيږي.

**يادونه:** په اوس وخت کي د پخوا په نسبت د خلګو قواوي کمزوري دي چي په دې وجه مني نري او باريک وي. نو ځکه پرېولل يې ضروري دي. (اعلاء السنن)

احقر بنده حبيب الرحمن "مدنی"

شعبان ۹/ ۱۴۴۲هـ

مارچ ۲۱/ ۲۰۲۱ء



# فَصْلٌ فِي الدِّبَاغَةِ

(دا) فصل په (بیان د) دباغت کې دی

**تشریح:**

**د دباغت تعریف او وضاحت:** "الدِّبَاغَة" د دال په "کسره" سره دی. د نصر، فتح او ضرب د باب مصدر دی: څرمن وچول او پخول (یا په بله وینا: څرمن ته رنګ ورکول) یعنې د مسالې او داسې نورو شیانو په ذریعه د څرمنې لوندوالی (رطوبت) او بدبویي ورختمول.

دباغت پر دوه قسمه دی: ① حقیقي ② حکمي. دباغت حقیقي دا دی چې د کیکر، مسالې یا د انارو د پوستکو یا داسې نورو شیانو په ذریعه د څرمنې لوندوالی او بدبویي لیرې کړل سي. او دباغت حکمي دا دی چې په لمر یا هوا سره د وچولو په ذریعه یا د خاورو اچولو په ذریعه د څرمنې رطوبت او بدبویي لیرې کړل سي.

لنډه دا چې د دباغت ورکولو یعنې د څرمنې د رطوبت او بدبویي لیرې کولو او وچولو لپاره څو طریقې دي: ① یوه دا چې په یو کیمیایي ماده سره دباغت ورکول سي، ② څرمن په خاوره کې پټه کړل سي او تر هغه وخته پرېښوول سي چې بدبویي او رطوبت یې ختم سي، ③ څرمن لمر ته واچول سي چې د هغه په وجه یې بدبویي او رطوبت وچ او ختم سي، ④ څرمن د هوا په ذریعه وچه کړل سي. له مذکوره طریقو څخه د هرې طریقې په اختیارولو سره څرمن پاکول کېدای سي.

## په دباغت سره د څرمنې پاکولو بیان

﴿۲۱۴﴾ يَطْهُرُ جِلْدُ الْمَيْتَةِ بِالدِّبَاغَةِ الْحَقِيْقِيَّةِ پاکیږي څرمن (پوست) د مړزګي (مره سوي حیوان) په حقیقي دبادغت سره (یعنې په حقیقي وچولو او پخولو سره) كَالْقَرَظِ لکه د کیکر درختې په تخم (یا ببلګونو) سره (وچول او پخول) وَبِالْحُكْمِيَّةِ او (همدارنګه پاکیږي څرمن د مړزګي) په حکمي دباغت سره كَالتَّتْرِيْبِ وَالتَّشْمِيْسِ لکه په خاوره اچولو (خاوره مږلو) او لمر ته په ایښوولو سره (وچول او پخول) إِلَّا جِلْدَ الْخِنْزِيْرِ وَالْآدَمِيِّ مګر (نه پاکیږي) څرمن د خنزیر (د نجس العین کېدو په وجه) او څرمن د انسان (د شرافت په وجه).

**لغات**: ﴿القرظ﴾ دا دیو ډول اغزي داري درختي تخم او پاڼي (بلګونه) دي چې په هغه سره به پوست او څرمني ته دباغت ورکول کېدی او د درختي نوم په عربي کې سَلَم دی چې واحد یې سَلَمَةٌ دی کوم چې د جوز د درختي په څېر پنډي تنې لري، او ځیني شارحینو په اُردو کې د دې معنیٰ په "کیکر" سره کړې ده چې په پښتو کې ورته د کیکر درخته وایي، صاحب د مصباح المنیر همدارنګه علامه طحطاوي رَحِمَهُ الله لیکلي دي چې له قَرَظْ څخه د سَلم د درختي دانې (تخم) مراد دی، نه پاڼي (بلګونه. لکه څرنګه چې بعضو یې همدا ترجمه کړې ده)، ځکه په پاڼو (بلګونو) سره څرمني ته دباغت نه ورکول کېږي. ﴿میتتة﴾ مرداه، مړزګه، یعني مردار سوی (په طبعي مرګ مړ سوی) حیوان. کوم چې له ذبح څخه بغیر مړ سي، ﴿تتریب﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: پر یو شي د پاسه خاوره اچول. خاوره باندي اېښوول، په خاورو لړل، ﴿تشمیس﴾ دا هم د تفعیل د باب مصدر دی: لمر ته اېښوول چې وچ سي.

**تشریح**: صورت د مسئلې دا دی چې د خنزیر او انسان له څرمن څخه بغیر بل د هر حیوان څرمن په دباغت ورکولو سره پاکیږي، دباغت پر دوه قسمه دی چې وضاحت یې مخکې وسو. په دې هر قسم دباغت سره څرمن پاکیږي. تر دباغت وروسته هغه څرمن هر ډول استعمالول جائز دي، مثلا جامه او پوستین ور څخه جوړول او اغوستل. لمونځ پکښي کول. سولاغه یا داسي بل څه ځني جوړول او په هغه سره اودس، غسل کول او داسي نور، خو څرنګه چې خنزیر ټوله نجس العین حیوان دی او د هغه هیڅ یو جزء هیڅ ډول هم نه سي پاکېدلای، نو ځکه هغه له دې حکم څخه جلا دی، همدارنګه د انسان څرمن هم په دباغت سره نه پاکیږي؛ ځکه چې هغه اشرف المخلوقات دی.

﴿۲۱۵﴾ وَتُطَهِّرُ الذَّكَاةُ الشَّرْعِيَّةُ جِلْدَ غَيْرِ الْمَأْكُولِ دُوْنَ لَحْمِهِ او پاکوي شرعي ذبح (یعني په شرعي توګه حلالول) د هغه حیوان پوست چې غوښه یې نه خوړل کیږي. نه د هغه غوښه (یعني غیر مأکول اللحم حیوان لکه چغال. لېوه او داسي نور. په شرعي طریقه ذبح کولو سره صرف د هغه څرمن پاکیږي. غوښه یې نه پاکیږي) عَلَى أَصَحِّ مَا يُفْتَى بِهِ د صحیح قول مطابق پر کوم چې فتویٰ ورکول کیږي.

**لغات**: ﴿الذكاة﴾ ذبح کول. الذکاة الشرعیة: شرعي ذبح، یعني د شرعي طریقې مطابق ذبح کول (حلالول). نو که مجوسي ذبح کړی وي، یا محرم ښکار کړی وي، یا م[illegible] ح په [illegible] قصداً بسم الله پر ي ایښې وي، نو هغه لره دا حکم شامل نه دی؛ ځکه دا [illegible] ده.

**تشریح:** که یو حیوان په بسم الله سره ذبح کړی سي، برابره ده دهغه حیوان غوښي حلالي وي او که نه وي، نو دبهیدونکي وینې تر وتلو وروسته دهغه څرمن پاکه ګرځي، خو دغیر مأکول اللحم حیوان غوښه نه حلالیږي، همدا صحیح او مفتیٰ به قول دی، خو خنزیر داسي حیوان دی کوم چي ټوله نجس العین دی چي دهغه هیڅ جزء هم هیڅ ډول نه سي پاکیدلای. (انوار الایضاح)

## د مردار خاروي د هډوکو، وړښتو او داسي نورو حکم

﴿۲۱۶﴾ وَكُلُّ شَيْءٍ لَا يَسْرِيْ فِيْهِ الدَّمُ لَا يَنْجِسُ بِالْمَوْتِ او هر هغه شی چي وینه سرایت نه پکښي کوي (هغه) په مرګ سره نه نجس کیږي كَالشَّعْرِ وَالرِّيْشِ الْمَجْزُوْزِ لکه وړېښتان او پرېکړل سوي بڼي (شکول سوي ښکي) وَالْقَرْنِ وَالْحَافِرِ او (لکه) ښکر او ښونګري وَالْعَظْمِ مَا لَمْ يَكُنْ بِهِ دَسَمٌ او (لکه) هډوکی تر څو چي پر هغه غوړزګي نه وي.

**لغات:** ﴿لا یسري﴾ د ضرب له بابه د نفي صیغه ده: تلل، تګ کول. ﴿المجزوز﴾ د ضرب او نصر له بابه مفعول دی: پرېکړل سوی. ﴿قرن﴾ ښکر، جمع: قُرُوْن. ﴿حافر﴾ ښونګری، جمع: حوافر. ﴿دَسَمٌ﴾ غوړزګي، وازګه. (معجم الوسیط)

**تشریح:** یعني د مردار حیوان (غیر مأکول اللحم) دبدن هغه اجزاء او شیان چي وینه سرایت نه پکښي کوي او دژوند آثار پکښي نه وي، هغوی په مرګ سره نه مرداریږي، بلکي پاک پاتیږي، لکه ښکر، وړېښتان، ښونګري، هډوکي په دې شرط چي پر هډوکو دهغه حیوان وازګه او غوړزګي نه وي.

## د پلو حکم

﴿۲۱۷﴾ وَالْعَصَبُ نَجِسٌ فِي الصَّحِيْحِ او پله د حیوان نجسه (مرداره) ده.

**لغات:** ﴿عصب﴾ پله، یعني د انسان او حیوان په وجود کي هغه سپین، کلک اعصاب او پټې چي د هغوی په ذریعه بندونه یو دبل سره متصل او تړلي وي، جمع: أَعْصَاب.

**تشریح:** مصنف رَحِمَهُ الله فرمایي چي (دغیر مأکول اللحم امردار احیوان) پله نجسه ده، صحیح روایت همدا دی: دلیل یې دا دی چي په پله کي هم دژوند آثار وي: ځکه دهغې په پرېکولو سره تکلیف او درد محسوسیږي، لهذا په پله کي "میتهٌ" کېدل متصوّر سوه. علامه طحطاوي رَحِمَهُ الله فرمایي چي په مجمع الانهر کي دغه دلیل رد کړی سوی دی؛ ځکه د پلې په پرېکولو سره چي کوم تکلیف محسوسیږي، هغه خو د غوښي سره د اتصال په وجه وي او همداسي تکلیف خو د هډوکي په

ماتېدلو سره هم محسوسېږي، نو بيا د هغه د نجاست هم قائل کېدل پکار دي، حال دا چي د هغه هيڅوک قائل نه دي، معلومه سوه چي مفتیٰ به روايت دا دی چي پله پاکه ده، په دې شرط چي پر هغه د وازګي وغيره آثار نه وي. (طحطاوي ص:۹۱، حلبي کبير ص:۱۵۴)

## د مشک حکم

﴿۲۱۸﴾ وَنَافِجَةُ الْمِسْكِ طَاهِرَةٌ كَالْمِسْكِ او د مشکو کڅوړه (نافه) د مشکو په څېر پاکه ده وَأَكْلُهُ حَلَالٌ او خوړل يې حلال (روا) دي.

**لغات**: ﴿نافجة﴾ د مُشکو کڅوړه، د مُشکو غوټه يعني د هوسۍ په نس کي هغه کڅوړه (خلته) چي مشک پکښې جوړېږي او پکښې خوندي وي چي په پښتو کي ورته نافه وايي. ﴿مِسْك﴾ مشک، هغه خوشبويه تور رنګه ماده ده کوم چي د هوسۍ په نامه (ټو) کي جوړېږي. او په ډېر ګران قيمت سره پلورل کېږي. مشک د هوسۍ له وينې څخه جوړېږي په دې توګه چي د هوسۍ له بدن څخه په دې کڅوړه (نافه) کي وينه جمع کېږي او آخر کلکه او وچه سي نو مشک تيار سي، او مشک تر ټولو د اعلیٰ درجې خوشبويي ده.

**تشريح**: فرمايي چي مشک پاک دي، همدارنګه په کومه کڅوړه کي چي مشک موجود وي يعني نافه، هغه هم پاکه ده او د مشک خوړل هم حلال دي (پاته سوه دا خبره چي مشک خو په اصل کي وينه ده او وينه ناپاکه ده. نو د دې جواب دا دی چي کله ذات او ماهيت بدل سي، نو احکام هم بدلېږي)؛ دلته يې د مشکو صراحت ځکه وکړی چي بعضي شيان داسي وي چي هغوی خو پاک وي، لېکن خوړل يې روا نه وي، لکه خاوره چي هغه پاکه ده، لېکن خوړل يې روا نه دي؛ نو ځکه فرمايي چي مشک هم پاک دي او د هغه خوړل هم روا دي.

﴿۲۱۹﴾ وَالزَّبَادُ طَاهِرٌ او زباد خوشبويي (هم) پاکه ده تَصِحُّ صَلوٰةُ مُتَطَيِّبٍ بِهٖ (نو) صحيح کېږي لمونځ د هغه کس چي دا خوشبويي لګولې وي.

**لغات**: ﴿زباد﴾ په تشريح کي به يې وضاحت وسي، ﴿متطيب﴾ د تفعل له بابه د فاعل صيغه ده: (په يو خوشبويي سره) د ځان خوشبوداره کونکی، د خوشبويي استعمالونکی.

**تشريح**: له زباد څخه مراد يو قسم خوشبويه غوړه ماده ده کوم چي د ځنګلي پيشي غوندي حيوان له بدن څخه راوځي او د هغه تر لکۍ لاندي په يو خلته کي جمع کېږي (لکه مشک چي د هوسۍ په نس کي دننه په يو خلته اندا کي جوړېږي او جمع کېږي)، زباد ډېره خوشبويه ماده ده او د عطرو په توګه استعمالول کېږي (او زباد همدغه حيوان ته هم ويل کېږي) (ايضاح الاصباح، معجم الوسيط)، نو فرمايي چي دغه خوشبويي هم پاکه ده، لهذا که چا زباد خوشبويي لګولې وي، نو د هغه لمونځ صحيح دی.



# كِتَابُ الصَّلاةِ

## (دا) کتاب د لمانځه (د احکامو په بیان کې) دی

**تشريح:** څرنګه چې لمونځ د ټولو عبادتونو بنیاد او د ټولو طاعتونو اصل دی، نو ځکه كِتَابُ الصَّلاةِ پر ټولو مشروعاتو مخکې کړی سو او څرنګه چې طهارت د لمانځه لپاره شرط دی او شرط د یو شي پر شي مخکې وي، نو ځکه کتاب الطهارة پر کتاب الصلاة مخکې کړی سو.

**د صلاة لغوي معنـی:** صلاة په لغت کې دعاء ته ویل کیږي، لکه څرنګه چې په قرآن کې دي: ﴿وَصَلِّ عَلَيْهِمْ إِنَّ صَلَاتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ﴾ [سورة التوبة: ۱۰۳]، (اې نبي! (ﷺ) ته دوي خلکو لپاره دعا کوه! یقینا ستا دعاء د دوی لپاره د اطمینان او سکون لامل دی). همدارنګه نبي کریم ﷺ تر دوی خوړلو یا تر روژه ماتولو وروسته دا دعا کړې ده: "أَكَلَ طَعَامَكُمُ الْأَبْرَارُ وَصَلَّتْ عَلَيْكُمُ الْمَلَائِكَةُ... الخ" (یعني نېکو خلکو ستاسي ډوډۍ وخوړه او ملائکو ستاسو لپاره دعا وکړه)، له دې څخه هم معلومیږي چې د صلاة لغوي معنی "دعاء" ده.

**د صلاة اصطلاحي معنـی:** "عبارة عن أركان مخصوصة و أذكار معلومة بشرائط محصورة بصفات معينة"، (یعني د شرطونو د رعایت کولو سره پر متعینو صفتونو [کیفیتونو] د معلومو أذکارو او ځانګړو أرکانو پر ځای کولو ته لمونځ ویل کیږي).

**د لمانځه فرضیت:** لمونځ په کتاب الله، د رسول الله په سنت او اجماع ټولو سره ثابت دی. لکه څرنګه چې په قرآن کریم کې راځي: ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ﴾ [سورة البقرة: ۴۳]، او په بل ځای کې راځي: ﴿حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَىٰ وَقُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ﴾ [سورة البقرة: ۲۳۸]. او له دې څخه بغیر نور هم په ډېرو ځایو کې د لمانځه فرضیت او ارزښت څرګند سوی دی، په حدیث شریف کې هم په ډېر ټینګار سره د لمونځ کولو او د لمونځ د فرضیت حکم سوی دی، لکه څرنګه چې حدیث دی: "إن الله تعالى فرض على كل مسلم ومسلمة في كل يوم وليلة خمس صلوات".

او د لمانځه د اهمیت په اړه د نبي کریم ﷺ دا فرمان دیادوني وړ دی: "الصلاة عماد الدين، فمن أقامها أقام الدين ومن هدمها هدم الدين".

او په اجماع سره د لمانځه ثبوت په دې توګه دی چې د نبي کریم ﷺ له زمانې څخه واخله تر ننه پورې ټوله اُمت د لمانځه په فرضیت او د هغه په مشروعیت باندې متفق دي. (عنایه ج:۱، ص:۲۱۸ - ۲۱۹)

## د فرضیت شرائط

﴿۲۲۰﴾ يُشْتَرَطُ لِفَرْضِيَّتِهَا ثَلَاثَةُ أَشْيَاءَ د لمانځه لپاره درې شیان شرط دي اَلْإِسْلَامُ (۱) اسلام (مسلمان کېدل) وَالْبُلُوْغُ (۲) او بلوغ (بالغ کېدل). وَالْعَقْلُ (۳) او عقل (عاقل کېدل) وَتُؤْمَرُ بِهَا الْأَوْلَادُ لِسَبْعِ سِنِيْنَ او کوچنیانو ته به د لمانځه امر (حکم) کول کیږي د اُوو کالو په عمر کې وَ تُضْرَبُ عَلَيْهَا لِعَشْرٍ او وهل کیږي به پر (پرېښوولو) د لمانځه د لسو کالو په عمر کې بِيَدٍ لَا بِخَشَبَةٍ (وهل کیږي به) په لاس سره، نه په لرګي سره.

**تشریح**: د لمانځه د فرض کېدو لپاره درې شیان شرط دي، یعني لمونځ صرف پر هغه کس فرض کیږي چې په هغه کې مذکوره درې شیان موجود وي، لهذا که په چا کې له دغو دریو یو شی هم موجود نه وي، نو پر هغه لمونځ فرض نه دی: ① مسلمان کېدل، لهذا که څوک کافر وي، نو لمونځ باندې فرض نه دی. ② بالغ کېدل، لهذا پر نابالغه کس لمونځ فرض نه دی. ③ عاقل کېدل، نو پر مجنون (لېوني) لمونځ فرض نه دی. او دلته له فرض څخه مراد فرضِ عین دی.

وتؤمربها إلخ: کله چې هلک یا نجلۍ د اُوو کالو سي (یعني اتم کال یې شروع سي)، نو د هغوی په سرپرست (ولي) باندې واجب دي چې د لمانځه حکم ورته وکړي او لمونځ ور زده وکړي او کله چې د لسو کالو سي (یعني یوولسم کال یې شروع سي)، نو او س که لمونځ پرېږدي، نو سرپرست دي هغوی د لمانځه په پرېښوولو باندې وهي، خو په وهلو کې دي د حدودو خیال ساتي: یو دا چې په لاس سره دي یې وهي، نه په لرګي سره؛ ځکه دا صرف تنبیه ده، سزا نه ده، حال دا چې لرګی او داسې نور په سزا ورکولو کې استعمالول کیږي، دویم دا چې له دریو ضربونو څخه به زائد نه وي او ضرب به هم متوسط وي. او دا ضرب هم واجب دی. (طحطاوي)

**استاذ ته هدایت**: د استاذ او معلم لپاره هم دغه حکم دی چې د تعلیم په سلسله کې د بچي په وهلو کې له حدّ څخه تجاوز کول ښکار نه دي، کنې په حدیث کې دي: چې الله تعالیٰ به (په آخرت کې) په هغه سره وبچي ته قصاص ورکوي (یا په بله ورنا د بچي کسات به څني اخلي).

او بچي ته د شریعت د ټولو حکمونو یعني د نېکو کارو د کولو او له بدو کارو څخه د بچ کېدلو تعلیم له همدې عمر څخه ورکول ښکار دي؛ او دا په دې وجه چې بچی په هغوی عادت سي او په هغه

افعالو سره متخلق سي، او په دې وجه نه چي دغه افعال پر هغه فرض دي، خو روژه دي هغه وخت په نيول کيږي کله چي په بچي کي د روژو نيولو قوت راسي. (شفاء الارواح)

## د لمانځه د وجوب اسباب

﴿۲۲۱﴾ وَأَسْبَابُهَا أَوْقَاتُهَا او د لمانځه (د واجبېدلو) اسباب د لمانځه خپل وختونه دي (يعني چي د لمانځه وخت داخل سي، نو لمونځ هم واجبيږي. په اصل کي خو لمونځ د الله په حکم سره واجبيږي. لېکن انسان د الله حکم نه سي اوريدلی. نو ځکه وخت د هغه سبب وګرځول سو. چي کله وخت راسي نو ګواکي د الله حکم راغلی) وَتَجِبُ بِأَوَّلِ الْوَقْتِ وُجُوبًا مُوَسَّعًا او واجبيږي په اول وخت کي په داسي وجوب سره چي (د وخت تر آخره پوري) ګنجايش (وسعت) ورکول سوی دی (يعني لمونځ خو د وخت په شروع کي واجبيږي، لېکن د دې ګنجايش سته چي په خپل وخت کي يې د وخت تر آخره هسي په يو وخت کي اداء کړي).

**تشريح**: د لمانځه د واجبېدلو سبب د لمانځه خپل وخت دی، يعني کله چي د لمانځه وخت داخل سي، نو هاغه وخت هغه لمونځ پر مکلف واجبيږي، نه تر هغه مخکي.

وتجب: کله چي د لمانځه د واجبېدلو سبب وخت دی، نو ځکه کله چي هم د لمانځه وخت داخل سي، پر مکلف د وخت د شروع په حصه کي لمونځ اداء کول واجبيږي. لېکن که دئ د وخت په اوله حصه کي لمونځ نه وکړي، په مېنځ يا په آخره حصه کي يې وکړي، نو په دې سره هم وجوب اداء کيږي او دې ته قضاء نه ويل کيږي؛ ځکه دا داسي وجوب دی چي د وخت تر آخره پوري د اداء کولو وسعت او ګنجايش ورکول سوی دی.

## د سهار د لمانځه وخت

﴿۲۲۲﴾ وَالْأَوْقَاتُ خَمْسَةٌ او (د لمانځه) وختونه پنځه دي وَقْتُ الصُّبْحِ مِنْ طُلُوْعِ الْفَجْرِ الصَّادِقِ (۱) د سهار وخت (او هغه شروع کيږي) د صبح صادق له راختلو څخه (يا بله ورنا د سهار له سپېلو اسپېده چاودا څخه) إِلَىٰ قُبَيْلِ طُلُوْعِ الشَّمْسِ د لمر راختلو څخه تر لږ مخکي پوري.

**لغات**: ﴿قُبيل﴾ د قَبل تصغير دی: لږ مخکي (څه مخکي)، مثلاً: جاء فلانٌ قُبيل العصر: فلانکی کس د مازيګر تر لمانځه لږ ګړی مخکي راغلی.

**تشريح**: د شپې په آخر کي (سهار ته نژدې) د مشرق پر طرف د آسمان په څنډو کي په اوږدول څه سپينوالی ښکاره سي، همدا صبح کاذب (سپېره ګهيځ) دی. بيا څه ګړی وروسته د آسمان په څنډو کي په پلنوالي سره دغه سپينوالی وغوړيږي (زيات سي)، همدا صبح صادق (روڼ ګهيځ) دی کوم چي

څه په تېزي سره غورېږي چې څه ګړی وروسته ړنا سي. نو له کوم وخت څخه چې دا پلن سپينوالی وليدل سي، له هماغه وخت څخه د سهار د لمانځه وخت شروع کيږي او د لمر راختلو تر وخته پوري باقي پاتيږي.

مصنف رَحِمَهُ الله د سهار د لمانځه وخت تر ټولو څکه مخکي بيان کړی دی چې د سهار د وخت په ابتداء او انتهاء کي هيڅ اختلاف نسته، همدارنګه په دنيا کي حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلام اول د سهار لمونځ کړی وو، همدارنګه د ورځي په لمنځونو کي اول د سهار لمونځ شروع کيږي. (البحر الرائق، فتح الهدايه)

## د ماپښين د لمانځه وخت

﴿۲۲۳﴾ وَوَقْتُ الظُّهْرِ مِنْ زَوَالِ الشَّمْسِ (۲) او د ماپښين وخت (شروع کيږي) د لمر د زائلېدلو (تر سر اوښتو) څخه إِلَى أَنْ يَّصِيْرَ ظِلُّ كُلِّ شَيْءٍ مِثْلَيْهِ أَوْ مِثْلَهُ سِوَى ظِلِّ الْاِسْتِوَاءِ تر دې چې د هر شي سايه دوچنده يا يو چنده سي ماسوا (د شي) له اصلي سايې څخه (يا په بسه ترجمه: ماسوا د استواء د وخت له سايې څخه) وَاخْتَارَ الثَّانِيَ الطَّحَاوِيُّ او دويم قول (يعني چي تر يو چنده ايو مثل پوري د ماپښين وخت پاتيږي) امام طحاوي رَحِمَهُ الله اختيار کړی دی وَهُوَ قَوْلُ الصَّاحِبَيْنِ او همدا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول دی.

**تشريح**: په دې عبارت کي د ماپښين د اول او آخري وخت په هکله بحث سوی دی. د ماپښين په اول وخت کي خو د ائمه وو اتفاق دی، چي زموږ د دريو امامانو (امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله) په نيز د ماپښين اول وخت بالاتفاق تر زوال وروسته شروع کيږي، ځکه چي حضرت جبرئيل عَلَيْهِ السَّلام اول هم په دغه وخت کي نبي ﷺ ته د ماپښين لمونځ په جماعت ورکړی وو.

لېکن د ماپښين د آخري وخت په باره کي د احنافو تر مينځ اختلاف دی، له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه په ټولو رواياتو کي معتبر او مستند روايت دا دی چي کله له اصلي سايې (سيوري) څخه بغير د هر شي سايه دوچنده سي. نو په دغه وخت کي د ماپښين وخت ختميږي او د مازيګر وخت شروع کيږي، د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز چي کله له اصلي سايې څخه بغير د هر شي سايه يو چنده سي، نو بيا د ماپښين وخت ختميږي او د مازيګر وخت شروع کيږي.

## د اصلي سايې (ظل الاستواء) د پېژندګلوۍ طريقه

د زوال پر مهال يعني د غرمې په وخت كې چې كله لمر په ركـ سر باندې ودرېږي (دې وخت ته د استواء وخت وايي)، په دغه وخت كې چې د شيانو كومه سايه وي، دغه سايې ته ظل الاستواء يا اصلي سايه وايي، صاحب د عنايې رَحِمَهُ الله د دې د پېژندګولۍ په باره كې د محمد بن شجاع رَحِمَهُ الله دا قول بيان كړی دی: چې په هواره او برابره ځمكه كې دې (د غرمې پر مهال) يو لرګی ودرول سي يعني په داسې هوار ځای كې چې په هغه كې لږ اندازه هم لاندې يا پورته ځای نه وي، او س چې تر كومه ځايه د دغه لرګي سايه رسيږي، پر هغه ځای دې نښه ولګول سي، نو تر څو چې د لرګي سايه له هغه نښې څخه را كميږي، نو دغه له زوال څخه مخكې وخت دی، لېكن څرنګه چې سايه ودرېږي او په هغه كې هيڅ كمې او اضافه نه راځي، نو بس دغه سايه ظل الاستواء (فيء الزوال) يعني اصلي سايه ده (او همدغه ټيكـ د زوال وخت دی)، عربي عبارت يې داسې دی: أَصَحُّ مَا قِيلَ فِي مَعْرِفَةِ الزَّوَالِ قَوْلُ مُحَمَّدِ بْنِ شُجَاعٍ أَنَّهُ يُغْرَزُ خَشَبَةٌ فِي مَكَانٍ مُسْتَوٍ وَيُجْعَلُ عَلَى مَبْلَغِ الظِّلِّ مِنْهُ عَلَامَةٌ، فَمَا دَامَ الظِّلُّ يَنْقُصُ مِنَ الْخَطِّ فَهُوَ قَبْلَ الزَّوَالِ، فَإِذَا وَقَفَ لَا يَزِيدُ وَلَا يَنْقُصُ فَهُوَ سَاعَةُ الزَّوَالِ الَّتِي هِيَ عِبَارَةٌ عَنْ فَيْءِ الزَّوَالِ. (عنايه ج:۱، ص:۲۲۱)

مثلاً هغه درول سوی لرګی يو ه لوېشت وو او ټيكـ د زوال په وخت كې (يعني كله چې لمر په ركـ سر باندې ودرېدی، په دې وخت كې) د هغه سايه دوې ګوته سوه، نو دغه دوې ګوتې اصلي سايه يعني ظل الاستواء دی، او كله چې د دې لرګي سايه يو ه لوېشت او څلور ګوتې سوه. نو دغه يو مثل (يو چندې) ده او كله چې دوې لوېشتې او څلور ګوتې سوه نو دا مثلين (دوچندې) سوه.

فايده: دا تفصيل محض د طالبانو د افادې لپاره لېكل سوی دی، كنې نن سبا كوم چې هر طرف ته د ګړيانو، جنترياتو او نقشو بازار ګرم دی او هر ځای د فن ماهرين او معتبر مفتيان سته. نو د هغوی مطابق په عمل كولو كې سهولت او آساني ده.



## په عربستان كې د مازيګر لمونځ له دوچندې (مثلين) څخه مخكې كول

**مسئله:** د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د راجح قول مطابق تر دوچندې پوري د ماپښين وخت پاتيږي او تر هغه وروسته د مازيګر وخت شروع كيږي (لكه اوس چې ذكر سوه)، لهذا تر دوچندې مخكې د مازيګر لمونځ جائز نه دی، پر همدې د احنافو فتویٰ ده او پر همدې دلته عمل كيږي. او پاته سو د صاحبينو او امام طحاوي او د ائمه ثلاثه وو رَحِمَهُمُ الله په نيز د ماپښين وخت تر يو چندې پوري باقي پاتيږي او تر هغه وروسته د مازيګر وخت شروع كيږي او د مازيګر د وخت شروع كېدلو

لپاره د دوچندۍ پوره کېدلو ته د انتظار کولو ضرورت نشته. او همدا د امام صاحب رَحِمَهُ الله یو روایت دی، خو پر دې داحنافو فتویٰ نه ده.

لنډه دا چې داحنافو اصل مسلک خو همدا دی چې له دوچندۍ څخه مخکې د مازیګر لمونځ جائز نه دی، خو په عربستان کې په مسجد حرام او مسجد نبوي او په نورو ټولو مسجدونو کې د مازیګر لمونځ تر یوچندۍ وروسته سمدستي کول کیږي، هلته دوچندۍ ته انتظار کول مشکل دي. که چیرې حنفي مذهبه خلک خپل وخت ته انتظار کوي، نو هلته هیڅکله په جماعت سره لمونځ نه سي کولای، لهذا د صاحبینو او نورو په قول باندې په عمل کولو سره په عربستان کې تر یو چندۍ وروسته د اهل عربستان سره یو ځای په جماعت لمونځ کول صحیح دي. او د جماعت له فضیلت څخه محرومېدل مناسب دي، بعضو اهل فتاویٰ همدې خبرې ته ترجیح ورکړې ده. (ایضاح المسالک ص: ۱۷۲، بحوالهٔ انوار الایضاح)

## د مازیګر د لمانځه وخت

﴿۲۲۴﴾ وَوَقْتُ الْعَصْرِ مِنِ ابْتِدَاءِ الزِّيَادَةِ عَلَى الْمِثْلِ أَوِ الْمِثْلَيْنِ (۳) او د مازیګر وخت (شروع کیږي) پر یو چنده یا دوچنده د (سایې) زیاتېدلو له شروع څخه (یعني مازیګر هغه وخت شروع کیږي کله چې سایه تر یوه چند یا دوو چندو (علی اختلاف المذهبین) زیاته سي) إِلَى غُرُوْبِ الشَّمْسِ تر لمر لوېدلو پوري.

**تشریح:** د مازیګر وخت د ماپښین دوخت تر ختمېدلو وروسته شروع کیږي، هغه که د ماپښین وخت پر دوچندۍ ختم سي لکه د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نیز، او که پر یوچندۍ ختم سي لکه د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز، او د مازیګر وخت د لمر پر لوېدلو ختمیږي، لیکن کله چې د لمر رنګ بدل سي او سور غوندي سي، نو په دې وخت کې د مازیګر لمونځ کول مکروه دي. لهذا تر لمر ژړېدلو مخکې لا د مازیګر لمونځ کول پکار دي، خو بیا هم که تر لمر ژړېدلو وروسته او تر لمر لوېدلو مخکې لمونځ وکړی سي، نو لمونځ اداء دی، قضاء نه دی، ځکه اوس هم وخت پاته دی.

## د ماښام د لمانځه وخت

﴿۲۲۵﴾ وَالْمَغْرِبُ مِنْهُ (۴) او د ماښام وخت له لمر لوېدلو څخه (شروع کیږي) إِلَى غُرُوْبِ الشَّفَقِ الْأَحْمَرِ د شفقِ احمر تر لوېدلو (غائبېدلو) پوري عَلَى الْمُفْتَى بِهٖ پر هغه قول چې په هغه باندې فتویٰ ورکول سوې ده (د مفتیٰ بهٖ قول مطابق)

**لغات:** منه: د "د" ضمیر "غروب الشمس" ته راجع دی، ﴿الشَّفَقِ﴾ تر لمر لوېدلو وروسته د آسمان پر څنډو غوړېدلې سورخي (سوروالی)، شفق پر دوه قسمه دی: شفق احمر، شفق ابیض. ① شفق احمر هغه سوروالی دی کوم چي تر لمر لوېدو وروسته د مغرب پر طرف د آسمان په څنډو کي راسي، ② شفق ابیض هغه سپینوالی کوم چي تر شفق احمر وروسته د آسمان په څنډو کي راسي. په بله وینا: تر لمر لوېدو وروسته اول د آسمان په څنډو کي سورخي راځي، بیا سپینه رڼا غوړېږي، چي هغه ته بیاضِ مستطیر وایي، تر دې وروسته سپینه اوږده رڼا ښکاره کېږي چي هغه ته بیاضِ مستطیل وایي او تر دې وروسته بیا د آسمان پر څنډو مکمل تیاره وغوړېږي، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز تر سورخي وروسته چي کوم بیاضِ مستطیر راځي، تر هغه پوري د ماښام وخت دی، ځکه چي په سهار کي هم بیاضِ مستطیر د سهار وخت دی، نو په ماښام کي به هم د بیاضِ مستطیر د ماښام وخت وي، ځکه چي دواړه یو ډول دي.

**تشریح:** کله چي لمر ولوېږي، نو د ماښام د لمانځه وخت شروع کېږي او د شفق تر غائبېدلو پوري پاتېږي، د شفق په تعیین کي د علماؤ اختلاف دی، د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز له شفق څخه مراد شفق احمر دی یعني د شفق احمر پر غائبېدلو د ماښام وخت ختمېږي (یعني تر لمر لوېدو وروسته تقریباً درې پاوه، تر دې وخته پوري د ماښام وخت پاتېږي)، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له شفق څخه مراد شفق ابیض دی (یعني تر لمر لوېدو وروسته تقریباً پاو بالا یوه ګېنټه [پاو بالا یو ساعت])، مصنف رَحِمَهُ الله د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله قول ته مفتیٰ به ویلي دي، لیکن صاحب صاحب د فتح القدیر او صاحب د بحر الرائق او علامه طحطاوي رَحِمَهُمُ الله د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول مفتیٰ به او راجح ګرځولی دی او په آخر کي علامه طحطاوي رَحِمَهُ الله فرمایلي دي: "ولا يلتفت إلى جعل بعض المشائخ الفتوى على قول الصاحبين". (طحطاوي ص: ۹۵)

## د ماخوستن د لمانځه وخت

﴿۲۲۶﴾ وَالْعِشَاءِ وَالْوِتْرِ مِنْهُ (۵) او د ماخوستن او وترو وخت د شفق له لوېدو څخه (شروع کېږي) إِلَى الصُّبْحِ تر سهار (صبح صادق) پوري.

**لغات:** منه: د دې ضمیر "شفق" ته راجع دی، أى من غروب الشفق على الاختلاف الذى تقدم.

**تشریح:** یعني د شفق له غائبېدو څخه د ماخوستن وخت شروع کېږي او تر صبح صادق (رڼا کېدو) پوري پاتېږي.

## د وترو د لمانځه وخت

﴿۲۲۷﴾ وَلَا يُقَدَّمُ الْوِتْرُ عَلَى الْعِشَاءِ او نه سي مخکي کول کېدای وتر د ماخوستن پر لمانځه لِلتَّرْتِيبِ اللَّازِمِ د هغه ترتیب په وجه کوم چي لازم دی (یعني د دوی په مینځ کي د ترتیب لازمېدلو په وجه).

**تشريح**: د وترو اول وخت د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د ماخوستن تر لمانځه وروسته دی او آخري وخت يې تر صبح صادق (طلوع فجر) پوري دی او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د ماخوستن د لمانځه او د وترو وخت يو دی، لېکن د ترتیب واجبېدلو په وجه وتر د ماخوستن تر لمانځه مخکي کول صحیح نه دي، لېکن که څوک سهواً وتر مخکي اداء کړي او د ماخوستن لمونځ تر هغه وروسته اداء کړي، نو هیڅ حرج نسته او د ماخوستن لمونځ راګرځول ضروري نه دي. خو وتر دي راوګرځوي، دا د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله مسلک دی، لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز اعاده نسته. (انوار الایضاح)

﴿۲۲۸﴾ وَمَنْ لَّمْ يَجِدْ وَقْتَهُمَا او څوک چي د دې دواړو (ماخوستن او وترو) وخت نه مومندي لَمْ يَجِبَا عَلَيْهِ نو دا دواړه پر هغه نه واجبېږي.

**تشريح**: مسئله دا ده که څوک په داسي ملک او علاقه کي اوسېږي چي هلته د مانبام تر وخت وروسته د ماخوستن او وترو وخت نه راځي یعني د شفق تر غائبېدلو مخکي سمدستي د سهار وخت راځي. مثلاً په "بلغار" ښار او د یورپ د "فِنْلَنْدَا" (finlad) انفِنلېنډ اهیواد په شمال کي همداسي کېږي چي د کوچنیو شپو په ورځو یعني په ګرمۍ کي ورځ ۲۳ ساعته (۲۳ ګینټې) وي او صرف د یوه ساعت (یوې ګېنټې) لپاره لمر لوېږي، نو هلته په دې ورځو کي د شفق تر غائبېدلو مخکي لا سهار شروع کېږي؛ لهذا د ماخوستن او د وترو وخت نه راځي (یا مثلاً د بعضي ملکو په بعضي علاقو کي څو ورځي لمر نه لوېږي). نو اوس پر هغو د ماخوستن او وترو لمونځ واجبېږي. که نه؟. په دې باره کي د علماؤ اختلاف دی، بعضي فرمايي چي پر هغو دا دواړه لمونځونه نه واجبېږي؛ ځکه د لمانځه د فرضیت سبب د هغه خپل وخت دی او کله چي يې وخت راغلی نه دی. نو واجبېږي هم نه. مصنف رَحِمَهُ الله همدا غه قول اختیار کړی دی (او ډېرو فقهاؤ همدغه قول راجح ګرځولی دی)، بعضي حضرات فرمايي چي دواړه لمونځونه دي کوي (علامه شلبي او صاحب د فتح القدير همدا قول اختیار کړی دی او همدا مفتیٰ به دی). نو د دې قول مطابق هلته د وخت معلومولو لپاره دوې طریقې دي:

①... په عامو ورځو کې چې څومره وخت تر لمر لوېدلو وروسته هلته د ماخوستن وخت شروع کيږي، تر هغومره وخت وروسته دې دوارو لمونځونه کوي، مثلاً په عامو ورځو کې تر لمر لوېدلو يو نيم ساعت وروسته د ماخوستن وخت شروع کېدي، نو په دغه ورځو کې دې هم تر لمر لوېدلو وروسته د ماخوستن او وترو لمونځ کوي، که څه هم سهار سوی وي.

②... يا هغه ځای ته په نژدې ښار او هيواد کې چې کله د ماخوستن وخت داخليږي، پر هغه دې قياس کوي او دا لمونځونه دې کوي.

د دوارو قولونو تصحيح ثابته ده. احتياط په همدې کې دی چې د ماخوستن او وترو لمونځ د سهار تر لمانځه مخکې وکړي. (شفاء الارواح بتغير)



## چيرې چې شپږ مياشتې ورځ او شپږ مياشتې شپه وي، هلته څه حکم دی؟

**مسئله**: چيرې چې ورځ او شپه شپږ، شپږ مياشتې اوږديږي، هلته دې په اندازه لګولو سره ټول لمونځونه کول کيږي، يعني په څلورويشت ساعته کې دې پنځه لمونځونه د مُروجه فرق مطابق پوره کول کيږي. (در مختار ج:۲، ص:۱۸، کتاب المسائل ص:۲۳۲)

## د دوو فرضونو د جمع کولو حکم

﴿۲۲۹﴾ وَلَا يَجْمَعُ بَيْنَ فَرْضَيْنِ فِيْ وَقْتٍ بِعُذْرٍ او نه به جمع کوي دوه فرضې لمنځونه په يوه وخت کې د يو عذر په وجه إِلَّا فِيْ عَرَفَةَ لِلْحَاجِّ مګر په عرفات کې د حاجي لپاره (دا جمع جائز ده) بِشَرْطِ الْإِمَامِ الْأَعْظَمِ وَالْإِحْرَامِ دلوی امام او احرام په شرط سره (يعني په دې شرط چې د حج امير امام به موجود وي او جمع کونکي به محرم وي (احرام به يې تړلی وي)) فَيَجْمَعُ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ جَمْعَ تَقْدِيْمٍ نو جمع کوي به د ماپښين لمونځ او د مازيګر لمونځ د جمع تقديم په توګه (چې د مازيګر لمونځ به له خپل وخت څخه رامقدم کوي ارامخته کوي او د ماپښين د لمانځه سره به يې د ماپښين په وخت کې اداء کوي، نو دې جمع ته "جمع تقديم" ځکه وايي چې په دې کې د مازيګر لمونځ له خپل وخت څخه مقدم امخکې اکول کيږي).

**تشريح**: د هيڅ عذر په وجه هم دوه فرضې لمنځونه په يوه وخت کې جمع کول (يو ځای اداء کول) جائز نه دي، نو بېله عذره خو بيخي جائز نه دي، مثلاً که د مرض يا سفر په سبب د ماپښين په وخت کې د ماپښين تر لمونځ کولو وروسته د مازيګر لمونځ هم وکړي، نو نه صحيح کيږي؛ ځکه د

مازیګر لمونځ تر وخت مخکې اداء کړل سو، او دې ته جمع حقیقي وایي، او بل جمع صوري ده، هغه داده چې د یو عذر مثلاً د سفر یا مرض په وجه د ماپښین لمونځ د وخت په آخر کې وکړي او د مازیګر لمونځ د وخت په اول کې وکړي. نو په دې کې څه حرج نسته؛ ځکه چې دواړه لمونځه په خپل وخت کې اداء کړل سوه. (شفاء الارواح)

إلا في عرفة إلخ: لیکن د عرفات او مزدلفه حکم له پورتني حکم څخه جلا دی. په عرفات کې د ماپښین او مازیګر د لمانځه حکم دا دی چې د مازیګر لمونځ دې د ماپښین په وخت کې د ماپښین د لمانځه سره یو ځای اداء کړل سي، او دغه جمع ته جمع تقدیم وایي. د امام صاحب رحمه الله په نیز جمع تقدیم په دریو شرطونو سره جائز ده ① یو دا چې امام یا د هغه نائب به وي (یعني کوم چې د حج امیر او امام وي. د هغه شاته به لمونځ کوي کوم ته چې مصنف رحمه الله امام اعظم ویلي دي. لهذا که څوک په خپله خیمه کې لمونځ کوي، نو جمع بین الصلاتین نه سي کولای). ② دویم دا چې دواړه لمونځونه به د احرام په حالت کې وي او حاجي به وي. ③ دریم دا چې د عرفات میدان او د عرفات ورځ به وي (لهذا له عرفات څخه بهر جمع بین الصلاتین نه سي کولای). له دغه دریو شرطونو څخه که یو شرط هم موجود نه سي. نو جمع تقدیم نه جائز کیږي، د صاحبینو رحمهما الله په نیز صرف احرام شرط دی. صاحب د درمختار د صاحبینو رحمهما الله مذهب ته راجح ویلي دي، لیکن علامه شامي رحمه الله فرمایي چې دا به یې د دلیل په اعتبار سره راجح ورته ویلي وي. کنې په متونو وغیره کې د امام صاحب رحمه الله مذهب راجح ګرځول سوی دی. (انوار الایضاح، ثمرة النجاح)

## جمع تاخیر

﴿۲۳۰﴾ وَيُجْمَعُ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ بِمُزْدَلِفَةَ او جمع کوي به د ماښام او ماخوستن لمونځ په مزدلفه کې (او دې ته جمع تاخیر وایي. ځکه په دې کې د ماښام لمونځ له خپل وخت څخه وروسته (مؤخر) کول کیږي او د ماخوستن په وخت کې د ماخوستن د لمانځه سره اداء کول کیږي) وَلَمْ يَجُزِ الْمَغْرِبُ فِي طَرِيقِ مُزْدَلِفَةَ او جائز نه دی د ماښام لمونځ د مزدلفې په لاره کې.

**تشریح**: د عرفات په ورځ د حاجیانو لپاره د ماښام او ماخوستن د لمانځه وخت مزدلفې ته له رسېدلو څخه وروسته دی یعني کله چې حاجیان مزدلفې ته ورسیږي، نو ځکه په عرفات یا د مزدلفې په لاره کې د ماښام لمونځ کول جائز نه دي، که څه هم د ماښام وخت وځي. او په مزدلفه کې به د ماښام لمونځ او د ماخوستن لمونځ د ماخوستن په وخت کې په یوه اذان او او یوه اقامت سره اداء کوي او دلته د امام

یا نائب شرط نسته، لهذا که څوک د مزدلفې په لاره کي یا په عرفات کي د ماښام لمونځ وکړي، نو د هغه لمونځ نه صحیح کیږي (نور تفصیل به په کتاب الحج کي بیان سي). (انوار الایضاح. شفاء الارواح)

## د سهار د لمانځه مستحب وخت

﴿۲۲۱﴾ وَيُسْتَحَبُّ الْإِسْفَارُ بِالْفَجْرِ لِلرِّجَالِ او مستحب دي د سهار لمونځ په رڼا کي کول د خلکو لپاره (یعني په داسي وخت کي د سهار لمونځ کول چي تاریکه لیري سي او رڼا به وغوړیږي).

**لغات:** ﴿إسفار﴾ د افعال د باب مصدر دی: ښه روښانه کېدل، (رڼا کېدل) روښانه کول (رڼا کول)

**تشریح:** د لمانځه د اصل وختونو له بیان څخه وروسته اوس له دې ځایه مستحب وختونه بیانوي. د خلکو لپاره مستحب دي چي د سهار لمونځ داسي وخت شروع کړي چي رڼا ښه وغوړیږي او تر لمر راختلو دومره مخکي لمونځ اداء کړل سي چي که بالفرض بیا د لمونځ راګرځولو ته ضرورت پېښ سي، نو چي دومره وخت لا پاته وي چي بیا اودس هم وکړل سي او لمونځ د سنت قرائت مطابق هم اداء کړل سي (همدا د إسفار مطلب دی اعنایه). لهذا تر لمر راختلو کم از کم ۳۰ دقیقې مخکي دي د سهار لمونځ اداء کړل سي. او د ښځو لپاره همېشه د سهار لمونځ په اول وخت کي کول مستحب دي. او په نورو لمنځونو کي غوره دا ده چي د خلکو د جماعت انتظار وکړي، کله چي د خلکو جماعت وسي. بیا دي لمونځ وکړي. (شفاء الارواح)

## د روژې په میاشت (رمضان) کي د سهار لمونځ وختي کول

**مسئله:** د روژې په میاشت کي د سهار لمونځ تر پېشلمي څه وخت وروسته سمدستي اداء کول افضل دي؛ ځکه د روژې په میاشت کي خلک د پېشلمي لپاره وختي ۱پورته کیږي. نو که تر إسفاره پوري د جماعت لمونځ وځنډول سي، نو خلک به یا تنها، تنها لمنځونه وکړي او بیده به سي، یا د لمونځ کولو څخه بغیر د خوب د غلبې په وجه به ګردسره لمونځ څني فوت سي. نو ځکه په تیاره کي اداء کول افضل دي؛ ځکه دا په جماعت کي د تکثیر ذریعه ده. په تأخیر کولو کي د خلکو د کمېدلو خطره سته. (تحفة الالمعي ج:۱، ص:۴۴۸، معارف السنن ج:۲، ص:۳۹)

## د ماپښین مستحب وخت

﴿۲۲۲﴾ وَالْإِبْرَادُ بِالظُّهْرِ فِي الصَّيْفِ او په ګرمۍ (دوبي) کي د ماپښین لمونځ په یخ وخت کي کول (یعني د ګرمۍ په موسم کي د ماپښین لمونځ ځنډول او په داسي وخت کي کول مستحب دي چي ګرمي څه کمزوري سي) وَتَعْجِيلُهُ فِي الشِّتَاءِ او په ژمي کي د ماپښین لمونځ وختي کول (ژر اداء کول) مستحب دي) إِلَّا فِي يَوْمِ غَيْمٍ مګر د وریځي په ورځ فَيُؤَخَّرُ فِيهِ نو په هغه ورځ به د ماپښین لمونځ ځنډول کیږي.

**لغات**: ﴿إبراد﴾ د افعال د باب مصدر دی: په یخوالي، په یخ کي داخلېدل. ﴿الصَّيف﴾ گرمي، دوبي، د گرمی موسم، جمع: صُيُوف. ﴿الشِّتَاء﴾ ژمی، د یخ موسم، جمع: أَشْتِيَة.

**تشریح**: د گرمی په موسم کي د ماپښین لمونځ ځنډول مستحب دي، یعني باید په اول وخت کي اداء نه کړل سي، بلکي دومره وځنډول سي چي گرمي څه کمزوري او کمه سي، لېکن د ژمي په موسم کي د ماپښین لمونځ په خپل اول وخت کي اداء کول مستحب دي، خو په کومه ورځ چي پر آسمان وريځ غوړېدلې وي، نو په هغه ورځ يې ځنډول مستحب دي؛ ځکه دا خطره سته چي له وخت څخه مخکي اداء نه سي (خو څرنګه چي اوس د ګړیو، ساعتونو دور دی او هر وخت د ګړی (ساعت) په ذريعه ټيک معلومېدلای سي، نو ځکه هر لمونځ به د ګړی مطابق پر خپل ټاکلي وخت اداء کول کيږي. د وريځي وغيره په وجه د ځنډولو يا مخکي کولو ضرورت نسته). او دا د تأخير او تعجيل حکم د ټولو لپاره برابر دی يعني برابره ده انسان په کور کي لمونځ کوي او که په مسجد کي، په سفر کي وي او که په حضر کي.

**يادونه**: په کوم ځای کي چي په ګرمي کي هم د ماپښين لمونځ په خپل اول وخت کي اداء کول کيږي (لکه په بازار او بعضي ځايونو کي چي د ماپښين لمونځ پره يوه، يوه نيمه بجه درول کيږي). نو هلته د مستحب وخت لپاره جماعت پرېښول جائز نه دي. او د جمعې د لمانځه لپاره مستحب وخت د ماپښين د لمانځه په څېر دی. لېکن فتوىٰ پر دې ده چي د جمعې لمونځ همېشه په اول وخت کي کول مستحب دي، همدا د جمهورو مذهب دی. (شفاء الارواح بحوالة طحطاوي و عمدة)

## د مازيګر مستحب وخت

﴿۲۲۳﴾ وَتَأْخِيرُ الْعَصْرِ مَالَمْ تَتَغَيَّرِ الشَّمْسُ او د مازيګر لمونځ ځنډول (مستحب دي) تر هغه وخته پوري چي لمر تغير نه وي کړی (بدلون نه وي پکښي راغلی) وَتَعْجِيلُهُ فِيْ يَوْمِ الْغَيْمِ او د وريځي په ورځ د مازيګر لمونځ وختي کول (ژر اداء کول مستحب دي).

**تشریح**: د مازيګر لمونځ برابره ده يخ وي او که ګرمي وي په هر موسم کي ځنډول مستحب دي تر هغه وخته پوري چي لمر متغير سوی نه وي، يعني دومره تاخير دي نه کوي چي د لمر ټکی سره سي او رڼايي کمزوري او ژړه سي په دې توګه چي پر لمر سترګي نه برېښي؛ ځکه په دې وخت کي د مازيګر لمونځ مکروه کيږي. او د وريځي په ورځ د مازيګر لمونځ ژر اداء کول مستحب دي؛ ځکه په دې ورځ دا بېره سته چي په مکروه وخت کي اداء نه سي.

## د ماښام د لمانځه مستحب وخت

﴿۲۲۴﴾ وَ تَعْجِيْلُ الْمَغْرِبِ إِلَّا فِيْ يَوْمِ غَيْمٍ او د ماښام لمونځ وختي کول (مستحب دي) مګر دوريځي په ورځ فَيُؤَخَّرُ فِيْهِ نو په هغه ورځ به ځنډول کيږي.

**تشريح:** ټوله امامان پر دې متفق دي چې د ماښام لمونځ تر لمر لوېدلو وروسته سمدستي اداء کول پکار دي، همدا مستحب ده. بېله عذره تاخير کول مکروه دي. يعني د اذان او اقامت تر مينځ دې څه فصل نه کوي ماسوا له سپکي ناستې يا سکوت څخه. خو دوريځې په ورځ څه په تاخير سره کول مستحب دي، د دې لپاره چې له وخت څخه د مخکې اداء کېدلو شبهه پاته نه سي.

## د روژې په مياشت کي د ماښام لمونځ څه ځنډول

**مسئله:** د روژې په مياشت کي که د ماښام لمونځ تر آذان لس، پنځلس دقيقې وروسته اداء کړل سي، نو څه حرج نسته. خو دا خبره ياد ساتل پکار دي چې په کومو ځايو کي چې دا رواج دی چې تر لمر لوېدلو وروسته روژه مات کوي او له فارغېدو څخه وروسته آذان کيږي او تر هغه وروسته سمدستي جماعت درول کيږي، دا غلطه ده. صحيح طريقه دا ده چې آذان پر خپل وخت وسي او بيا روژه مات وسي او لس يا پنځلس دقيقې وروسته د ماښام لمونځ اداء کړل سي.

## د ماخوستن د لمانځه مستحب وخت

﴿۲۲۵﴾ وَتَأْخِيْرُ الْعِشَاءِ إِلٰى ثُلُثِ اللَّيْلِ او د ماخوستن لمونځ د شپې تر درېيمي حصې پوري ځنډول (مستحب دي) وَ تَعْجِيْلُهُ فِيْ الْغَيْمِ او دوريځي په ورځ يې وختي کول (مستحب دي).

**تشريح:** د ماخوستن لمونځ په هر موسم کي د شپې تر درېيمي حصې پوري ځنډول مستحب دي، کله چې څه عارض نه وي مثلاً د جماعت کمېدلو بېره نه وي او که دا بېره وي مثلاً د ګرمی په موسم کي شپې ډېري کوچني وي او خلګ ژر بيديږي. نو په دې صورت کي د ماخوستن لمونځ ژر اداء کول مستحب دي چې په جماعت کي کمي را نه سي. او تر نيمي شپې پوري ځنډول روا دي يعني چې له نيمايي شپې څخه مخکي اداء کړل سي. او تر نيمي شپې وروسته بېله عذره د

ماخوستن لمونځ كول مكروه دي او دبعضو په نيز د شپې تر دريمې حصې وروسته د ماخوستن لمونځ كول مكروه دي.

او د وريځې په ورځ د ماخوستن لمونځ ژر اداء كول مستحب دي، ځكه په ځنډولو كې يې د جماعت كمېدلو خطره سته چې خلكو ته به د باران او داسې نورو بېړه وي.

**يادونه**: د ماخوستن تر لمانځه وروسته كه د ښو او ديني خبرو په هكله بحث او ګپه وكړل سي، نو علماؤ اجازه وركړې ده، لكه په حديث سره چې ثابت دي چې يو ځل نبي ﷺ د حضرت ابو بكر ؓ سره د ماخوستن تر لمانځه وروسته د مسلمانانو د يو امر په هكله بحث او ګپه وكړه. [ترمذي شريف، باب الرخصة في السمر بعد العشاء، حديث شمېره: ۱۶۹]

## د وترو مستحب وخت

﴿۲۳۶﴾ وَتَأْخِيرُ الْوِتْرِ إِلَى آخِرِ اللَّيْلِ او وتر د شپې تر آخري حصې پوري ځنډول (مستحب دي) لِمَنْ يَثِقُ بِالْاِنْتِبَاهِ د هغه كس لپاره چې په وېښېدلو باور لري (يعني پر ځان يې پوره اعتماد او باور وي چې د شپې په آخر كي را وېښېدلای سم).

**لغات**: ﴿يثق﴾ د ضرب د باب مضارع ده: باور كول، بروسه لرل.

**تشريح**: د وترو لمونځ ځنډول هغه وخت مستحب دي چې څوک پر ځان اعتماد او باور لري چې د شپې په آخر كي به را پورته سم او تهجد به وكړی سم، نو د هغه په حق كي مستحب دا ده چې وتر له تجهدو څخه وروسته د شپې په آخر كي اداء كړي، خو كه هغه په خپل وېښېدلو پوره اعتماد او باور نه لري، نو بيا د هغه لپاره تر بيدېدو مخكي وتر اداء كول مستحب دي. (انوار الايضاح)



# فَصْلٌ (فِي الْأَوْقَاتِ الْمَكْرُوهَةِ)

(دا) فصل (د مکروه وختونو په بیان کي) دی

## د مکروه وختونو بیان

﴿۲۲۷﴾ ثَلَاثَةُ أَوْقَاتٍ درې وختونه داسي دي لَا يَصِحُّ فِيهَا شَيْءٌ مِنَ الْفَرَائِضِ وَالْوَاجِبَاتِ الَّتِيْ چي صحیح نه دي په دوی کي هیڅ شی له فرضو او (یا) له هغه واجبو څخه لَزِمَتْ فِي الذِّمَّةِ قَبْلَ دُخُوْلِهَا کوم چي د دې وختونو تر داخلېدو مخکي (پر انسان) لازم سوي وي عِنْدَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ إِلَى أَنْ تَرْتَفِعَ (یو) د لمر راختلو په وخت کي تر دې چي هغه پورته سي وَعِنْدَ اسْتِوَائِهَا إِلَى أَنْ تَزُوْلَ او (دوېم) د لمر د سیده درېدلو په وخت کي (چي د آسمان پر مېنځ ودرېږي) تر دې چي زوال وکړي (د آسمان له مېنځ څخه واوړي) وَعِنْدَ اصْفِرَارِهَا إِلَى أَنْ تَغْرُبَ (۳) او د لمر د ژړېدلو په وخت کي تر دې چي ولوېږي.

**لغات:** ﴿استواء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: سیده کېدل، برابرېدل. ﴿اصفرار﴾ د إفعلال د باب مصدر دی: ژړېدل (ژړ کېدل).

**تشریح:** د مستحبو وختونو له بیان څخه وروسته اوس په دې فصل کي مکروه وختونه بیانوي.

مکروه وختونه درې دي: ① د لمر راختلو څخه د لمر تر راپورته کېدو پوري. تر څو چي د لمر پر ټکی د انسان سترګي نه برېښي، یا په بله وینا تر دې چي یوه نېزه راپورته سي (کوم چي اندازاً شل دقیقې وخت کېږي).

② د استواء په وخت کي، یعني کله چي لمر بالکل په رګ سر باندي سیده ودرېږي. او د استواء علامت دا دی چي د شیانو سایه ودرېږي او تر دې څه ګړی وروسته چي لمر له رګ سر څخه د مغرب وطرف ته کوږ سي. نو اوس مکروه وخت ختمېږي (اندازاً پنځه لس دقیقې).

③ او کله چي لمر سور غوندي سي او پر هغه سترګي نه برېښي. له هغه وخت څخه تر لمر لوېدلو پوري دا هم مکروه وخت دی (اندازاً شل دقیقې).

د دغو دريو وختونو له راتللو څخه مخکې چې کوم لمونځ پر ذمه لازم سوی وي، هغه په دې دريو وختونو کې کول صحيح نه دي، مثلاً د سهار لمونځ کوم چې د مکروه وخت (لمر راختلو) څخه مخکې لازم سي، نو اوس هغه په مکروه وخت کې شروع کول او اداء کول صحيح نه دي، همدارنګه که د طواف دوه رکعته او سجدهٔ تلاوت په داسې وخت کې لازم سي کوم چې مکروه نه وي، نو اوس هغوی په مکروه وخت کې اداء کول صحيح نه دي، که چيرې په مکروه وخت کې يې شروع کړي، نو ګرد سره شروع کول يې نه صحيح کيږي.

﴿۲۲۸﴾ وَيَصِحُّ أَدَاءُ مَا وَجَبَ فِيهَا مَعَ الْكَرَاهَةِ او صحيح دي (په دې دريو وختونو کې) اداء کول د هغه عباداتو کوم چې په همدې وختونو کې واجب سي د کراهت سره كَجَنَازَةٍ حَضَرَتْ لکه جنازه چې (په دې وختونو کې) حاضره سي وَسَجْدَةِ آيَةٍ تُلِيَتْ فِيهَا او (لکه) سجدهٔ د آيت کوم چې په دې وختونو کې تلاوت کړی سي كَمَا صَحَّ عَصْرُ الْيَوْمِ عِنْدَ الْغُرُوبِ مَعَ الْكَرَاهَةِ لکه څرنګه چې صحيح دي د همدې ورځې د مازيګر لمونځ د لمر لوېدو په وخت کې د کراهت سره.

**لغات**: فيها: د ضمير مرجع په مخکنې عبارت کې "ثلاثة أوقات" دي.

**تشريح**: فرمايي چې کوم لمونځ او عبادت چې له مخکينې دريو وختونو څخه په يو وخت کې لازم سي، هغه په دې وختونو کې هم اداء کيږي، لېکن په دې وختونو کې د هغه اداء کول مکروه تحريمي دي. مثلاً که په مکروه وخت کې جنازه حاضره سي او په هغه مکروه وخت کې د جنازې لمونځ شروع کړي او اداء کړي، نو لمونځ يې کيږي خو مکروه تحريمي به وي، لېکن په طحطاوي کې يې د بحر او داسې نورو په حواله سره ليکلي دي چې که په دغه وختونو کې جنازه حاضره سي. نو بېله کراهته يې لمونځ جائز بلکې افضل دی او تاخير مکروه دی.

يا مثلاً که څوک په مکروه وخت کې دننه د سجدې آيت تلاوت وکړي او په هماغه وخت کې سجده وکړي، نو اداء کيږي (جائز کيږي)، خو مکروه تحريمي به وي، او په عمدة الفقه يې کې دې ته مکروه تنزيهي ويلي دي او غوره او افضل دا ده چې ورپې ځنډوي تر دې چې د کراهت وخت ولاړ سي.

كما صحّ: په دې سره دا بيانوي چې څرنګه چې د لمر لوېدو پر مهال د هغه ورځې د مازيګر لمونځ اداء کول جائز دي. خو دومره ځنډول يې مکروه تحريمي دي، همداسې د جنازې لمونځ او سجدهٔ

تلاوت کوم چې په مکروه وخت کې لازم سوي وي، هغوی په مکروه وخت کې اداء کول جائز دي، خو مکروه تحریمي دي.

## په مکروه وختونو کې د نفلي لمانځه حکم

﴿۲۲۹﴾ وَالْأَوْقَاتُ الثَّلَاثَةُ يُكْرَهُ فِيهَا النَّافِلَةُ كَرَاهَةَ تَحْرِيمٍ او په (دغه مذکوره) درېو وختونو کې نفلي لمونځ (هم) مکروه تحریمي دی وَلَوْ كَانَ لَهَا سَبَبٌ که څه هم د هغه نفلو لپاره یو سبب وي (یعني که څه هم هغه داسې نفلي لمونځ وي چې په یو سبب سره پر ذمه واجب سوی وي) كَالْمَنْذُورِ وَرَكْعَتَيِ الطَّوَافِ لکه نذر کړی سوی (لمونځ) او (لکه) د طواف دوه رکعته.

**لغات:** لها: د ضمیر مرجع نَافِلَةٌ دی.

**تشریح:** په مکروه وختونو کې که د نفلي لمانځه نیت وتړي، نو دا نفل د هغه پر ذمه واجبېږي. او س غوره دا ده چې په مکروه وخت کې د نفلو نیت مات کړي او وروسته د هغه قضا راوګرځوي. او که په هغه وخت کې لمونځ مات نه کړي، نو ګناهکاره کېږي. خو وروسته یې د قضاء راوړلو ضرورت نسته. همدارنګه هغه نفلونه چې هغوی لره څه سبب وي مثلاً د تحیة المسجد او تحیة الوضوء نذر کړی سوی لمونځ او د طواف دو رکعتیز لمونځ، دا ټول هم ممنوع دي.

## تر صبح صادق وروسته د نوافلو ممانعت

﴿۲۳۰﴾ وَيُكْرَهُ التَّنَفُّلُ بَعْدَ طُلُوعِ الْفَجْرِ بِأَكْثَرَ مِنْ سُنَّتِهِ او مکروه دي نفل کول له سهار (صبح صادق) راختلو څخه وروسته زیات تر (دوو رکعتو) سنتو وَبَعْدَ صَلَاتِهِ او (همدارنګه مکروه دي نفل کول) د سهار تر لمانځه وروسته وَبَعْدَ صَلٰوةِ الْعَصْرِ او د مازیګر تر لمانځه وروسته وَقَبْلَ صَلٰوةِ الْمَغْرِبِ او د ماښام تر لمانځه مخکې.

**تشریح:** له صبح صادق (سپېده چاود) څخه بیا د لمر راختلو تر وخته پورې تحیة الوضوء او تحیة المسجد یا بل نفلي لمونځ کول جائز نه دي، په دې وخت کې د سهار له دوه رکعته سنت مؤکد څخه بغیر بل نفلي لمونځ کول هم مکروه دي. همدارنګه د سهار تر لمانځه وروسته بیا د لمر راختلو تر مخکې وخت پورې نفل کول مکروه دي، هاں! تر صبح صادق وروسته قضائي لمونځ کول شرعاً جائز دي. همدارنګه د سهار تر لمانځه وروسته د لمر راختلو څخه مخکې هم قضائي لمونځ کول جائز دي. تر دې وروسته فرمایي چې د مازیګر تر لمانځه وروسته تر لمر لوېدلو پورې هم یو نفلي

لمونځ کول مکروه دي، خو تر څو چي په لمر کي ژړوالی راغلی نه وي، تر هغه وختـه پوري دمازيګر تر لمانځه وروسته قضائي لمونځ کول جائز دي. همدارنګه تر لمر لوېدلو وروسته دمانبام تر لمانځه مخکي هم نفلي لمونځ وغيره مکروه تحريمي دي، ددې لپاره چي دمانبام په لمانځه کي تاخير رانه سي او دجنازې لمونځ او سجدهٔ تلاوت بېله کراهته جائز دي. (انوار الايضاح. شفاء الارواح)

**فايده**: نن سبا دسعودي عربستان حکومت حنبلی المسلکه دی چي هلته دمانبام تر آذان وروسته دوه رکعته نفل کول کيږي او بيا دمانبام لمونځ اداء کول کيږي، په هغه وقفه کي که تحية الطواف اداء کړل سي، نو حرج نسته. حنفي حاجيان دمازيګر د تر لمانځه وروسته د کړی سوي طواف دوه رکعته عموماً په همدې وخت کي اداء کوي.

## د خطبې په وخت کي د لمانځه حکم

﴿ ۲۲۱ ﴾ وَعِنْدَ خُرُوْجِ الْخَطِيْبِ حَتّٰى يَفْرُغَ مِنَ الصَّلٰوةِ او (مکروه دي نفل کول) د خطيب راوتلو په وخت کي تر دې چي هغه (دجمعې) دلمانځه څخه فارغ سي.

**تشريح**: کله چي امام دجمعې په ورځ دخطبې لپاره له خپل حجرې څخه را ووځي، يا په مسجد کي ناست وي او دخطبې لپاره له خپل ځای څخه منبر ته ورلاړ سي. له هغه وخت څخه دجمعې د لمانځه تر ختمېدلو پوري ټوله نوافل او واجب لغيره لمنځونه حتیٰ دجمعې سنتونه کول هم مکروه تحريمي دي، خو کوم سنتونه چي دامام له ولاړېدو څخه مخکي شروع کړل سوي وي. هغوی دي پوره کړي، همدا صحيح ده.

همدارنګه دفرضي او واجب لمانځه قضاء، دجنازې لمونځ او سجدهٔ تلاوت هم په دغه وخت کي مکروه تحريمي دي، دهري خطبې همدغه حکم دی، برابره ده داخترونو خطبه وي او که د حج، نکاح، کسوف يا استسقاء خطبه وي. (شفاء الارواح)

## د سهار د سنتونو مسئله

﴿ ۲۲۲ ﴾ وَعِنْدَ الْإِقَامَةِ إِلَّا سُنَّةَ الْفَجْرِ او (مکروه دي) داقامت په وخت کي مګر د سهار سنت.

**تشريح**: کله چي فرضي لمونځ شروع سي، نو په دې وخت کي نفل او سنت او د فرضو او واجبو قضاء شروع کول مکروه تحريمي دي، خو د سهار سنت تر اقامت وروسته هم جائز دي، په دې شرط کله چي د پوره جماعت د تېرېدلو (فوتېدلو) بېره نه وي، که چيري داامېد يې وي چي ناسته (تعده) به ونيسم، نو بيا هم دسهار سنت کول جائز دي، ليکن دجماعت له صف څخه به يې ليري کوي، او که چيري دابېره يې وي چي دسنت کولو په وجه به دجماعت لمونځ را څخه تېر سي چيرآخره

ناسته (قعدهٔ اخیره) په هم نه ونیسم، نو دا سنت دي پرېږدي او د جماعت په لمانځه کي دي شریک سي. (شفاء الارواح)

## د اختر تر لمانځه مخکي نفل کول

﴿۲۴۳﴾ وَقَبْلَ الْعِيْدِ وَلَوْفِي الْمَنْزِلِ او (مکروه دي نفل کول) د اختر تر لمانځه مخکي که څه هم په کور کي وي وَبَعْدَهٗ فِي الْمَسْجِدِ او د اختر تر لمانځه وروسته په مسجد کي.

**تشریح**: د اختر تر لمانځه مخکي په کور، مسجد یا عیدګاه کي نفل کول مکروه دي. همدارنګه د اختر تر لمانځه وروسته په مسجد او عیدګاه کي نفل کول مکروه دي، خو په کور کي کول مکروه نه دي. (شفاء الارواح)

## په عرفات او مزدلفه کي د جمع بین الصلاتین په مینځ کي نفل کول

﴿۲۴۴﴾ وَبَيْنَ الْجَمْعَيْنِ فِيْ عَرَفَةَ وَ مُزْدَلِفَةَ او (مکروه دي نفل کول) په عرفات او مزدلفه کي د دوو جمعو تر مینځ (مخکي ذکر سوه چي د نفلو په عامه معنیٰ کي سنت هم راځي).

**تشریح**: د عرفات په میدان کي د ماپښین او مازیګر د لمنځونو د جمع (جمع تقدیم) په مینځ کي نفل او سنت کول مکروه تحریمي دي، همدارنګه په مزدلفه کي د ماښام او ماخوستن د لمنځونو د جمع (جمع تأخیر) په مینځ کي نفل او سنت کول هم مکروه تحریمي دي.

## د وقت د تنګوالي په حالت کي نوافل کول

﴿۲۴۵﴾ وَعِنْدَ ضَيْقِ وَقْتِ الْمَكْتُوْبَةِ او (مکروه دي نفل کول) د فرضي لمانځه د وخت تنګېدلو په وخت کي.

**تشریح**: یعني کله چي د فرضي لمانځه وخت دومره تنګ وي چي صرف د همدې فرضي لمونځ کولو ګنجائش وي، نو ښکاره خبره ده چي که څوک په دې حالت کي په نفلو او سنتو مشغوله سي، فرض به قضاء سي؛ نو ځکه په داسي وخت کي نفل کول مکروه تحریمي دي، مثلاً د سهار په وخت کي د لمر راختلو وخت نژدې وي او سړي تر اوسه د سهار لمونځ نه وي کړی، نو د هغه لپاره سنت کول مکروه تحریمي دي. (شفاء الارواح)

## د قضاء حاجت په وخت کي د لمانځه ممانعت

﴿۲۲۶﴾ وَمُدَافَعَةِ الْأَخْبَثَيْنِ او (مکروه دي) د غټو او کوچنیو بولو د دفع کولو (دبلو) په وخت کي (یا په بله وینا: د غائطو او متیازو د سختوالي په وخت کي).

**لغات:** ﴿مدافعة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي: لیري کول، دفع کول، مقابله او مزاحمت کول، ټال مټالول (ټال متول کول) (معجم الوسط)، ﴿أخبثين﴾ تثنیه د أخبثٌ ده، مراد: متیازي او غائط دي.

**تشریح:** یعني که د متیازو یا غائطو سخته تقاضا او شدید ضرورت وي (نه معمولي ضرورت: ځکه څه نا څه تقاضا خو هر وخت وي)، نو لمونځ کول مکروه تحریمي دي، همدارنګه د باد (ریح) د ډېر ټینګوالي په صورت کي هم لمونځ کول مکروه تحریمي دي، برابره ده لمونځ فرض وي او که نفل وي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

## د لوږي په وخت کي د لمانځه ممانعت

﴿۲۲۷﴾ وَحُضُوْرِ طَعَامٍ تَتُوْقُهُ نَفْسُهُ او (مکروه دی لمونځ کول) د خوارک حاضربدلو (موجودبدلو) په وخت کي (کله) چي د ده د نفس خواهش ورته کېږي (شوق یې ورته کېږي).

**لغات:** ﴿تَتُوْقُهُ﴾ د نصر له بابه د واحد مؤنث غائب فعل مضارع معروف صیغه ده، تَاقَ یَتُوْقُ تَوْقًا و تَوَقَانًا: شوق لرل (شوق کېدل)، خواهش کول، غوښتنه کول.

**تشریح:** یعني کله چي سړی وږی وي او ډوډۍ مخته پرته وي، نو په داسي حالت کي لمونځ کول مکروه دي، اول دي ډوډۍ وخوري، بیا دي لمونځ وکړي، په دې شرط چي وخت تنګ نه وي، لېکن که وخت تنګ وي، نو اولاً دي لمونځ وکړي.

﴿۲۲۸﴾ وَمَا يُشْغِلُ الْبَالَ وَيُخِلُّ بِالْخُشُوْعِ او د هر داسي شي (د حاضربدلو په وخت کي) کوم چي زړه مشغوله کوي او په خشوع کي خلل اچوي (یعني د زړه توجه ته تاوان رسوي او په حضور الهي او عاجزۍ سره په لمونځ کولو کي خلل او کمي راولي).

**لغات:** ﴿البال﴾ د دې لفظ څو معناوې نقل سوې دي چې ځينې يې دا دي: حال، شان، نفس، او په زړه کې چې کوم خيال راځي... (معجم الوسيط)، ﴿يُخلّ﴾ د افعال د باب مضارع ده، د دې باب هم څو معناوې دي چې ځينې يې دا دي: په يو شي کې خلل اچول (خلل پکښې راوستل)، کمي او نقصان پکښې راوستل، ﴿خشوع﴾ د فتح د باب مصدر دی، د دې باب هم څو معناوې دي: ځان ټيټ ښکاره کول (ځان ټيټول)، د عاجزۍ اظهار کول، بېرېدل او داسې نور، په لمانځه کې د خشوع مطلب دا دی چې په لمانځه کې د الله ﷻ مخ ته ځان حاضر ګڼل او د ځان د عاجزۍ او ټيټوالي اظهار کول او په زړه، دماغ ټولو سره د الله وطرف ته پوره متوجه کېدل او خپله توجه د لمانځه په کلماتو او آيتونو لګول (اوسني مسلمانانو ساينسپوهانو دې عمل ډېرې روغتيايي ګټې هم بيان کړي دي).

**تشريح:** فرمايي چې هر هغه شی چې د لمونځ ګزار زړه او توجّه له لمانځه څخه لېرې کوي او په خشوع کې خلل اچوي، د هغه شي په موجوديت کې هم لمونځ کول مکروه دي، مثلاً سروز او سندرې او داسې نور، يا دې ځای بدل کړي، يا دې هغه شی لېرې کړي، همدارنګه اولاً دې دماغ له هر شي څخه صفا کوي، بيا دې د رب ذو الجلال وطرف ته متوجه کيږي.



# بَابُ الْأَذَانِ

(دا) باب د اذان د احکامو (په بیان کي) دی

**تشریح:** تر دې مخکي صاحب د کتاب د لمانځه وختونه (مواقیت) بیان کړل، اوس له دې ځایه د اذان احکام بیانوي، اذان یې په دې وجه د لمانځه تر وختونو وروسته بیان کړی چي اذان د لمانځه د سبب(وخت) داخلېدلو اعلان دی (یعني اذان دا خبر تیا ورکوي چي د لمانځه وخت داخل سو. او وخت د لمانځه سبب دی لکه مخکي چي د دې بحث تېر سو)، نو ځکه یې اول وختونه بیان کړل او اوس د اذان احکام بیانوي.

**د اذان اصطلاحي او لغوي معنیٰ:** اذان په لغت کي اعلان او إعلام (خبر ورکولو) ته ویل کیږي.

او اصطلاحي معنیٰ یې ده: «اَلْإِعْلَامُ بِوَقْتِ الصَّلَاةِ بِأَلْفَاظٍ مَخْصُوْصَةٍ عَلَى صِفَةٍ مَخْصُوْصَةٍ» (یعني په ځانګړې طریقه سره د ځانګړو الفاظو په ذریعه د لمانځه لپاره اعلان کولو ته اذان وایي).

**اذان کله شروع سو؟:** جمهوره محدثین او تاریخپوهان پر دې خبره متفق دي چي د اذان مشروعیت تر هجرت وروسته په مدینه منوره کي سوی دی، لېکن په دې خبره کي اختلاف دی چي د هجرت په کوم کال کي اذان مشروع سو. په دې لړ کي د حافظ ابن حجر عسقلاني رَحِمَهُ الله رایه دا ده چي د اذان د تعلیم واقعه په ۲ هـ کي پېښه سوه، لېکن د علامه عیني رَحِمَهُ الله خیال دا دی چي دا په ۱ هـ کي واقع سوه.

**د اذان د مشروعیت واقعه:** د اذان د مشروعیت قصه دا ده چي کله نبي کریم ﷺ او صحابه وو له مکې شریفي څخه هجرت وکړی مدینې شریفي ته ولاړل، نو په بېلا بېلو ځایو کي یې استوګنه پیل کړه، او په یوه وخت کي د ټولو خبرېدل او مسجد ته د ټولو حاضرېدل ستونزمن وه. نو په دې باره کي نبي کریم ﷺ د مشورې لپاره د صحابه وو یوه غونډه جوړه کړه؛ په غونډه کي بعضي صحابه وو دا رایه ورکړه چي د لمانځه په وخت کي دي یو بیرغ درول کیږي چي هغه ته به په کتلو سره ټوله خلک په مسجد کي جمع کیږي. لېکن دا رایه خوښه نه کړل سوه، او وجه یې دا بیان سوه چي په دې سره به صرف هغه خلک مسجد ته حاضرېږي کوم چي بیرغویني، او د نه لیدونکو لپاره به ستونزه پر خپل ځای پاته وي.

ځینو صحابه وو دا رایه ورکړه چي د لمانځه په وخت کي دي اُور بلیږي چي هغه ته په کتلو سره به خلک مسجد ته راځي. لېکن نبي ﷺ دا مشوره د مجوسیانو سره د مشابهت له کبله هم رد کړه. همدارنګه هر کس خپله رایه ورکړه، خو د غونډې تر پایه یوه پرېکړېزه رایه منظوره نه سوه. او ټوله خلک واپس خپلو کورونو ته ولاړل. هر یو په دې باره کي حیران او سرګردانه وو، او په دې کوښښ کي وو چي ژر تر ژره د دې مسئلې یو حل پیدا سي.

حضرت عبد الله بن زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم په دې غونډه کې ناست وو. او په دې باره کې هغه د نورو په نسبت څه زیات فکرمن وو. څرنګه چې هغه ډېر کور ته ولاړ، نو ښځې یې د ماښام ډوډۍ ور ته راوړه، لیکن عبد الله بن زید وویل چې د نبي ﷺ صحابه د لمانځه په اړه په یوه مسئله کې سرګردانه دي، زه ډوډۍ نه سم خوړلای. عبد الله بن زید وایي چې په دغه ګړې ما ته خوب راغلی، په خوب کې مې ولیدل چې له آسمان څخه یو سړی راښکته شو. چې د هغه پر بدن دوه زرغونه پټوان (څادران) وه. او په لاس کې یې یو ناقوس وو. ما له هغه څخه پوښتنه وکړه چې اې د الله بنده! آیا ته دا ناقوس خرڅوې؟ هغه وویل چې ته به په دې څه وکړې؟ ما وویل: زه به یې رسول الله (ﷺ) ته ور وړم. او د دې په ذریعه به د لمانځه د وخت خبرتیا ورکول کیږي. دې سړي وویل: آیا زه تا ته د دې لپاره یوه غوره طریقه نه در وښیم؟ ما ور ته وویل: هو! ضرور یې را وښیه. نو هغه سړي د دېوال بغل ته ودرېدی او د قبلې طرف ته یې مخ کړی او د اذان ټوله کلمې یې ذکر کړې. عبد الله بن زید ﷺ فرمایي چې: سهار ما نبي ﷺ ته دا خوب ووایی، نو نبي ﷺ وفرمایل: « إِنَّهُ لَرُؤْيَا حَقٌّ. فَأَلْقِهَا إِلَى بِلَالٍ فَإِنَّهُ أَنْدَى وَأَمَدُّ صَوْتًا مِنْكَ وَمُرْهُ يُنَادِيْ بِهِ » [ابوداؤد شریف. باب کیف الأذان. حدیث شمیره: ۴۹۹]. (یعنې دا یو رښتونی خوب دی، ته! حضرت بلال ﷺ ته دا کلیمې ور وښیه!، او هغه ته ووایه! چې په دې کلمو سره ته اذان کوه!، ځکه د هغه آواز ستا تر آواز غټ دی)، کله چې د حضرت عمر ﷺ غوږ ته د حضرت بلال ﷺ دغه آواز ورسېدی، نو د نبي ﷺ په خدمت کې حاضر سو. او ویې ویل: اې د الله نبي! په هغه ذات دې مې قسم وي چې ته یې رښتونی نبي رالېږلی یې، د شپې دغسې خوب ما هم ولیدی، لیکن عبد الله بن زید ﷺ په دې باره کې زما څخه مخکې خوب وکړی، نو په دې باندې نبي کریم ﷺ د خپل پروردګار شکر ادا کړی، او په دې توګه د لمانځه د خبرتیا ستونزه حل سوه. (بدائع الصنائع ج:۱، ص: ۳۶۵)

**د اذان اجر او ثواب:** په حدیث کې د اذان ډېر فضیلت وارد سوی دی، په یوه روایت کې دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل: د مؤذن آواز چې تر کومه ځایه پورې رسیږي، هغومره اندازه حصه د مؤذن لپاره د مغفرت او بخښنې فیصله کول کیږي او کوم لانده یا وچ شي ته چې د هغه آواز رسیږي، هغه ټوله شیان به د ده لپاره په قیامت کې د خیر ګواهي ورکوي. (ابو داؤد ج:۱، ص: ۷۶)

**اذان د شیطان لپاره عذاب:** د اذان په کلماتو کې الله تعالیٰ داسې تاثیر ایښی دی چې ملعون شیطان د هغوی د اورېدلو تاب نه لري او کله چې اذان شروع کیږي، نو هغه د زیات بد حواسۍ په عالم کې باد خارجوي او تر ۳۶ میلو پورې (تقریبا ۶۶ کیلومتره) لیرې ځغلي.

او په یوه روایت کې دي چې کله اذان کیږي، نو شیطان ځغلي چې د اذان کلام د هغه په غوږ کې ونه لوېږي. بیا تر اذان وروسته واپس راځي، تر دې وروسته چې کله اقامت کیږي، بیا ځغلي او

داقامت پر ختمېدلو بيا راځي او لمونځ ګزار ته دوسوسې اچولو کوښښ کوي او وايي چي فلانی خبره ياده کړه!، فلانی خبر ياده کړه! يعني هيري سوي خبري ور په يادوي چي ذهن يې دلمانځه څخه ليري سي، تر دې چي په وسوسو کي دلوېدلو په وجه دلمونځ ګزار څخه لمونځ هېر سي چي ده څو رکعته لمونځ کړی دی. (بخاري شريف بحوالۀ انوار الايضاح)

**څوک به مؤذن جوړول کېږي؟** : په حديثو سره ثابت دي چي مؤذن داسي کس کېدل پکار دي کوم چي د شرعي مطابق او په امانت، ديناري، تقویٰ او طهارت سره فائز وي، په يوه حديث کي دي چي امام ضامن دی او مؤذن امين دی، الله تعالیٰ دي امام پر سيده لاره روان کړي او مؤذن ته دي بخښنه وکړي. (سنن بيهقی ج:۱، ص:۴۲۶)

قيس ابن حازم وايي چي موږ د حضرت عمر ﷺ په خدمت کي حاضر سو، نو موږ څخه يې پوښتنه وکړي چي ستاسي سره مؤذنين کوم خلک دي؟، موږ په جواب کي ورته ووېل چي زياتره مؤذنان يا غلامان دي يا آزاد کړل سوي موالي دي، نو حضرت عمر ﷺ افسوس وکړی او ويې فرمايل چي دا خو په تاسو کي لوی نقص دی، اذان خو د شرافت شی دی چي که ما لره د خلافت مصروفيات نه وای، نو ما به د پنځو سره لمنځونو لپاره خپله اذان کولای. (سنن بيهقی ج:۱، ص:۴۲۷)

**يادونه** : داذان مشروعيت صرف په خوب سره نه دی ثابت؛ ځکه له انبياؤ څخه بغير د هيچا خوب هم حجت نه دی، بلکي د اذان او اقامت مشروعيت ابتداءً په تائيد نبوي سره سوی دی، بيا قرآن کريم دې توثيق کړی دی ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا نُوْدِيَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ﴾(سورة الجمعة:۹)، (اې مؤمنانو! کله چي د جمعې دلمانځه لپاره اذان وسي، نو تاسي د الله ﷻ د ذکر وطرف ته ولاړ سئ!).

علامه محمد يوسف بنوي رَحِمَهُ الله فرمايي چي دانتها په اعتبار سره د اذان مشروعيت په "وحي متلو" يعني په قران کريم سره سوی دی. (تحفة الالمعی ج:۱، ص:۵۰۱)

## د اذان حکم

﴿۲۲۹﴾ سُنَّ الْأَذَانُ وَالْإِقَامَةُ سُنَّةً مُؤَكَّدَةً لِلْفَرَائِضِ سنت دي (سنت کړل سوي دي) اذان او اقامت د سنت مؤکده په توګه د فرضي لمنځونو لپاره وَلَوْ مُنْفَرِدًا که څه هم يوازي (لمونځ کونکی) وي أَدَاءً أَوْ قَضَاءً (او برابره ده دا فرضي لمونځ) اداء (په خپل وخت کي) وي او که قضاء وي (يعني د فرضي لمانځه قضاء راوړي) سَفَرًا أَوْ حَضَرًا سفر وي او که حضر وي (يعني لمونځ کونکی

مسافر وي او که په خپل وطن کي حاضر او مقيم وي) لِلرِّجَالِ (سنت دي دا دواړه ) د سړيو لپاره وَكُرِهَالِلنِّسَاءِ او مکروه دي دا دواړه (اذان او اقامت) د ښځو لپاره.

**تشريح**: اذان د پنځو سره فرضي لمنځونو او د جمعې د لمانځه لپاره پر خلکو سنت مؤکده دي او بعضي حضراتو هغه ته واجب ويلي دي، د "فرائض" په قيد سره نور لمنځونه ووتل. لهذا د وترو، اخترونو، سنتونو، تراويحو، کسوف او استسقاء او د جنازې د لمانځه او داسي نورو لپاره به اذان او اقامت نه کول کيږي.

ولومنفردًا: يعني فرضي لمونځ کونکی که څه هم يوازي وي، نو هم دي اذان او اقامت کوي.

أداءً وقضاءً: يعني برابره ده لمونځ اداء وي او که قضاء وي، د دواړو لپاره دي اذان او اقامت کوي. لېکن که قضائي لمونځ په داسي ځای کي اداء کوي چي هلته خلک موجود وي لکه مسجد. نو که په جماعت سره قضائي لمونځ اداء کوي، نو اذان او اقامت دي نه کوي او که منفرد وي، نو په دومره آواز سره دي اذان کوي چي دئ يې خپله اوري.

سفراً وحضراً: يعني مسافر وي او که مقيم وي، د مسافر لپاره هم اذان او اقامت سنت مؤکده دي. که فقط اقامت وکړي او اذان پرېږدي، نو بلا کراهته جائز دي، غوره دا ده چي دواړه وکړي.

للرجال: يعني اذان صرف د خلکو لپاره سنت دي، د ښځو لپاره اذان او اقامت دواړه مکروه دي، برابره ده يوازي لمونځ کوي او که په جماعت سره؛ ځکه د ښځي دآواز پرده هم ضروري ده. لهذا نه دي اقامت کوي او نه دي اذان کوي (که څه هم مدرسة البنات وي). (شفاء الارواح)



## په کور کي د جماعت کولو پر مهال د اذان او اقامت حکم

**مسئله** (۱): که د کلي او محلې په مسجد کي اذان سوی وي او يو څوک په خپل کور کي يوازي يا په جماعت سره لمونځ کول غواړي، نو د هغه لپاره د کلي اذان کافي دی، ځانته د اذان کولو ضرورت نسته. لېکن که قضائي لمونځ راګرځوي، نو د اذان او اقامت دواړو پرېښوول مکروه دي. کم از کم په اقامت سره قضائي لمونځ اداء کول پکار دي. (در مختار ج۲، ص۶۶، کتاب المسائل ص: ۲۴۰)

## په مسجد کي د منفرد د اذان حکم

**مسئله** (۲): که په مسجد کي اذان سوی وي، نو د منفرد لپاره په مسجد کي دننه اذان او اقامت کول مکروه دي. (در مختار ص۵۸)

## د اذان د کلماتو تفصیل

﴿۲۵۰﴾ وَيُكَبِّرُ فِيْ أَوَّلِهِ أَرْبَعًا او تکبیر (الله اکبر) دي وايي د اذان په شروع کې څلور واره وَ يُثَنِّيْ تكبير آخِرِهِ كَبَاقِيْ أَلْفَاظِهِ او دوه واره دې يې وايي د اذان د آخر تکبیر د اذان د نورو الفاظو په شان (یعني لکه څنګه چې د اذان نور الفاظ دوه. دوه واره ویل کیږي).

**تشریح**: د اذان د کلماتو تفصیل داسې دی چې اول دې څلور واره "الله اکبر" وايي او په آخر کې دې دوه وار "الله اکبر" وايي، نور ټوله کلمات دي دوه. دوه واره دوايي او "لا إله إلا الله" دې صرف يو وار وايي.

## د ترجیع حکم

﴿۲۵۱﴾ وَلَا تَرْجِيْعَ فِي الشَّهَادَتَيْنِ او (د اذان) په شهادتینو کې ترجیع نشته.

**تشریح**: مسئله دا ده چې په اذان کې ترجیع نشته. د ترجیع مطلب دا دی چې اذان کوونکی شهادتین یعنې أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا الله او أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ الله اول دوه واره په کرار آواز سره ووايي او بيا يې وروسته دوه واره په لوړ آواز سره ووايي، امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله ترجیع ته سنت وايي، خو د امام صاحب، امام احمد او امام ابو یوسف رَحِمَهُمُ الله په نیز ترجیع سنت نه ده.

**یادونه**: اوس په عملي توګه دا مسئله پاتې نه ده؛ ځکه اوس په ټوله دنیا کې د مالکیانو او شوافعو ترجیع ختمه کړې ده. لهذا دغه اختلاف اوس لاحاصله دی. (تحفة الالمعي ج:۱. ص:۵۰۵)

## د اقامت کلمات

﴿۲۵۲﴾ وَالْإِقَامَةُ مِثْلُهُ او اقامت د اذان په شان دی (ها! خو تر "حیّ علی الفلاح" وروسته به دوه واره "قد قامت الصلوة" وايي).

**تشریح**: د احنافو په نیز اقامت هم د اذان په شان دی چې کوم کلمات په اذان کې ویل کیږي، هغه په اقامت کې هم ویل کیږي، خو په اقامت کې به تر "حیّ علی الفلاح" وروسته دوه واره "قد قامت الصلاة" هم زیاتول کیږي.

## د "اَلصَّلَاةُ خَيْرٌ مِّنَ النَّوْمِ" بيان او ثبوت

﴿۲۵۳﴾ وَيَزِيْدُ بَعْدَ فَلَاحِ الْفَجْرِ "اَلصَّلٰوةُ خَيْرٌ مِّنَ النَّوْمِ" مَرَّتَيْنِ او زياتوي دي د سهار (داذان) تر "حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ" وروسته دوه واره "اَلصَّلٰوةُ خَيْرٌ مِّنَ النَّوْمِ".

**تشريح:** فرمايي چې اذان کونکی به د سهار په اذان کې تر "حيّ على الفلاح" وروسته دوه واره "الصلوٰة خيرٌ من النوم" زياتوي، او دا زياتونه مستحب ده؛ دليل يې دا دی چې يوه ورځ حضرت بلال ﷛ د سهار د لمانځه لپاره اذان وکړی، بيا د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حجرې دروازې ته ورغلی ورته يې ويل: "الصلوٰة يا رسول الله (ﷺ)"، حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمايل چې: "الرسول نائم (رسول الله ﷺ بيده دی)"، نو بلال ﷛ وويل: "الصلوٰة خيرٌ من النوم". کله چې نبي ﷺ راويښ سو، نو حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا و نبي کريم ﷺ ته دا قصه وکړه، د نبي کريم ﷺ دا کلمات خوښ سوه او ويې فرمايل: "مَا أَحْسَنَ هٰذَا يَا بِلَالُ! اِجْعَلْهُ فِي أَذَانِكَ" (اې بلاله! دا څه ښه کلمات دي، دا په خپل اذان کې داخل کړه!)، نو تر دې واقعې وروسته حضرت بلال ﷛ به دا کلمات په اذان کې ويله. پاته سوه دا خبره چې دا زياتونه د سهار د اذان سره ولې خاص ده؟، نو جواب يې ښکاره دی چې دا وخت د خوب او غفلت دی، نو ځکه دا زياتونه د سهار د اذان سره خاص سوه.



### که "الصلاة خير من النوم" پاته سي نو څه حکم دی؟

**مسئله:** که د سهار په اذان کې له مؤذن څخه "الصلاة خيرمن النوم" پاته سي، خو سمدستي د اذان تر ختمېدلو مخکې ور په ياد هم سي، نو دا کلمات ويل پکار دي او بيا دي وروستني کلمات راوګرځوي، لېکن که د اذان تر ختمېدلو وروسته په ياد ورسي، نو اوس خو اذان پوره سوی دی. لهذا د راګرځولو يا د مذکوره کلماتو د ويلو ضرورت نسته. (احسن الفتاویٰ ج:۲، ص:۲۸۶، کتاب المسائل ص ۲۴۲)

﴿۲۵۴﴾ وَبَعْدَ فَلَاحِ الْإِقَامَةِ "قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوةُ" مَرَّتَيْنِ او (زياتوي دي) داقامت تر "حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ" وروسته دوه واره "قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوةُ".

**تشريح:** مخکې يې وضاحت وسو.

## د اذان او اقامت سنت طریقه

﴿۲۵۵﴾ ویَتَمَهَّلُ فِی الْأَذَانِ او کراري (کرارتیا) دي کوي په اذان کي (یعني د اذان کلمات دي په کراره. کراره وایي) وَیُسْرِعُ فِی الْإِقَامَةِ او تېزي دي کوي په اقامت کي.

**لغات:** ﴿یتمهل﴾ د تفعل د باب مضارع ده. د دې باب څو معناوي دي: نرمي کول. کار په اطمینان سره کول او په هغه کي تېزي نه کول. توقف کول. په کراره. کراره کول. ﴿یسرع﴾ د افعال د باب مضارع ده: تېزي کول.

**تشریح:** د اذان کلمات اوږدول او تر هري کلمې وروسته دومره ګړی درېدل کي چي د اذان جواب ورکونکی جواب ورکړی سي، او په اقامت کي هر کلمه په تېزي سره ویل او پر هغه ساه نه بندول سنت دي، د اذان هره کلمه په یوه ساه سره اداء کول او د هري کلمې په آخر کي جزم کول سنت دي.

**د اقامت سنت طریقه:** د اقامت سنت طریقه دا ده چي اولاً دي په یوه ساه څلور واره "الله اکبر" وویل سي او د هر "الله اکبر" پر "راء" دي سکون وکړي او که ګډ یې وایي، نو پر "راء" دي دزَور حرکت ښکاره کړي، په "راء" باندي پېښ ویل به د سنت خلاف وي، تر دې وروسته دي په یوه ساه "أشهد أن لا إله إلا الله، أشهد أن لا إله إلا الله" ووایي او د "الله" پر "ه" دي سکون وکړي، تر دې وروسته دي په یوه ساه "أشهد أن محمداً رسول الله أشهد أن محمداً رسول الله" ووایي، او پر هره آخره کلمه دي سکون کوي، اعراب دي نه باندي ښکاره کوي، همدارنګه په یوه. یوه ساه دي "حي على الصلاة" او "حي على الفلاح" ووایي، تر دې وروسته دي "قد قامت الصلاة" په جلا ساه سره ووایي، بیا دي "الله أكبر، الله أكبر" په یوه سا سره ووایي او بیا دي "لا إله إلا الله" په یوه ساه سره ووایي. (اعلاء السنن ج: ۲، ص: ۵۸، کتاب المسائل ص: ۲۴۷، شامي ج: ۲، ص: ۴۷، ۴۸)



## د اذان یا اقامت یوه کلمه پاتېدل

**مسئله:** که په اذان او اقامت کي یوه کلمه پاته سي، نو که تر اذان او اقامت وروسته سمدستي ور په یاده سي، نو کومه کلمه چي پاته سوې وي، هغه دي را وګرځوي او که څه ګړی وروسته ور په یاده سي، نو له شروع څخه دي یې را وګرځوي. (احسن الفتاوی ج: ۲، ص: ۲۸۵، درمختار ج: ۲، ص: ۴۹، ۵۱، کتاب المسائل ص: ۲۴۲)

**مسئله**: په اذان کې "محمدً رسول" الله یعنې په فتحه سره د دال. او په کلمه شریفه کې محمدٌ رسول الله یعنې په ضمه سره د دال ویل پکار دي، ځکه په اذان کې محمد اسم د "أن" دی کوم چې عامل ناصبه دی ، او په کلمه شریفه کې محمد مبتداء ده، که د دې برعکس وکړي یعنې په اذان کې یې په ضمه سره د دال او په کلمه شریفه کې یې په فتحه سره د دال ووایي، نو د عربي قواعدو خلاف کار دی (فتاوی محمودیه. ج ۵. ص ۲۰۸)

**مسئله**: د "قد قامت الصلوة" آخری "ة" د وقف او سکتې په حالت کې "ه" (هاء) ګرځي. نو ځکه حرکت به نه ورکول کېږي، خو که یو څوک وقف نه باندې کوي. نو په اصل کې اعراب ضمه ده؛ ځکه "الصّلوة" د "قد قامت" فاعل دی، کسره یا فتحه ورکول غلطه ده او له غلطیو څخه اجتناب کول پکار دی. (فتاوی محمودیه. ج. ۵ص ۴۶۸)

## له عربي څخه بغیر په بله ژبه اذان او تکبیــــر ویل

﴿۲۵۶﴾ وَلَايُجْزِئُ بِالْفَارِسِيَّةِ او نه کافي کېږي (نه جائز کېږي) په فارسي سره اذان کول وَإِنْ عُلِمَ أَنَّهُ أَذَانٌ که څه هم معلومه سي چې دا اذان دی فِـي الْأَظْهَـرِ د ظاهر روایت مطابق (نه جائز کېږي).

**لغات**: ﴿لا یجزي﴾ د افعال له بابه د نفي صیغه ده. أَجْزَأَ يُجْزِئُ: د دې باب څو معناوي دي چې له هغوی څخه یوه دا ده: کافي کېدل (کفایت کول). (معجم الوسیط)

**تشریح**: له عربي ژبې څخه بغیر په بله ژبه مثلاً په فارسي وغیره اذان کول جائز نه دي، که څه هم اورېدونکي کسان پوهېږي چې دا اذان کېږي؛ ځکه د اذان مشروعیت په عربي الفاظو سره ثابت دی. همدا حکم د تکبیــر هم دی؛ ځکه دا دواړه له شعائرو څخه دي. او شعائر پر خپل حال پرېښول کېږي. (مراقی الفلاح ص: ۱۰۶)

## د اذان مستحبات

﴿۲۵۷﴾ وَيَسْتَحِبُّ أَنْ يَّكُوْنَ الْمُؤَذِّنُ صَالِحًا او مستحب دي دا چې مؤذن به نېک کــر وي عَالِمًا بِالسُّنَّةِ وَأَوْقَاتِ الصَّلٰوةِ (او) خبر به وي (د اذان) په سنتو او د لمانځه په وختونو (یعنې د اذان چې کوم سنتونه دي او د اذان چې کوم پنځه وختونه دي. هغوی به پېژني. د دې لپاره چې د سنت مطابق او پر خپل وخت اذان وکړی سي).

**تشريح**: له دې ځايه د اذان مستحبات بيانوي کوم چې د مؤذن سره متعلق دي. فرمايي چې مؤذن به نېک صالح انسان وي، له صالح شخصه مراد دا دي چې د حقوق الله او حقوق العباد ټولو ادا، کونکی به وي، لېکن څرنګه چې په اوس دور کي عموماً داسي کسان مشکل دي. نو ځکه بعضو د دې تشريح په متقي سره کړې ده او له متقي شخصه مراد دا دي چې د هغه ظاهر نېک وي. لهذا د فاسق اذان مکروه دی. همدارنګه مؤذن به د اذان او اقامت سنت طريقې او ضروري مسائل او د لمانځه وختونه پېژني. نو همداسي مؤذن د ثواب مستحق کېږي. لهذا که جاهل (ناخبره) کس اذان وکړي يعني کوم چې د اذان او اقامت په سنت طريقه او د لمانځه په اوقاتو خبر نه وي. نو د مؤذن لپاره چې کوم فضيلت او ثواب نقل سوی دی، هغه ده ته نه حاصلېږي. (شفاء الارواح)

﴿ ۲۵۸ ﴾ وَعَلٰى وُضُوْءٍ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ او (مستحب دي دا چې) په اوداسه به وي (مؤذن) مخ پر قبله به وي إِلَّا أَنْ يَكُوْنَ رَاكِبًا مګر دا چې هغه سپور وي.

**تشريح**: او مستحب دا ده چې اذان په اوداسه وکړی سي، لېکن که مؤذن بې اوداسه اذان وکړي، نو بېله کراهته جائز دي، خو داسي عادت جوړول بد دي، همدارنګه مستحب ده چې اذان به مخ پر قبله په ولاړه وکړی سي. که مؤذن د قبلې و طرف ته مخ نه کړي، نو مکروه تنزيهي به وي او راګرځول يې مستحب دي، خو د سفر په حالت کي کله چې سپور وي، استقبالِ قبله (مخ پر قبله کېدل) ضروري نه دي. (شفاء الارواح)

## په غوږو کي د ګوتو نيولو حکم

﴿ ۲۵۹ ﴾ وَأَنْ يَّجْعَلَ إِصْبَعَيْهِ فِىْ أُذُنَيْهِ او (مستحب دي) دا چې ونيسي مؤذن خپل دوې ګوتي په خپلو غوږو کي.

**تشريح**: د اذان کولو په وخت کي د مؤذن لپاره بل مستحب کار دا دی چې خپل دواړه د شهادت ګوتي د غوږو په سوريو دننه کړي، د دې لپاره چې آواز يې لوړ سي، او بل د دې لپاره چې کوڼ کس او ليري کس کوم چې آواز نه سي اورېدلای، هغه په دې فعل سره پوه سي چې اذان کېږي. په اقامت کي دا نسته؛ ځکه په اقامت کي د آواز لوړول نسته. نو ځکه په اقامت کي دي دواړه لاسونه ايله ساتي. (شفاء الارواح)

﴿ ۲٦۰ ﴾ وَأَنْ يُّحَوِّلَ وَجْهَهٗ يَمِيْنًا بِالصَّلٰوةِ او (مستحب دي) دا چې واړوي خپل مخ راسته طرف ته په "حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ" کي وَيَسَارًا بِالْفَلَاحِ او چپه طرف ته په "حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ" کي.

**تشریح**: په اذان کې د "حی علی الصلاة" وېلو پر مهال راسته طرف ته مخ څه ګرځول او د "حی الفلاح" وېلو پر مهال چپه طرف ته مخ څه ګرځول سنت دي، همدارنګه په اقامت کې هم ګرځول پکار دي(حلبي کبیر ص:۳۷۴). او صحیح قول دا دی چې په اقامت کې تحویل سنت نه دی، خو په کولو کې یې څه حرج نشته. (شفاء الارواح)

**یادونه**: مخ به داسې ګرځوي چې سینه او قدمونه یې له قبلې څخه نه وګرځي. بلکې هغوی پر خپل ځای پاته وي. او مخ په هر صورت کې ګرځول پکار دي، برابره ده یوازې د خپل ځان لپاره اذان کوي او برابره د لمانځه لپاره، یا د یو بل مقصد لپاره اذان کوي، مثلاً د کوچني په غوږ کې چې کوم اذان کېږي. نو په هغه کې هم د دې دواړو کلمو په وخت کې مخ راسته او چپه طرف ته څه ګرځول پکار دي. (طحطاوي)

﴿۲۶۱﴾ وَيَسْتَدِيرُ فِيْ صَوْمَعَتِهٖ او ګرځي به مؤذن په خپله مناره (د اذان کولو په ځای) کې.

**لغات**: ﴿یستدیر﴾ د استفعال د باب مضارع ده اِسْتِدَارًا: ګرځېدل. ﴿صومعة﴾ کوچنی حجره(خونه)، په بحر الرائق کې راغلي دي چې صومعه "منارې" ته وېل کېږي. او دلته له دې څخه مراد هغه لوړ ځای "یا په بله وینا د مؤذن مناره" ده کوم چې به خاص د اذان لپاره جوړېده چې په هغه کې به د قبلې په خوا کې راسته او چپه طرف درېڅې (کړکیانې) وې، د دې لپاره چې د اذان آواز تر لیرې پورې ولاړ سي.

**تشریح**: مسئله دا ده چې که د اذان کولو ځای یعني صومعه پراخه وي چې که پر خپل ځای مؤذن ولاړ وي او صرف مخ ګرځوي، نو ښاو خوا خلکو او کورونو ته پوره آواز نه رسیږي، نو په داسې صورت کې دي په صومعه کې ګرځي یعني د "حيّ علی الصلاة" د وېلو پر مهال دي اول له راسته درېڅې څخه سر راباسي، دوه واره دي "حيّ علی الصلاة" وایي او بیا دي له چپه درېڅې څخه سر راباسي، دوه واره دي "حيّ علی الفلاح" وایي. (درېڅه یعني هغه کړکۍ چې په صومعه کې نصب وي)، بیا دي خپل ځای ته راځي او پاته کلمات دي وایي. او که پر خپل ځای په درېدلو سره صرف راسته او چپه طرف ته په مخ ګرځولو سره هم پوره آواز رسیږي چې خلک په خبرېږي. نو بیا دي له خپل ځای څخه قدم نه لیرې کوي. (شفاء الارواح بحوالهٔ حاشیه)

**یادونه**: ښکاره خبره ده چې دا ټوله تفصیل هغه وخت وو کله چې اذان په مایک او اسپیکر کې نه کېدی او نه د هر چا سره د ساعت او ګړۍ سهولت وو، او د اذان لپاره به خپل لوړ ځای جوړ وو، خو څرنګه چې اوس د مایک او اسپیکر د لارې د اعلام مقصد پوره حاصلیږي، نو څکه د سنت اداء کېدو په نیت سره دې صرف مخ راسته او چپه طرف ته ګرځوي.

## د اذان او اقامت تر مينځ د فصل کولو بيان

﴿ ۲۶۲ ﴾ وَيَفْصِلُ بَيْنَ الْأَذَانِ وَالْإِقَامَةِ بِقَدْرِ مَا او فصل (وقفه) دي کوي د اذان او اقامت تر مينځ دومره اندازه وخت يَحْضُرُ الْمُلَازِمُوْنَ لِلصَّلٰوةِ چي (په هغومره وخت کي) حاضر بېدلای سي دلمانځه پابنده خلک مَعَ مُرَاعَاةِ الْوَقْتِ الْمُسْتَحَبِّ سره د رعايت کولو (خيال ساتلو) د مستحب وخت (يعني دومره فصل او انتظار دي نه کوي چي دلمانځه مستحب وخت ووځي).

**تشريح**: مسئله دا ده چي د ماښام دلمانځه څخه بغير په نورو لمنځونو کي دي د اذان او اقامت تر مينځ دومره فصل او وقفه کول کيږي چي د جماعت پابنده (التزام کونکي) کسان له طهارت څخه فارغه سي، يا که له مخکي څخه يې دوه‌ی شروع کړې وي، نو چي له هغه څخه فارغه سي او طهارت وکړی سي او د لمانځه لپاره مسجد ته حاضر سي؛ ځکه د اذان او اقامت تر مينځ فصل نه کول مکروه دي، وجه يې دا ده چي په اذان سره مقصود وخلکو ته د وخت داخلېدلو خبر ورکول دي چي هغوی لمانځه ته تياري وکړل سي، او دا مقصود په وصل کولو سره فوتيږي، نو ځکه فصل دي کوي، او دومره فصل دي نه کوي چي د لمانځه مستحب وخت ووځي.

﴿ ۲۶۳ ﴾ وَفِي الْمَغْرِبِ بِسَكْتَةٍ او (فصل دي کوي) په ماښام کي (د اذان او اقامت تر مينځ) په دومره وقفه سره قَدْرَ قِرَاءَةِ ثَلَاثِ آيَاتٍ قِصَارٍ أَوْ ثَلَاثِ خُطُوَاتٍ کوم چي په اندازه د دريو کوچنی آيتونو يا د دريو ګامونو وي (يعني چي په هغومره وقفه کي درې کوچني آيتونه ويل کېدلای سي، يا مثلاً درې ګامه تګ پکښې کېدلای سي).

﴿سَكْتَة﴾ اسم مرة دی له سکوت څخه؛ يو وار چوپېدل، وقفه او ځنډ کول، تم کېدل، او داسي نور.

**تشريح**: د ماښام د اذان او اقامت تر مينځ دومره فصل او وقفه کول پکار دي چي په هغه کي درې کوچني آيتونه يا يو اوږد آيت ويل کېدلای سي، يا درې ګامه تګ پکښې کېدلای سي، يا په بله وينا دومره وقفه چي مؤذن له اذان څخه فارغه سي او صف ته را ورسيږي او د اذان دعاء هم پوره سي.

**يادونه**: خو د روژې په مياشت (رمضان) کي د روژه مات لپاره که د ماښام د اذان او جماعت تر مينځ لس، پنځلس دقيقې فصل وکړی سي، نو په دې کي څه حرج نسته.

## د تثویب تعریف او حکم

﴿۲۶۳﴾ وَيُثَوِّبُ او مؤذن دي (تر اذان وروسته) تثویب کوي كَقَوْلِهِ بَعْدَ الْأَذَانِ "اَلصَّلٰوةُ اَلصَّلٰوةُ يَا مُصَلِّيْنَ" لکه تر اذان وروسته د مؤذن دا وینا (یعني چي داسي ږغ وکړي): "لمونځ. لمونځ (یا په بله وینا: لمونځ درېږي) اې لمونځ کونکو!".

**لغات:** ﴿تَثْوِيْب﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: راګرځېدل، راګرځول، دویم ځل کول (بیا کول).
﴿الصلاة، الصلاة﴾ پر دې فتحه او ضمه دواړه ویل کېدلای سي، د فتحې ویلو په صورت کي به مفعول بِهٖ وي د "صَلُّوْا" محذوف، او د ضمې ویلو په صورت کي به مبتدا وي او خبر به یې محذوف وي "قَائِمَةٌ" یا "جَامِعَةٌ"، اصل عبارت به داسي وي "الصلاةُ قائمةٌ یاجامعةٌ".

**تشریح:** د "تثویب" لغوي معنیٰ ده: رجوع کول، راګرځېدل (واپس کېدل). ثواب ته په همدې وجه ثواب ویل کیږي چي هغه د خپل نېک عمل په عوض کي د بنده وطرف ته راګرځي. او د"تثویب"اصطلاحي معنیٰ ده: "العود إلی الإعلام بعد الإعلام" (تر یوه ځل اطلاع ورکولو وروسته دویم ځل [بیا] اطلاع ورکول)، یا په بله وینا یو کار دوه واره کول. او د تثویب دوه صورتونه دي: ① د سهار په اذان کي تر "حی علی الفلاح" وروسته "الصّلاة خیرٌ من النّوم" دوه واره ویل. ② دویم دا چي تر اذان وروسته او د لمانځه شخه لس یا پنځه دقیقې مخکي "حیّ علی الصلاة" یا "الصّلاة، الصّلاة" ویل (یعني چي تر اذان څه وخت وروسته مؤذن د لمونځ د خبر ورکولو بیا یو څو الفاظ ووایي)، یا په خپله ژبه مثلاً داسي ویل چي "لمونځ درېږي، لمونځ درېږي"، د دې تثویب لپاره مخصوص الفاظ نسته او نه په عربي ژبه ویل ضرور دي، بلکي هر داسي خبره چي د هغه ځای خلک په پوه سي چي لمونځ درېږي هغه تثویب دی، مثلاً "قَامتْ، قَامتْ" ویل دا هم تثویب دی، او که ووایي چي "لمونځ درېږي" یا "جماعت درېږي" یا "جماعت تیار دی" دا هم صحیح دي، او که صرف په ټوخي سره خلک پوهېږي دا هم تثویب دی، او دغه دویم صورت د تثویب په خیر القرون کي نه وو، بلکي تر هغه څه وخت وروسته چي د خلکو په حالاتو کي تغیّر پیدا سو او په معاشره (ټولنه) کي غفلت راغلی چي د سهار د لمانځه شخه بغیر په نورو لمنځونو کي د ورېنوالي په حالت کي هم سستي او ناراستي کېدله، نو وروستنیو (متأخرینو) علماوو په ټولو لمنځونو کي تثویب ښه وګڼې او د خلکو د آسانتیا لپاره یې دا حکم جاري کړی چي د تثویب لپاره څه خاص الفاظ نسته بلکي د هري سیمي والا دي پر

خپل عرف عمل کوي. او په کومو الفاظو سره چي د تثويب معنیٰ حاصليږي. هغه الفاظ دي اختياروي او له هغه څخه دي د تثويب کار اخلي.

خو زموږ اکابرينو پر دې جزئيه فتویٰ نه ده ورکړې؛ ځکه تثويب خپله د خلکو د ستي لامل ګرځي؛ ځکه کله چي يو وار تثويب شروع کړی سي، نو په کراره، کراره خلک بيا بل تثويب ته محتاجه کيږي، نو ځکه غوره طريقه همدا ده چي تر اذان وروسته د ضرورت په انداز فصل او وقفه وکړل سي او بيا لمونځ شروع کړل سي، د دې لپاره چي د اذان په اورېدلو سره سمدستي خلک د لمانځه په تياری مشغوله سي (او دويم اعلان يعني تثويب ته انتظار نه سي) او تثويب ته ضرورت پاته نه سي. (تحفة الالمعی ج: ۱، ص: ۵۱۴ بحوالة انوار الایضاح)

## په اذان کي د لحن بيان

| |
|---|
| ﴿ ۲۶۵ ﴾ وَيُكْرَهُ التَّلْحِيْنُ او مکروه دی (په اذان کي) تلحين (يعني د غزلو او سندريز وزمونو په څېر اذان کول). |

**لغات:** ﴿التلحين﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: د تلحين څو معناوي نقل سوي دي: ① په ترنم او خوش آوازی سره ويل، ② د موسيقي او سندريز وزم او طرز مطابق حروف اداء کول، ③ د غزلو او سندرو غوندي آواز کول په دې توګه چي حروف يې بدل سي، مقصوره حروف ممدوه کړل سي او ممدوده حروف مقصوره کړل سي، ④ چونېدل، ⑤ د لحن او غلطی وطرف ته منسوبول. (معجم لغة الفقهاء، مصباح اللغات)

**تشريح:** د تلحين مطلب دلته دا دی چي په داسي وزم او طرز سره اذان کول چي په هغه سره د اذان په کلماتو کي تغيّر راسي يعني د حروفو په اداء او په حرکاتو، سکناتو او مدّ وغيره کي کمي وزياتوب راسي، مثلاً د آواز ښکلي کولو په غرض د "الله اکبر" همزه کش کړي "آکبر" يا "اکبار" يې ووايي او داسي نور. لکه څرنګه چي د غزلو او موسيقی والا سندرغاړی په آواز کي د ښکلا پيدا کولو لپاره په حروفو کي کمي و زياتوب او څه په ټيټ آواز او څه په لوړ آواز سره کلمات وايي (يا په بله وينا اذان د غزلو په طرز بانديې ويل)، نو دا طريقه په اذان کي اختيارول مکروه دي (او که په کلماتو کي پوره تغيّر راسي لکه د "اکبر" پر ځای "اکبار" او داسي نور، دا بيا حرام دي)، خو په داسي خوش آوازی سره اذان کول چي په هغه کي د کلماتو تغيّر نه وي، ډېر ښه او احسن دي، ځکه په دې سره ښه اثر پيدا کيږي او ځيني وخت داسي هم کيږي چي مؤذن په ښه طريقه سره اذان کوي او لهجه او آواز يې داسي زړه راکښونکي وي چي د هغه په وجه خلک مسجد ته را شروع سي، له تاريخ څخه څرګنديږي چي ډېرو کافرانو صرف د اذان په اورېدلو سره اسلام قبول کړی دی، ځکه هغو ته معلومه سي چي په کوم اذان کي چي

دومره ښکلا او ښکنه ده چي صرف د هغه په آواز سره موږ بې اختیاره کیږو، نو دا اذان چي په کوم مذهب کي دی، په هغه مذهب کي به څومره ښکلا او ښکنه وي، نو په دې توګه همدا اذان د هغو لپاره د اسلام قبلولو ذریعه ګرځېدلې ده.

## د بې اودسه کس د اذان او اقامت حکم

﴿۲۶۶﴾ وَإِقَامَةُ الْمُحْدِثِ وَأَذَانُهُ او (مکروه دی) د بې اودسه کس اقامت او د هغه اذان.

**تشریح**: د بې اودسه کس د اذان په باره کي دوه روایتونه نقل سوي دي: د یوه روایت مطابق د بې اودسه اذان مکروه نه دی، دا ظاهر روایت دی او همدا صحیح دی، او د بل روایت مطابق مکروه دی. او پاته سو د بې اودسه کس اقامت مکروه دی. (شفاء الارواح)

## د جنب د اذان حکم

﴿۲۶۷﴾ وَأَذَانُ الْجُنُبِ او (مکروه دی) اذان د جنب.

**لغات**: ﴿صَبِيٌّ﴾ کوچنی، کوم چي د هلکوالي حدّ ته رسېدلی نه وي، جمع: صِبیان.

**تشریح**: که د جنابت په حالت کي څوک اذان وکړي، نو مکروه تحریمي دي او د داسي اذان راګرځول مستحب دي او په دې حالت کي اقامت کول په درجه اولیٰ مکروه تحریمي دي. (مراقی الفلاح مع الطحطاوی ص: ۱۰۸)

## د نا پوهه کوچني د اذان حکم

﴿۲۶۸﴾ وَصَبِيٍّ لَا يَعْقِلُ او (مکروه دی اذان) د داسي بچي کوم چي نه پوهیږي (عقل او پوهه نه لري).

**تشریح**: کوم کوچنی که په څه نه پوهیږي، د هغه اذان مکروه دی، بلکي صحیح کیږي نه، نو ځکه د هغه راګرځول پکار دي، او که کوچنی پوهیږي، نو بېله کراهته د هغه اذان صحیح دی.

## د لېوني او نشه کس د اذان حکم

﴿۲۶۹﴾ وَمَجْنُونٍ وَسَكْرَانٍ او (مکروه دی اذان) د لېوني او نشه کس.

**تشریح**: د لېوني اذان په دې وجه مکروه دی چي هغه (په اذان سره) د کوم شي وطرف ته بلنه ورکوي په نې لمونځ، په هغه خپله نه پوهیږي، همدارنګه د نشې په حالت کي اذان کول هم مکروه دي. او که دغه کسان اذان وکړي، نو مستحب دا ده چي راوګرځول سي.

## د ښځي د اذان حکم

﴿۲۷۰﴾ وَامْرَأَةٍ او (مکروه دی اذان) د ښځي.

**تشریح**: د ښځي اذان مکروه دی، لکه څرنګه چي د ﴿۲۴۹﴾ نمبر مسئلې په آخر کي هم ذکر سوه، چي د ښځي د آواز هم پرده ضروري ده.

## د فاسق د اذان حکم

﴿۲۷۱﴾ وَفَاسِقٍ او د فاسق.

**تشریح**: فاسق د ګناه کبیره کونکي ته وایي، مثلاً څوک چي ږیره خریي، یا ږیره کونډی کوي، هغه فاسق دی او اذان او اقامت یې مکروه دي، خو د را ګرځولو ضرورت یې نسته. (عالمګیري ج:۱، ص:۵۴)

## په ناستي د اذان کولو حکم

﴿۲۷۲﴾ وَقَاعِدٍ او د ناست کس (اذان هم مکروه دی).

**تشریح**: په ناستي اذان کول مکروه دي او د هغه را ګرځول مستحب دي، خو که منفرد د خپل لمانځه لپاره اذان کوي، نو په ناسته اذان کولو کي هم څه حرج نسته. (طحطاوي ص:۱۰۸)

## د اذان او اقامت په مینځ کي خبري کول

﴿۲۷۳﴾ وَالْكَلَامُ فِي خِلَالِ الْأَذَانِ وَفِي الْإِقَامَةِ او (مکروه دي) خبري کول د اذان او اقامت په دوران کي وَيَسْتَحِبُّ إِعَادَتُهُ دُوْنَ الْإِقَامَةِ او مستحب دي د اذان را ګرځول، نه د اقامت.

**تشریح**: د اذان او اقامت په دوران کي خبري کول مکروه دي او د اذان را ګرځول مستحب دي، نه د اقامت، همدارنګه د اذان او اقامت په دوران کي د سلام جواب ورکول هم مکروه دي. (انوار الایضاح)

## د جمعي په ورځ د ماپښین د لمانځه لپاره اذان او اقامت کول

﴿۲۷۴﴾ وَيُكْرَهَانِ لِظُهْرِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فِي الْمِصْرِ او مکروه دي دا دواړه (اذان او قامت) د ماپښین د لمانځه لپاره د جمعي په ورځ په ښار کي.

**تشریح**: له کوم چا څخه چي د جمعي لمونځ پاته سي، نو ښکاره خبره ده چي اوس به هغه د ماپښین لمونځ کوي، نو د هغه لپاره ځانته اذان او اقامت کول مکروه دي، په هر هاسي ځای کي چي هلته د جمعي لمونځ کیږي، همدارنګه هلته د جمعي د امام له فارغېدلو څخه مخکي یا وروسته دِ ماپښین

لمونځ په جماعت سره کول مکروهِ تحریمي دي، جلا، جلا دي د ماپښین لمونځ وکړي بغير له اذان او اقامت څخه. (انوار الايضاح)

## د قضائي لمانځه او اذان لپاره د اذان او اقامت کولو حکم

﴿۲۴۵﴾ وَيُؤَذِّنُ لِلْفَائِتَةِ وَيُقِيمُ او اذان دي کوي د فوت سوي (قضائي) لمانځه لپاره او اقامت دي (هم) کوي وَكَذَا لِأُوْلَى الْفَوَائِتِ او همدارنګه (اذان او اقامت دي کوي) د ډېرو فوت سوو (قضائي) لمنځونو (داداء کولو په وخت کي) داول لمانځه لپاره وَ كُرِهَ تَرْكُ الْإِقَامَةِ دُوْنَ الْأَذَانِ فِي الْبَوَاقِيْ او مکروه دي اقامت پرېښول، نه اذان په پاته (قضائي) لمنځونو کي إِنِ اتَّحَدَ مَجْلِسُ الْقَضَاءِ که چيري د قضاء راوړلو مجلس يو وي (يعني ټول قضائي لمنځونه په يوه مجلس کي راګرځول کيږي).

**تشريح**: که څوک قضاء سوي لمونځ راګرځوي، نو اذان او اقامت دي دواړه وکړي، که دواړه پرېږدي، نو دا مکروه دي، کم از کم په اقامت سره قضائي لمونځ اداء کول پکار دي. او که له يوه څخه زيات لمنځونه قضاء سوي وي، نو د اول لمانځه لپاره دي اذان او اقامت دواړه وکړي او په پاته لمنځونو کي ورته اختيار دی چي که اذان او اقامت دواړه کوي او که صرف اقامت کوي. او اقامت پرېښول مکروه دي، فرمايي چي دا مذکوره تفصيل هغه وخت دی کله چي ټول قضائي لمنځونه په يوه وار اداء کول کيږي، خو که مجلس يې متحد نه وي، بلکي په بېلابېلو وختونو کي يې اداء کوي، يعني هر لمونځ په جلا وخت کي راګرځوي، نو بيا به د هر لمانځه لپاره اذان او اقامت کوي. په دې صورت کي اذان پرېښول مکروه دي.

## د اذان د جواب حکم او تفصيل

﴿۲۴۶﴾ وَإِذَا سَمِعَ الْمَسْنُوْنَ مِنْهُ او کله چي سنت اذان واوري (يعني داسي اذان کوم چي په خپل وخت کي شروع سي او پر سنت طريقه وي چي لحن (تلحين) نه پکښې کيږي، څکه که اذان له وخت څخه مخکي (يې وخت) اوسي يا د غزلو او موسيقي الحانو (وزمونو) په څېر اذان کول کيږي، نو داسي اذان مسنون نه دی. نو فرمايي که څوک مسنون اذان واوري) أَمْسَكَ وَقَالَ مِثْلَهُ نو اوريدونکی دي ودريږي (يعني له خبرو وغيره څخه دي ځان ونيسي) او د مؤذن په څېر (کلمات) دي ووايي (يعني د هغه سره موافق دي د اذان کلمات شروع کړي) وَحَوْقَلَ فِي الْحَيْعَلَتَيْنِ او حوقله (يعني "لاحول ولاقوة الا بالله") دي ووايي په "حَيَّ عَلَى

الصلوة او حيّ على الفلاح" کي "وَقَالَ: صَدَقْتَ وَبَرَرْتَ أَوْ مَا شَاءَ اللهُ عِنْدَ قَوْلِ الْمُؤَذِّنِ الصَّلوٰةُ خَيْرٌ مِّنَ النَّوْمِ او "صدقت وبررت" يا "ماشاء الله" دي ووايي د مؤذن د "الصلوة خير من النوم" ويلو په وخت کي ثُمَّ دَعَا بِالْوَسِيْلَةِ فَيَقُوْلُ بيا دي د وسيلې دعاء وغواړي نو (داسي) دي ووايي اَللّٰهُمَّ اي الله! رَبَّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ د دغه پوره بلني څښتنه (مالکه)! وَالصَّلوٰةِ الْقَائِمَةِ او د دائمي (همېشه درېدونکي) لمونځ څښتنه! آتِ مُحَمَّدَنِ الْوَسِيْلَةَ وَالْفَضِيْلَةَ ورکړه! محمد ﷺ ته وسيله او فضيلت (بهتري) وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَّحْمُوْدَنِ الَّذِيْ وَعَدْتَّهٗ او واستوه (ورسوه)! محمد ﷺ و هغه مقام محمود (ښه ځای) ته چي د هغه وعده مو ور سره کړې ده.

**تشريح**: د اذان جواب ورکول واجب دي او که مستحب دي، په دې باره کي اختلاف دی. بعضو واجب ور ته ويلي دي، ليکن ظاهر او معتمد مذهب دا دی چي په ژبه سره جواب ورکول مستحب دي او په عمل سره جواب ورکول (يعني مسجد ته ورتلل) سنت مؤکده دي په سخت تأکيد سره يعني د واجب په څېر. لهذا کوم څوک چي له مسجد څخه بهر وي، د هغه لپاره عملي جواب يعني مسجد ته تګ ضروري دی او زباني جواب يعني مذکوره کلمات ويل مستحب دي.

دلته فرمايي چي که څوک د اذان آواز واوري، نو که څوک يې نه واوري مثلاً ليري وي يا کوڼ وي، نو پر هغه د اذان جواب ورکول نشته، که څه هم پوهيږي چي اذان کيږي، همدارنګه د مسنون قيد يې لګولی دی، لهذا که د سنت طريقې خلاف اذان وسي، مثلاً له وخت څخه مخکي وسي يا يې حروف کم و زيات ووايي، يا ښځه اذان وکړي، نو د داسي اذان جواب ورکول مستحب نه دي.

**أمسك**: يعني کله چي سنت اذان واوري، نو اورېدونکی دي ودرېږي (ځان دي ونيسي) يعني له خبرو او هر داسي کار څخه دي ځان ونيسي کوم چي د اذان اورېدلو او د هغه په جواب کي خلل اچونکی وي، لهذا نه دي چا ته سلام کوي او نه دي د سلام جواب ورکوي يعني مناسب نه دي، خلاف اولیٰ دي، تر دې چي که د قرآن کريم تلاوت کوي، نو هغه دي بند کړي او د اذان په جواب ورکولو دي مشغوله سي، دا افضل دي، که تلاوت کوي، نو هم جائز دي. (عمدة الفقه، حاشيه، بحوالة شفاء الارواح)

**وقال مثله**: د اذان جواب دا دی چي کوم کلمات مؤذن وايي، هغه دي اورېدونکی هم وايي، خو حيعلتين يعني د "حي على الصلاة" او "حي على الفلاح" په جواب کي دي "لاحول ولاقوة إلا بالله" وايي (چي مسجد ته د رسېدلو او لمونځ کولو قوت د الله ﷻ له طرفه دی چي د هغه له توفيق او حفاظت څخه

بغیر مسجد ژه دا نه سم کولای ). او که د حیعلتینْ په جواب کي اوریدونکی هم حیعلتین ووایي، نو دا به د استهزاء غونډي وي (ځکه دا دواړه د امر په صیغه سره دي او معنی یې ده "راسئ د لمانځه او کامیابی پر طرف". او بنکاره ده چي که څوک ووایي چي "راسئ د لمانځه پر طرف" او اوریدونکی هم ورته ووایي "راسئ د لمانځه پر طرف" نو دا به د استهزاء په څیر وي)؛ ځکه کومه خبره چي د امر په صیغه سره ویل سوې وي، نو هغه خبره په هاغه الفاظو سره راګرځونکی استهزاء کونکی ګڼل کیږي. نو ځکه د حیعلتین په جواب کي دي حوقله وایي. (شفاء الارواح)

**د "الصلاة خیر من النوم" جواب**: د سهار په اذان کي چي کله مؤذن "الصلاة خیر من النوم" ووایي، نو له بعضي اسلافو څخه نقل سوي دي چي اوریدونکي دي په جواب کي "صدقتَ وبررتَ" ووایي، او بعضي علماؤ د دې سره د "وَبِالْحَقِّ نَطَقْتَ" (تا حق وویل) الفاظ هم زیات کړي دي. (شامي ج:۲، ص:۶۷)

**د اذان دعاء**: تر اذان وروسته دي هغه دعاء وغواړي کوم چي په متن کي مذکوره ده. او د بیهقي په روایت کي د دې دعاء په آخر کي د "إِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيعَادَ" الفاظ هم نقل سوي دي.

الوسیلة: "وسیله" په جنت کي د یو ستري درجې مقام دی. نبي کریم ﷺ فرمایي چي "وسیله" په جنت کي یوه درجه ده کوم چي هغه د الله تعالیٰ په مؤمنو بندګانو کي صرف یوه ته حاصلیږي او ما ته اُمید دی چي هغه بنده به زه یم. نو کوم څوک چي زما لپاره د "وسیلې" دعاء غواړي، د هغه لپاره به زما شفاعت واجب وي. (شفاء الارواح)

والفضیلة: دا خو یا د "وسیله" تفسیر دی، یا یوه بله درجه ده، او ځیني خلک چي تر "الفضیلة" وروسته د "الدرجة الرفیعة" الفاظ زیاتوي، په حدیث شریف کي د هغه څه اصل نسته. (حاشیه)

مقاماً محموداً: د "مقام محمود" وعده الله ﷻ په دې آیت مبارک کي کړې ده ﴿عَسَىٰ أَنْ يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُودًا﴾ (بني اسرائیل:۷۹)، دا مقام په تمام انبیاؤ علیهم السلام کي صرف د نبي ﷺ لپاره خاص دی، د دې په تفسیر کي مختلفه اقوال نقل سوي دي. خو صحیح هغه دی کوم چي په صحیح حدیثو کي خپله له رسول ﷺ څخه نقل سوی دی، دا مقام د "شفاعت کبریٰ" دی چي د محشر په میدان کي چي کله ټول انسانان جمع سي او له هر نبي او پیغمبر څخه به د شفاعت خواست کوي، نو ټول انبیاء علیهم السلام به عذر پیش کړي، صرف نبي کریم ﷺ ته به دا مقام ورکول سي چي د تمام بني آدم شفاعت به وکړي. (معارف القرآن)

❀ ❀ ❀

**مسئله**: آیا د آذان په دعاء کي لاسونه پورته کول ثابت دي او که نه؟

په فتاوی حقانیه (ج۲، ص ۴۰۸) کي وايي: له اذان څخه وروسته د وسیلې دعاء د کولو په وخت کي لاسونه مه پورته کوئ، بلکي بغیر د لاسو پورته کولو څخه دعاء غواړئ. البته که چیري څوک لاسونه پورته کړي، دعاء وغواړي، نو هم څه پروا نه لري او نه دا د سنتو په خلاف عمل دی. (وکذا ذکر فی فتاوی فریدیه ج ۱، ص ۳۴۷)

او همداسي په کفایت المفتي (ج۳، ص ۴۷) کي وايي: چي د اذان په دعاء کي د لاسو په پورته کولو کي څه پروا نسته. او په کفایت المفتی (ج۳، ص ۵۴) کي وايي: له اذان څخه وروسته په دعاء کي د لاسونو پورته کولو یو خاص ثبوت نسته.....او په آخر کي وايي: چي دواړي طریقې جائز دي ،یعني که لاسونه پورته کړي او که يې نه کړي پورته، دواړي طریقې جائز او روادي. (کذا ذکر فی فتاوی محمودیه ج ۵، ص ۴۳۲).

او په امداد الفتاویٰ (ج ۱، ص ۱۵۹) کي وايي: د اذان په دعا کی لاسونه پورته کول د سنت خلاف کار نه دی، خو نه پورته کول افضل کار دی. (کذا ذکر فی فتاوی دار العلوم دیوبند ج ۲، ص ۸۷)

**راجح قول**: راجح او مختاره قول دا دی چي د اذان په دعاء کي سنت کار دا دی چي لاسونه پورته نه سي؛ ځکه له رسول الله ﷺ څخه په دغه دعاء کي لاسونه پورته کول ثابت نه دي، او څوک چي په دې دعاء کي لاسونه پورته کول ثابتوي په عمومیاتو سره، یعني چي په عامو دعاګانو کي لاسونه پورته کیږي نو په دې دعاء کي به هم پورته کیږي، نو دا قیاس لغو او باطل دی؛ ځکه خاص فعل د علیه السلام مبارک په دغه دعاء کي نه پورته کول د لاسونو وو، لهذا کله چي له علیه السلام مبارک څخه په دې دعاء کي دلاسونو پورته کول ثابت نه سوه، نو زموږ لپاره هم سنت کار په دې دعاء کي نه پورته کول د لاسو دی؛ ځکه خصوص د فعل د علیه السلام مبارک اُسوهٔ حسنه ده هر هغه چا لره چي رجوع د الله ﷻ او دورځي د آخرت لري. (فیض الباري ج: ۲، ص: ۱۶۷)



# بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ وَأَرْكَانِهَا

## (دا) فصل د لمانځه د شرطونو او ارکانو (په بیان کې) دی

**تشریح**: مخکې تر دې مصنف رَحِمَهُ الله طهارت بیان کړی کوم چې د لمانځه لپاره شرط دی. تر هغه وروسته یې د لمانځه وختونه بیان کړل؛ ځکه هغه له اسبابو او شرائطو څخه دي. بیا یې د اذان بیان وکړی؛ ځکه چې هغه د لمانځه لپاره اعلام او اخبار دی. اوس په دې باب کې د لمانځه شرطونه او ارکان بیانوي.

**د "شرط" لغوي او اصطلاحي معنیٰ**: شُرُوط جمع د شَرْط ده، د شرط لغوي معنیٰ ده: نښه، علامت

او د شرط اصطلاحي معنیٰ ده: «ما یتوقف علیه وجود الشئ ولم یکن داخلاً فیه»، (یعني شرط هغه خارجي شي ته وایي چې پر هغه د بل شي وجود موقوفه (ولاړ) وي، خو هغه په دې شي کې داخل نه وي). لکه اودس چې په لمانځه کې داخل نه دی، خو د لمانځه وجود او صحت پر او داسه موقوف دی. همدارنګه استقبال قبله، عورت او داسې نور، دا شیان د لمانځه له حقیقت او ماهیت څخه خارج دي.

**د "رکن" لغوي او اصطلاحي معنیٰ**: أرکان جمع د رُکْن ده، د رکن لغوي معنیٰ ده "د یو شي قوي او مضبوط اړخ، قوت او غلبه، پایه (ستون).

او اصطلاحي معنیٰ یې ده: «ما لا یقوم الشيء إلا به»، (یعني په کوم څه سره چې یو شی ولاړ وي، یعني هغه شی چې یو بل شی په پر هغه قائم او موقوف وي، یا په بله وینا: هغه شی چې پر هغه د بل شي دار ومدار وي)، همدارنګه بله اصطلاحي معنیٰ یې دا نقل سوې ده (د شي هغه اجزاء چې له هغوی څخه د شي حقیقت او ماهیت مرکب وي)، لکه قیام (ولاړه)، قرائت، رکوع او سجده، آخره نسته، دا هغه اجزاء دي چې له دوی څخه د لمانځه حقیقت مرکب دی او د لمانځه مدار پر همدوی دی، لهذا کوم فرائض چې په لمانځه کې دننه وي یعني د لمانځه په ماهیت کې داخل وي، هغه ته د لمانځه ارکان ویل کیږي، که له دوی څخه یو رکن هم موجود نه سي، نو لمونځ نه کیږي.

(په لنډه توګه دا چې له شرائطو څخه مراد هغه فرائض دي کوم چې تر لمانځه مخکې اداء کیږي. او کوم فرائض چې په لمانځه کې دننه کیږي هغه ته ارکان ویل کیږي).

**یادونه**: مصنف رَحِمَهُ الله د لمانځه د صحت لپاره اوویشت (۲۷) شیان ذکر کړي دي، خو د فقهي په نورو کتابونو کې مثلاً امام قدوري رَحِمَهُ الله او داسې نورو شپږ شرطونه او شپږ ارکان ذکر کړي دي چې ټول دوولس (۱۲) کیږي، د دغه تعارض حل دا دی چې د دې حضراتو مقصد په اصل کې تقریب دی

يعني چي مجموعاً د دوولسو (۱۲) شيانو يادول د يادونكي طالب لپاره آسانه وي. د دوی مقصود صرف هغه نه دي او نه يې د ماسوا نفي كول مقصود دي، او د نور الايضاح د مصنف رحمه الله پيش نظر د هغه تمام امورو بيانول دي چي لمونځ گزار ته له اول څه تر آخره د هغوی رعايت كول ضروري دي او پر هغوی د پاسه د لمانځه د صحت لازم دی، بلكي دا فرائض په اووېشت شيانو كي هم منحصر نه دي، بلكي له دې څخه هم زياتېدلای سي. (مراقي الفلاح ص: ۱۱۲، حاشيه)

## د لمانځه د صحت شرطونه په يوه جدول كي (د مصنف رح د ترتيب مطابق)

| نمبر | شرائط | نمبر | شرائط |
|---|---|---|---|
| ۱ | له حدث (اصغر او اكبر) او له نجاست څخه بدن، جامه او ځای پاكېدل | ۱۵ | د فرضي لمانځه په دوو ركعتو كي او د نفلي لمانځه او وترو په ټولو ركعتو كي قرآن ويل |
| ۲ | عورت پټېدل | ۱۶ | ركوع كول |
| ۳ | مخ پر قبله كېدل | ۱۷ | پر داسي شي سجده كول كوم چي حجم والا وي او چي په هغه باندي تندی قرار ونيسي |
| ۴ | په خپل وخت كي لمونځ كول | ۱۸ | د سجدې ځای به د پښو اېښوولو له ځای څخه تر نيم شرعي گز (ذراع) لوړ نه وي |
| ۵ | د وخت داخلېدل | ۱۹ | دواړه لاسونه او دواړه زنگنونه (پر ځمكه) اېښوول، د صحيح روايت مطابق |
| ۶ | نيت كول | ۲۰ | په سجده كي د پښو څه گوتي پر ځمكه اېښوول |
| ۷ | تكبير تحريمه بېله فصله ويل | ۲۱ | ركوع پر سجده مخكي كول |
| ۸ | تكبير تحريمه په ولاړي او ركوع ته ټيټېدو څخه مخكي اداء كول | ۲۲ | له اولي سجدې څخه دومره پورته كېدل چي ناستي ته نژدې سي، د صحيح روايت مطابق |
| ۹ | نيت به د تكبير تحريمه په وخت كي وي، نه وروسته | ۲۳ | دويمه سجده كول |
| ۱۰ | تحريمه به داسي وايي چي خپله يې واوري، د صحيح مذهب مطابق | ۲۴ | د تشهد په اندازه آخره ناسته كول |
| ۱۱ | د مقتدي لپاره د متابعت نيت كول | ۲۵ | آخره ناسته تر ټولو اركانو په آخر كي اداء كول |
| ۱۲ | فرض متعينول | ۲۶ | ټوله اركان په بيداری كي اداء كول |
| ۱۳ | واجب متعينول، خو د نفلو تعيين شرط نه دی | ۲۷ | د لمانځه د كيفيت او د هغه د تمام فرائضو فرض كېدلو اعتقاد به يې وي |
| ۱۴ | له نفلو څخه بغير نور په ټوله لمنځونو كي قيام (ولاړه) كول | | |

## د لمانځه د صحت شرطونه، طهارت

﴿٢٧٧﴾ لَابُدَّ لِصِحَّةِ الصَّلٰوةِ مِنْ سَبْعَةٍ وَّعِشْرِيْنَ شَيْئًا چاره نسته د لمانځه د صحيح کېدو لپاره له اووه ويشت (٢٧) شيانو څخه (يعني د لمانځه د صحت لپاره ٢٧ شيان شرط او ضروري دي) اَلطَّهَارَةُ مِنَ الْحَدَثِ (١) له (کوچنى او لويى) بې اودسيا څخه پاکېدل وَ طَهَارَةُ الْجَسَدِ وَالثَّوْبِ وَالْمَكَانِ او د بدن، کپړې (جامې) او ځاى پاکېدل مِنْ نَجِسٍ غَيْرِ مَعْفُوٍّ عَنْهُ له داسې نجاست څخه کوم چې معاف کړى سوى نه دى (يا په بله وينا: دومره نجاست کوم چې تر معفو مقدار زيات وي) حَتّٰى مَوْضِعِ الْقَدَمَيْنِ وَالْيَدَيْنِ وَالرُّكْبَتَيْنِ وَالْجَبْهَةِ تر دې چې (ضروري د "ځاى" په پاکوالي کې پاکېدل د) ځاى د ايښوولو د دواړو پښو او د دواړو لاسونو او زنګونو او تندي عَلَى الْأَصَحِّ د صحيح ترين قول مطابق.

**تشريح:** مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چې د لمانځه د صحيح کېدو لپاره اووه ويشت (٢٧) شيان ضروري دي، خو څه مخکې موږ ووېل چې دا شرطونه په اووېشت کې منحصر نه دي، بلکې له دې څخه هم زيات دي او کومو حضراتو چې شپږ شرطونه او شپږ رکنونه ذکر کړي دي، د هغه وجه مو هم ذکر کړه، نو ځکه چې مصنف رَحِمَهُ الله کوم اووېشت شرائط بيان کړي دي، دا ټول د لمونځ ګزار لپاره ضروري دي.

الطهارة من الحدث إلخ: اول شرط دا دى چې لمونځ ګزار به له حدث اکبر او حدث اصغر څخه پاک وي، حدث اکبر يعني جنابت وغيره چې د هغه په وجه غسل فرض کيږي او حدث اصغر يعني بې اودسي (کوچنى بې اودسيا)، نو پر چا چې غسل فرض وي پر هغه غسل کول او د چا چې اودس نه وي پر هغه لمونځ کول د لمانځه د صحيح کېدو لپاره شرط دي، همدارنګه د لمونځ ګزار بدن او جامه او د لمانځه ځاى له نجاست حقيقيه څخه پاکېدل، برابره ده نجاست غليظه وي او که خفيفه وي، کله چې نجاست له معفو عنهٔ مقدار څخه زيات لګېدلى وي (يعني دومره مقدار چې هغه معاف نه دى. چې د هغه بيان په باب الانجاس کې په (١٩٩) نمبر مسئله او (٢٠٠) نمبر مسئله کې تېر سو)، لهذا که نجاست غليظه د يوه درهم په اندازه يا تر دې کم لګېدلى وي او نجاست خفيفه د کپړې يا بدن له څلورمې حصې څخه کم لګېدلى وي، نو لمونځ کيږي، لېکن مکروه به وي. او د لمانځه د ځاى د پاکېدلو مطلب د قيام او سجود ځايونه دي، يعني د دواړو قدمونو، دواړو لاسونو، دواړو زنګنو او تندي ځاى به پاک وي، پر کوم ځاى وغيره چې لمونځ کول کيږي، د هغه ټوله ځاى پاکېدل د لمانځه د صحت لپاره شرط نه دي.

❀❀❀

## پر خوشبایو تېل سوې ځمکه د لمونځ کولو حکم

**مسئله**: که پر ځمکه مخکې خوشبایې تېل سوي وي او وروسته بیا پر هغه ځمکه دومره پاکه خاوره واچول او وتېل سي چې خوشبایي بالکل پټ سي او د هغوی بوی وغیره د پاسه نه محسوسیږي، نو پر هغه ځمکه لمونځ کول جائز دي، او که د خوشبایو بوی محسوسیږي، نو هلته د پاک شي له هوارولو څخه بغیر لمونځ کول نه صحیح کیږي. (هندیه ج:۱، ص:۶۲، حلبی کبیر ص:۲۰۲، کتاب المسائل ص:۲۵۳)

## د عورت پټول

﴿۲۷۸﴾ وَ سَتْرُ الْعَوْرَةِ (۲) او (همدارنګه شرط دي د لمانځه د صحت لپاره) د عورت پټول وَلَا يَضُرُّ نَظَرُهَا مِنْ جَيْبِهِ وَ أَسْفَلِ ذَيْلِهِ او (د لمانځه صحت ته) نقصان نه کوي عورت ته کتل له خپل ګرېوان څخه او (یا) د لمني د لاندي خوا څخه.

**لغات**: ﴿ذَيْل﴾ لمن، د جامې لاندېنۍ حصه، جمع: أَذْيَالٌ و ذُيُوْلٌ.

**تشریح**: له عورت څخه مراد د سړي او ښځي د بدن هغه حصه ده چې د هغه پټول فرض دي او ښکاره کول یې شرعاً حرام دي، نو د "ستر العورة" مراد دا دی چې د کومي حصې پټول فرض دي، د هغه پټول د لمانځه د صحیح کېدو لپاره شرط دي برابره ده یوازي لمونځ کوي، یا د خلکو مخته لمونځ کوي. د سړي عورت له نامه (ناف) څخه د زنګنو تر لاندي حصې پوري دی، نو (ناف) په عورت کي داخل نه دی او زنګون په عورت کي داخل دی، لهذا د هغه پټول شرط او فرض دي، او د آزادي ښځي ټوله بدن عورت دی ما سوا د هغې له مخ، دواړو ورغوو او دواړو پښو څخه، نو د څومره بدن پټول چې فرض دي، که له هغه څخه د اندام د څلورمې حصې په اندازه لڅ سي، نو لمونځ نه صحیح کیږي، په دې شرط چې د یوه رکن یعني د درې واره سبحان الله ویلو په اندازه لڅ پاته سي.

ولا یضر الخ: په دې سره دا راښیي چې په لمانځه کي خپل عورت له نورو خلکو څخه پټول شرط او فرض دي چې بهر به نه ښکاره کیږي او له خپل ځان څخه پټول فرض نه دي، لهذا که څوک صرف قمیص (کمیس) واغوندي او له ازار (لنګ) څخه بغیر لمونځ وکړي او قیمص یې داسي وي چې که هغه په خپل ګرېوان کي وګوري نو خپل عورت وریني، نو په دې سره لمونځ نه فاسدیږي (لیکن قصداً له ګرېوان وغیره څخه خپل عورت ته کتل مکروه تحریمي دي). (شفاء الارواح بحوالهٔ حاشیه)

## مخ پر قبله کېدل

﴿۲۷۹﴾ وَاسْتِقْبَالُ الْقِبْلَةِ (۳) او (شرط دي دلمانځه دصحت لپاره) قبلې ته مخ کول فَلِلْمَكِّيِّ الْمُشَاهِدِ فَرْضُهُ إِصَابَةُ عَيْنِهَا نو دمکې شريفې اوسېدونکی کوم چې (د کعبې شريفې) ليدونکي وي، د هغه لپاره فرض عينِ کعبې (خاص کعبې) ته سيده کېدل دي وَلِغَيْرِ الْمُشَاهِدِ جِهَتُهَا او دنه ليدونکي لپاره (فرض) د کعبې وطرف ته مخ کول دي وَلَوْبِمَكَّةَ که څه هم هغه (نه ليدونکی) په مکه کې وي عَلَى الصَّحِيْحِ دصحيح قول مطابق.

**اللغات:** ﴿القبلة﴾ قبله هغه خاص جهت او خوا ده چې د هغه وطرف ته لمونځ کول کيږي کوم چې له ځمکې څخه تر اوومآسماني پوري منل سوی دی چې په افغانستان او پاکستان کې هغه دمغرب طرف دی، او خاص هغه تعمير چې دهغه وطرف ته مخ کول کيږي کوم چې په توره پرده سره پوښل سوی دی، هغه ته کعبه شريفه (بيت الله) وايي، نو قبله هغه تعمير نه دی، بلکې هغه ځای دی چې پر هغه چاپېره د کعبې تعمير دی، لهذا که خدا نخواسته دا تعمير ونړيږي، نو بيا هم صرف د هغه ځای وطرف ته مخ کول لازم دي.

**تشريح:** مخ پر قبله کېدل (استقبالُ القبله) هم دلمانځه دصحت له شرطونو څخه يو شرط دی دهر لمانځه لپاره، برابره ده اداء وي، قضاء وي، فرض وي، يا نفل وي، يا دجنازې لمونځ، يا سجدهٔ تلاوت او داسې نور وي په ټولو کې مخ پر قبله کېدل ضروري دي. که څوک قصداً بېله څه عذره قبله پرېږدي او بل طرف ته لمونځ وکړي، نو کفر دی.

فللمكي إلخ: په مکه شريفه کې داوسېدونکي لپاره قبله دا ده چې کوم څوک په مسجد حرام کې دننه لمونځ کوي او کعبه شريفه (بيت الله)ويني، يا پر داسې لوړ عمارت يا غره باندې لمونځ کوي چې له هغه ځايه کعبه شريفه صفاويني، نو دهغه لپاره دعينِ کعبې شريفې وطرف ته لمونځ کول ضروري دي(طحطاوي ص،۱۱۶)، (دحج او درش په ورځو کې په حرم شريف کې دننه او بهر دېر خلګ دقبلې وطرف ته په توجه کولو کې لاپروايي کيږي، لهذا هلته دې په خصوصي توګه داستقبال القبله خيال ساتل کيږي).

ولغير المشاهد إلخ: کوم څوک چې کعبه شريفه نه ويني. هغه که دمکې په ښار کې دننه وي او که د دنيا په بل ځای کې وي، دهغه لپاره دعينِ کعبې وطرف ته مخ کول لازم نه دي. بلکې دهغه لپاره قبله دکعبې جهت (دکعبې طرف) دی. (انوار الايضاح، شفاء الارواح)

علی الصحیح: صحیح قول همدا دی کوم چي پورته ذکر سو چي غیرِ مشاهد مکي یعني د مکې په ښار کي هغه کس کوم چي کعبه نه ویني، د هغه لپاره هم قبله صرف د کعبې شریفي جهت دی، خو بعضي حضرات فرمایي چي غیرِ مشاهد مکي به هم د عینِ کعبې وطرف ته مخ کوي. یعني په دې توګه چي که دېوالونه وکښل سي، نو د هغه مخ به د عینِ کعبې وطرف ته وي. خو له مکې څخه بهر د نورو خلکو لپاره دا شرط نه دي، د هغو لپاره صرف مخ پر قبله کېدل کافي دي. (حلبي کبیر ص: ۲۱۷ بتغیر)



## له قبلې څخه معمولي انحراف تاواني نه دی

**مسئله**: له مکې څخه بهر اوسېدونکي نور خلک که د قبلې له طرف څخه معمولي غوندي کوږ لمونځ وکړي، نو هم لمونځ صحیح کېږي، د معمولي انحراف مطلب دا دی چي دومره قدر انحراف او کوږوالی وي چي د لمونځ ګزار د تندي څه حصه د قبلې پر طرف باقي پاته سي، د دې مقدار فقهاؤ دواړو طرفونو ته ۴۵ – ۴۵ درجې مقرر کړی دی. (جواهر الفقه ج:۱، ص: ۲۴۲، احسن الفتاویٰ ج: ۲، ص: ۳۱۳ بحوالهٔ انوار الایضاح)

## لمونځ په خپل وخت کي اداء کول

﴿۲۸۰﴾ وَالوَقْتُ او د وخت کېدل.

**تشریح**: د لمانځه د صحیح کېدو لپاره وخت هم شرط دی، نو که څوک د وخت له داخلېدو څخه مخکي لمونځ وکړي، نو لمونځ یې نه صحیح کېږي، همدارنګه د وخت په تېرېدلو سره اداء فوتېږي.

## د وخت داخلېدو یقین کېدل

﴿۲۸۱﴾ وَاعْتِقَادُ دُخُوْلِهٖ (۵) او (همدارنګه شرط دي) د وخت داخلېدلو عقیده (یقین) لرل.

**تشریح**: او د لمانځه د صحیح کېدو بل شرط د وخت د داخلېدو اعتقاد دی یعني لمونځ ګزار ته به دا یقین وي چي د لمانځه وخت داخل سوی دی، لهذا که هغه ته د وخت داخلېدلو په باره کي شک او شبهه وي (لکه پخوا د ساعت او ګړی د نشتوالي په دَور کي چي به دا حالت وېر پېښېدی) او په همدې د شک په حالت کي لمونځ وکړي، نو لمونځ یې نه کېږي، که څه هم په حقیقت کي یې وخت داخل سوی وي: ځکه چي هغه ته یقین نه وو، بلکي هغه ته په دې باره کي شک او شبهه وه، نو ځکه یې لمونځ نه صحیح کېږي. (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

## د نیت حقیقت

﴿ ۲۸۲ ﴾ وَالنِّيَّةُ (۶) او (همدارنګه شرط دي، دلمانځه) نیت کول.

**تشريح:** دلمانځه د صحیح کېدو لپاره بل شرط دلمانځه نیت کول دي، نیت اراده کولو ته وایي، د لمانځه نیت خالص دالله ﷻ لپاره دلمونځ کولو ارادې ته وایي، د نیت د صحیح کېدو شرط دا دی چي په زړه سره به دا پېژني چي کوم لمونځ کوي او د دې علامه دا ده چي که له هغه شخصه پوښتنه وسي، نو بغیر له سوچ کولو شخصه سمدستي جواب ورکړي چي فلانی لمونځ کوم او که هغه په جواب کي ځنډ وکړي، نو دا به ګڼل کیږي چي هغه ته دې علم نسته چي کوم لمونځ کوي. او څرنګه چي په نیت کي د زړه عمل معتبر دی، نو ځکه په ژبه سره نیت کولو ته ضرورت نسته. ها! که په ژبه سره یې هم وکړي د دې لپاره چي زړه او ژبه دواړه سره جمع سي، نو غوره او مستحب دي. (شفاء الارواح)

## تکبیر تحریمه ویل

﴿ ۲۸۳ ﴾ وَالتَّحْرِيْمَةُ بِلَا فَاصِلٍ (۷) او تحریمه (تکبیرِ تحریمه) ویل بغیر له څه فصل (او ځنډ) څخه.

**تشريح:** او تکبیرِ تحریمه یعني دلمانځه د شروع کولو په وخت کي الله اکبر ویل؛ ځکه تر دغه تکبیر وروسته لمونځ شروع کیږي او خوراک، څښاک، تلل، خبري کول او نور هر ډول کارونه کوم چي له لمانځه څخه منځکي جائز وه، اوس په دې تکبیر سره حرامیږي، نو ځکه دې ته تکبیر تحریمه ویل کیږي، تر دې وروسته مصنف رَحِمَهُ الله د تحریمه د صحیح کېدو لپاره اُووه شرطونه بیان کړي دي، نو فرمایي چي ① د نیت او تکبیر تحریمه تر مینځ به داسې شی فاصل نه وي کوم چي د لمانځه مانع وي، لکه خوراک، څښاک او داسې نور، بلکي تر نیت وروسته به سمدستي تکبیرِ تحریمه ویل کیږي.

﴿ ۲۸۴ ﴾ وَالْإِتْيَانُ بِالتَّحْرِيْمَةِ قَائِمًا قَبْلَ انْحِنَائِهِ لِلرُّكُوْعِ (۸) او (شرط دي) تحریمه اداء کول (ویل) د ولاړي په حالت کي، رکوع ته له کږېدلو څخه مخکي.

**لغات:** ﴿الانحناء﴾ د انفعال د باب مصدر دی: له ولاړي څخه لاندي طرف ته کږېدل (ټیټېدل).

**تشريح:** ② په دې عبارت کي د تکبیرِ تحریمه د صحیح کېدلو دویم شرط بیان سوی دی. که چیري مقتدی په داسي حالت کي جماعت ته ورسیږي چي امام رکوع ته تللی وي او مقتدی په تېزي سره داسي تکبیر ووایي چي لفظ دالله خو د ولاړي په حالت کي اداء کړي او لفظ داکبر هغه

وخت دده له خولې څخه ووځي کله چې دئ رکوع ته کوږ سوی وي (یعني د رکوع حالت ته رسېدلی وي)، نو د دې مقتدي لمونځ شروع نه سو؛ ځکه تړوله تکبیرِ تحریمه د ولاړي په حالت کي ویل شرط او فرض دي، د رکوع په حالت کي ویل سوي تکبیر تحریمه ویلو لره اعتبار نسته. لهذا داسي کس ته پکار دي چي له نوي سره د ولاړي په حالت کي تکبیر ووایي، او که رکعت تېر سي، نو وروسته دي د هغه قضاء راوړي.

## د نیت وخت

﴿۲۸۵﴾ وَعَدَمُ تَأْخِيرِ النِّيَّةِ عَنِ التَّحْرِيمَةِ (۹) او (شرط دي) نیت له تحریمې څخه نه ځنډول (یعني نیت به له تکبیرِ تحریمه څخه نه وروسته کول کېږي).

**تشریح**: د تحریمه د صحیح کېدلو لپاره بل شرط دا دی چي تحریمه به له نیت څخه مخکي نه وي. یعني د لمانځه نیت به له تکبیرِ تحریمه څخه مخکي کوي، نو که چیري اول تکبیرِ تحریمه ووایي او تر هغه وروسته نیت وکړي، نو تکبیرِ تحریمه نه صحیح کېږي.



## آیا په ټوله لمانځه کي د نیت استحضار ضروري دی؟

**مسئله**: د نیت ضرورت صرف د لمانځه له شروع کولو څخه مخکي پرېوځي. وروسته د لمونځ اداء کولو په وخت کي د نیت استحضار ضروري نه دی. یعني وروسته که استحضار د نیت پاته نه سي. نو هم لمونځ اداء کېږي، خو افضل دا ده چي د لمانځه تر آخره پوري خشوع و خضوع او استحضار باقي پاته سي. (الاشباه ج:۱، ص:۸۳، کتاب المسائل ص:۲۷۴)

﴿۲۸۶﴾ وَالنُّطْقُ بِالتَّحْرِيمَةِ بِحَيْثُ يَسْمَعُ نَفْسَهُ (۱۰) او تحریمه ویل په داسي توګه چي دئ (لمونځ ګزار) یې خپله اوري عَلَى الْأَصَحِّ پر صحیح ترین قول (یعني زیات صحیح قول دا دی چي تکبیر تحریمه به په دومره آواز سره وایي چي خپله یې اوري).

**لغات**: ﴿النُّطق﴾ د ضرب د باب مصدر دی: ګویا کېدل، ویل، خبره کول.

**تشریح**: د تحریمه د صحیح کېدلو لپاره څلورم شرط دا دی چي تکبیرِ تحریمه به په دومره آواز سره وایي چي خپله یې اوري، کله چي کوڼ نه وي، او که هلته شور او ږغ وي، نو دا وربدلو مطلب دا دی چي که شور لیري سي، نو خپل آواز اوري. صرف په زړه کي ویل یا داسي ویل چي خپله یې هم نه اوري کافي نه دي. او کوم څوک چي ګونګی وي، هغه ته د تکبیرِ تحریمه لپاره ژبه ښوروِل واجب نه دي. بلکي صرف د تحریمه په نیت سره د هغه لمونځ شروع کېږي.

علی الأصح: په دې سره د امام کرخي رَحِمَهُ الله له قول څخه احتراز سوی دی؛ ځکه د هغه په نېز صرف د حروفو تصحیح کافي ده، که څه هم هغه خپل آواز نه اوري. (شفاء الارواح)

## د مقتدي نیت او د فرضو او واجبو د تعیین نیت

﴿۲۸۷﴾ وَنِيَّةُ الْمُتَابَعَةِ لِلْمُقْتَدِيْ (۱۱) او (شرط دي، دامام) د تابع کېدو نیت کول د مقتدي لپاره وَتَعْيِيْنُ الْفَرْضِ وَتَعْيِيْنُ الْوَاجِبِ (۱۲، ۱۳) او (شرط دي، په نیت کي) فرض او واجب متعيّن کول (معلومول).

**لغات**: ﴿متابعة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: پېروي کول، اتباع کول، تابعداري کول.

**تشريح**: په دې عبارت کي د تحریمه د صحیح کېدلو لپاره پنځم، شپږم او اووم شرط بیان سوی دی، وتعیین الفرض: یعني د تحریمه د صحیح کېدو لپاره بل شرط دا دی چي په نیت کي به فرض په زړه کي متعيّن کوي، مطلب دا چي فرض لمونځ صرف د لمانځه په نیت سره نه جائز کیږي، بلکي په زړه کي هغه فرض معلومول شرط دي، مثلاً داسي ووېل: چي زه د ماپښین لمونځ کوم، نور د دې سره وخت یا ورځ یو ځای کول ضروري نه دي، مثلاً د نن ورځي یا د دغه وخت د ماپښین لمونځ په نیت کي ویل ضروري نه دي، په دې شرط چي د هغه په زړه کي د دې علم وي چي هغه د همدې وخت د ماپښین یا مازیګر لمونځ کوي.

همدارنګه په واجب لمانځه کي په زړه کي د هغه واجب متعینول هم شرط دي، مثل د وترو لمونځ کوم، یا د نذر، یا د کوچني اختر، یا د لوی اختر، یا د طواف دوه رکعته کوم، په وترو کي دا نیت کول لازم نه دي چي هغه واجب دي، بلکي صرف د وترو نیت کافي دی، که د واجب نیت وکړي، نو منع نه دي بلکي اولیٰ دی، په فرضو او واجبو کي د رکعتونو د شمېر نیت کول هم شرط نه دي؛ ځکه د دوی تعیین د الله له طرفه سوی دی. (شفاء الارواح، بحوالهٔ حاشیه و عمدة)

﴿۲۸۸﴾ وَلَايُشْتَرَطُ التَّعْيِيْنُ فِي النَّفْلِ او په نفلو کي متعيّن والی شرط نه دی.

**تشريح**: په نفلو کي (برابره ده سنت وي او که تراویح وي) مطلق نیت کافي دی، مثلاً فقط داسي ویل: زه لمونځ کوم، نفل یا سنت ویل او د رکعتونو شمېر یادول او وخت متعینول ضروري نه دي، لېکن احتیاط په دې کي دی چي په تراویحو کي د تراویحو نیت وکړي او په سنتو کي دا نیت وکړي چي د نبي ﷺ په اتباع کي لمونځ کوم. (شفاء الارواح)

## قيام (په ولاړه لمونځ کول)

﴿۲۸۹﴾ وَالْقِيَامُ فِيْ غَيْرِ النَّفْلِ (۱۴) او (ضروري ده ارکن ده۱) ولاړه له نفلو څخه بغير په نورو (لمنځونو) کي.

**تشريح:** د لمانځه د صحيح کېدو له شرطونو څخه يو شرط (رکن) قيام يعني په ولاړه لمونځ کول دي، برابره ده فرضي لمونځ وي او که واجب وي لکه وتر، د اخترونو لمونځ او د اصح قول پر بناء د سهار په سنتو کي هم قيام (ولاړه) شرط او فرض ده، په دې شرط چي په قيام او سجده کولو باندي قادر وي، لهذا که څوک په ولاړېدو باندي قدرت نه لري، يا د هغه قدرت لري، لېکن په سجده کولو باندي قدرت نه لري، مثلاً د مرض يا د بوډا والي په وجه په قيام يا سجده باندي قادر نه وي، نو دا فرضي او واجب لمنځونه په ناسته کول جائز دي، له دوی څخه بغير نور په سنتو او په نفلو کي قيام فرض نه ده، هغوی بېله عذره هم په ناسته کول جائز دي، لېکن ثواب نيم ورته حاصلېږي.

## قرائت (په لمانځه کي قرآن شريف لوستل)

﴿۲۹۰﴾ وَالْقِرَاءَةُ وَلَوْ آيَةً (۱۵) او (ضروري ده ارکن ده۱ د لمانځه د صحت لپاره) قرائت کول (قرآن لوستل) که څه هم يو آيت وي فِيْ رَكْعَتَيِ الْفَرْضِ وَكُلِّ النَّفْلِ وَالْوِتْرِ د فرضو په دوو رکعتونو کي او د نفلو او وترو په ټولو رکعتونو کي.

**تشريح:** قرائت يعني قرآن شريف لوستل د فرضي لمنځونو صرف په دوو رکعتونو او د سنتو او نفلو او وترو په ټولو رکعتونو کي فرض دي، څومره مقدار فرض دی؟ نو فرمايي چي د يوه آيت وړېل فرض دي، برابره ده لوی وي او که کوچنی وي، خو شرط دا دی چي لږ تر لږه له دوو لفظونو څخه به مرکب وي لکه ﴿ثُمَّ نَظَرَ﴾ او که صرف يو لفظ وي لکه ﴿مُدْهَامَّتَان﴾ يا صرف يو حرف وي لکه ﴿صٓ﴾، ﴿قٓ﴾ يا دوه حرفه وي لکه ﴿حٰمٓ﴾ يا څو حروف مقطعات وي لکه ﴿كٓهٰيٰعٓصٓ﴾، نو په دې کي د مشايخو اختلاف دی، اصح دا ده چي لمونځ نه صحيح کيږي. (شفاء الارواح)

﴿۲۹۱﴾ وَلَمْ يَتَعَيَّنْ شَيْءٌ مِّنَ الْقُرْآنِ لِصِحَّةِ الصَّلوٰةِ او متعين (تاکل سوی) نه دی يو شی (يو سورت يا يو آيت) له قرآن څخه لمانځه د صحيح کېدلو لپاره.

**تشريح:** مسئله دا ده چي د لمانځه د صحيح کېدلو لپاره له قرآن کريم څخه يو متعين آيت، يا يو متعين سورت وړېل ضروري نه دي، بلکي کوم ځای چي ورته آسانه وي، هغه دي پکښي وايي، خو

سورة الفاتحة (الحمد لله) د فرضو په اولو دوو رکعتو کي او د نفلو او وترو په ټولو رکعتو کي د وجوب په توګه متعيّنه ده، نه د فرض په توګه. (شفاء الارواح)

﴿۲۹۲﴾ وَلَا يَقْرَأُ الْمُؤْتَمُّ او مقتدي به قرائت نه کوي بَلْ يَسْتَمِعُ وَيُنْصِتُ بلکي (دامام د قرائت) اورېدل به کوي او چپ (خاموشه) به پاتېږي وَإِنْ قَرَأَ او که قرائت وکړي (قرآن ولوستي) كُرِهَ تَحْرِيْمًا نو مکروه تحريمي دي.

**لغات:** ﴿مؤتم﴾ د افتعال له بابه اسم فاعل دی، مصدر يې ائتمامٌ دی معنیٰ يې ده: اقتداء کول او مؤتم په اصل کي مُوتَمِمٌ وو، دوه ميمه په يوه کلمه کي سره جمع سوه، يو يې په بل کي پټ (مدغم) کړی. مؤتمٌ سو. ﴿يستمع﴾ د استفعال د باب مضارع ده: اورېدل، ورښا ته غوږ نيول. ﴿ينصت﴾ د افعال د باب مضارع ده، أَنْصَتَ يُنْصِتُ إِنْصَاتًا: ديو شي اورېدلو لپاره چپ کېدل (چپ چاپ اورېدل)، په غور او توجّه سره اورېدل.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي مقتدي به د امام شاته په هيڅ لمانځه کي هم قرائت نه کوي، نه به سورة الفاتحه وايي او نه بل سورت، نه په جهري لمانځه کي او نه په سرّي لمانځه کي؛ ځکه د الله تعالیٰ فرمان دی: ﴿وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا﴾ (يعني کله چي قرآن ويل کېږي، نو تاسي هغه په غور او توجّه سره اورئ او چپ اوسئ!)، په دې آيت کي په ښکاره توګه د قرائت خلف الامام منع سوې ده، نو ځکه جائز نه دی، او د امام قرائت د مقتدي لپاره کافي دی، لهذا که مقتدي قرائت کوي، نو د مکروه تحريمي مرتکب به وي.

## رکوع کول او د فرض رکوع حدّ

﴿۲۹۳﴾ وَالرُّكُوْعُ (۱۶) او (رکن ده دلمانځه د صحت لپاره) رکوع کول.

**تشريح:** دلمانځه د صحت له شرطونو څخه يو شرط کوم چي رکن دی هغه رکوع کول دي. رکوع په هر رکعت کي يو وار کول شرط او فرض دي او د فرض رکوع حدّ دا دی چي سړی دومره کوږ سي چي د هغه سر د بدن د نيمايي په برابرۍ کي راسي (دبدن د نصف په برابر کي راسي)، که يو څوک په رکوع کي له دې څخه کم کوږ سي، نو دې ته به کتل کېږي چي هغه په دې کږېدلو کي قيام (ولاړې) ته زيات نژدې دی، يا د کاملي رکوع وحالت ته زيات نژدې دی، که د رکوع حالت ته زيات نژدې وي، نو د هغه دا رکوع صحيح کېږي او که د قيام حالت نژدې وي، نو رکوع يې معتبره نه ده. (منية. حلبی کبير ص:۲۸۰)

**يادونه:** ډېر خلک د تلوار او تېزي په وجه ناقصه رکوع کوي چي هغه لره اعتبار نشته، دوی بايد پوره تنی مسئله په پام کي وساتي.

## سجده کول

﴿۲۹۳﴾ وَ السُّجُوْدُ عَلٰی مَا يَجِدُ حَجْمَهٗ وَ تَسْتَقِرُّ عَلَيْهِ جَبْهَتُهٗ (۱۷) او سجده کول، پر داسي شي چي ومومندي د هغه شي کلکوالي او چي کرارېږي (درېږي) پر هغه شي د ده تندی (يعني پر داسي شي سجده کول کوم چي کلک او سخت وي چي د لمونځ گزار تندی پر هغه قرار نيسي. نرم او پوست به نه وي چي تندی پکښي ننوځي) وَلَوْعَلٰی كَفِّهٖ أَوْ طَرَفِ ثَوْبِهٖ که څه هم پر خپل ورغوي وي ياد خپلي جامې (کپړې) پر يو طرف (څنډه) باندي وي إِنْ طَهُرَ مَحَلُّ وَضْعِهٖ که چيري د هغه د اېښوولو ځای پاک وي (يعني په دې شرط چي د سجدې ځای به پاک وي).

**لغات:** ﴿حَجْم﴾ مقدار، غټوالی، پرېړوالی، کلکوالی او سختوالی. ﴿جبهة﴾ تندی، جمع: جِبَاهٌ و جَبَهَاتٌ. يجد: د ضمير مرجع ساجد دی، کفه، ثوبه: دواړه ضميرونه ساجد ته راجع دي. وضعه أی الكف أو الطرف. ﴿طَرَف﴾ (بفتح الطاء والراء): طرف، ژی (کناره، څنډه)، د يو شي انتها (آخري سر).

**تشريح:** فرمايي چي سجده کول هم رکن او فرض دي، او د سجدې د صحت لپاره دا شرط دي چي سجده به پر داسي ځای وي کوم چي کلک وي او پر هغه تندی قرار نيسي، همدا وجه ده که پر وابنو يا پمبې يا داسي بل شي باندي سجده وکړي، نو نه صحيح کېږي، لېکن که پر ځمکه خپل لاس کښېږدي او د هغه پر ورغوري سجده وکړي، نو صحيح کېږي، همدارنگه که د خپلي جامې پر يو طرف سجده وکړي، نو هم سجده اداء کېږي، په دې شرط چي د سجدې ځای پاک وي.



## د غلې پر گونۍ سجده کول

**مسئله (۱):** که پر داسي گونۍ (بورۍ) سجده وکړي چي په هغه کي غنم، وريجي يا داسي بل شی پکښي اچول سوي او پوره پکښي تخته کړل سوي وي، نو څه حرج نشته؛ ځکه په داسي گونۍ کي د غلې د تخته کېدلو او محدود کېدلو په وجه سر په هغه باندي قرار نيسي. (طحطاوي ص: ۱۲۶. کتاب المسائل ص: ۲۹۱)

**مسئله (۲):** که واوره سره تخته نه کړل سي يعني نه کښېکاږل سي او دومره نرمه وي چي د سجدې پر مهال د لمونځ گزار مخ په ننوځي او د تندي اېښوولو پر مهال يې کلکوالی نه محسوسېږي، نو پر

داسي واوره سجده جائز نه ده، او که واوره دومره سره تخته او کېښکاړل سي چي نور نه تخته کېږي او کلکوالی يې محسوسېږي او مخ نه په ننوځي، نو بیا سجده جائز ده.

همدا حکم د وښو دی، هغه که وچ وابښه وي، که لانده وي، نو که څوک پر ځمکه وابښه واچوي او دومره يې تخته کړي چي نور نه تخته کېږي، نو سجده باندي جائز ده، کنې جائز نه ده، لنډه دا چي د داسي شیانو په هکله اصل قاعده دا ده چي دومره به سره تخته کول کېږي (کېښکېښل کېږي) چي بالکل له نورو تخته کېدو او کېښکېښل کېدو څخه ووځي او په پوره توګه سختي او کلکوالی پکښي پیدا سي. (فتح المصلی)

## په سجده کي د تندي او پزي د ایښوولو حکم

| |
|---|
| ﴿۲۹۵﴾ وَسَجَدَ وُجُوْبًا بِمَا صَلُبَ مِنْ أَنْفِهٖ وَبِجَبْهَتِهٖ او سجده به کوي د وجوب (واجب کېدو) په توګه د خپلي پزي پر سخته (کلکه) حصه او پر خپل تندي (يعني په سجده کي د دواړو لګول واجب دي) وَلَا يَصِحُّ الْاِقْتِصَارُ عَلَى الْأَنْفِ إِلَّا مِنْ عُذْرٍ بِالْجَبْهَةِ او صرف په پزه باندي اکتفا کول صحیح نه دي مګر په تندي کي د يو عذر په وجه (مثلا تندی يې زخمي وي، دانه وربانديختلي وي، نو بيا صرف په پزه باندي اکتفا کول صحيح دي). |

**لغات**: ﴿صلُب﴾ د کرُم د باب ماضي ده، صَلَابَةٌ: سختېدل، کلکېدل، ﴿أنف﴾ پزه، جمع أُنُوْفٌ.

**تشریح**: فرمايي چي د سجدې د ثبوت لپاره دا خبره ضروري ده چي تندی او د پزي هډوکی پر ځمکه ولګېږي (تندی او پزه لګول فرض دي)، تر دې وروسته يې صرف پر پزه د سجدې کولو مسئله بیان کړې ده، نو که څوک په سجده کي صرف پزه پر ځمکه کښېږدي او تندی نه کښېږدي، نو هم د هغه سجده کېږي، په دې شرط چي د پزي هډوکی پر ځمکه لګېدلی وي، خو صرف په پزه باندي اکتفا کول بېله عذره مکروه تحریمي دي او که یوازي د پزي نرمه حصه د ځمکي سره ولګوي، نو سجده يې معتبر نه ده.



## صرف پر تندي سجده کول

**مسئله (۱)**: که څوک صرف پر تندي سجده وکړي او پزه پر ځمکه نه ولګوي، نو هم د هغه سجده اداء کېږي، لېکن بېله عذره داسي کول مکروه دي. (بدائع الصنائع ج:۱، ص:۲۸۴، حلبي کبير ص:۲۸۲، کتاب المسائل ص:۲۸۹)

## صرف پر زنه یا بار خوګانو سجده کول

**مسئله** (۲): که یو څوک په سجده کې د تندي یا پزې پر ځای خپل زنه یا بار خوګان پر ځمکه ولګوي، نو سجده نه اداء کیږي، که څه هم دا عمل د عذر په وجه وي. (حلبي کبیر ص:۲۸۳، الجوهرة النیرة ج:۱، ص:۴۷، کتاب المسائل ص:۲۸۵)

﴿۲۹۶﴾ وَعَدَمُ ارْتِفَاعِ مَحَلِّ السُّجُوْدِ عَنْ مَوْضِعِ الْقَدَمَيْنِ بِأَكْثَرَ مِنْ نِصْفِ ذِرَاعٍ (۱۸) او (شرط دی د لمانځه د صحت لپاره) د سجدې د ځای نه لوړېدل د دواړو پښو له ځای څخه زیات تر نیم ګز (یعني دا شرط او ضروري ده چې د سجدې ځای به د پښو له ځای څخه تر نیم شرعي ګز زیات پورته نه وي) وَإِنْ زَادَ عَلَى نِصْفِ ذِرَاعٍ او که تر نیم ګز زیات سي لَمْ يَجُزِ السُّجُوْدُ نو (بیا) سجده نه جائز کیږي إِلَّا لِزَحْمَةٍ سَجَدَ فِيْهَا عَلَى ظَهْرِ مُصَلٍّ صَلَاتَهُ مګر د ګڼي ګوڼي (رش) په وجه چې په هغه کې سجده وکړي د داسې کس پر شا کوم چې همدا لمونځ کونکی وي (یعني کوم لمونځ چې سجدلونکی کونکې کوي، هغه کس هم هاغه لمونځ کوي، مثلاً دواړه د ماپښین لمونځ کوي، نو په داسې صورت کې د زیاتې تنګۍ او ګڼې ګوڼې په وجه د هغه پر شا سجده جائز ده).

**لغات**: ﴿زحمة﴾ د فتح د باب مصدر دی: ازدحام کېدل (ګڼه ګوڼه کېدل)، په تنګ ځای کې د خلګو تدافع او سره تنګېدل، مراد ځنې د لمونځ ګزارانو ګڼه ګوڼه او تنګوالی دی.

**تشریح**: د لمانځه له شرائطو څخه یو شرط دا دی چې د لمونځ ګزار د سجدې ځای به د پښو له ځای څخه نیم شرعي ګز یعني یو لوېشت زیات لوړ نه وي، که تر دې زیات لوړ وي، نو بېله عذره سجده نه جائز کیږي، خو که څه عذر وي، مثلاً خلګ زیات وي او ځای تنګ وي چې د هغه په وجه د یو چا پر ملا سجده وکړي، نو جائز دي، په دې شرط چې د کوم چا پر ملا یې سجده کړې وي، هغه هم هاغه لمونځ کوي کوم لمونځ چې سجده کونکی کوي، یعني د دواړو لمونځ به یو وي، که له دې دواړو څخه یو شرط موجود نه سي، نو پر ملا سجده کول نه صحیح کیږي. (شفاء الارواح بحوالة حاشیه)

﴿۲۹۷﴾ وَوَضْعُ الْيَدَيْنِ وَالرُّكْبَتَيْنِ فِي الصَّحِيْحِ (۱۹) او د دواړو لاسونو او زنګنو ایښوول (په سجده کې) د صحیح روایت مطابق وَوَضْعُ شَيْءٍ مِنْ أَصَابِعِ الرِّجْلَيْنِ حَالَةَ السُّجُوْدِ عَلَى الْأَرْضِ (۲۰) او (شرط دی) د دواړو پښو له ګوتو څخه څه ګوتې پر ځمکه ایښوول د سجدې په حالت کې وَلَا يَكْفِيْ وَضْعُ ظَاهِرِ الْقَدَمِ او کافي نه دي (د سجدې د صحت لپاره) د پښې بهرنۍ حصه (شا) ایښوول (تر څو چې ګوتې پر ځمکه نه ولګوي).

**تشریح**: په سجده کي دواړه لاسونه او دواړه زنګونان اېښوول سنت دي، نو دلته مراد يو لاس او يوه پښه اېښوول دي (چي يو لاس او يوه پښه لګول شرط او ضروري دي)؛ ځکه د سجدې حقيقت دا دی چي لږ تر لږه تندی، يو لاس، يو زنګون او د يوې پښې څه ګوتي پر ځمکه کېږدي، لهذا که څوک صرف پر يوه پښه بېله عذره سجده وکړي، نو د کراهت سره جائز دي. (شفاء الارواح بحوالة طحطاوي و عمدة الفقه)

ووضع شيءالخ: د سجدې په حالت کي کم از کم د پښې يوه ګوته پر ځمکه اېښوول شرط او فرض دي، ځکه په سجده کي پښه هغه وخت اېښوول کېږي کله چي يې ګوتي ولګول سي (او په سجده کي د ګوتي نس لګول کېږي يعني چي ګوتي د قبلې وطرف ته وېچل سي؛ ځکه همداسي پر ځمکه لګېږي)، او د پښې چي کوم ظاهري حصه ده، صرف هغه اېښوول کافي نه دي؛ ځکه اوس مو ذکر کړه چي په سجده کي پښه همغه وخت لګېږي کله چي يې ګوتي ولګول سي (يا په بله وينا: له پښې اېښوولو څخه مراد همدا د پښي ګوتي اېښوول دي)، که څه هم يوه ګوته وي، لهذا که لمونځ ګزار په سجده کي د يوې پښې يوه ګوته هم پر ځمکه نه ولګوي، نو سجده نه کېږي. (عون الفتاح بحوالة امداد الفتاح. شفاء الارواح)

او علامه شامي رَحِمَهُ الله فرمايلي دي چي "د سجدې په حالت کي د پښې (قدم) د اېښوولو په باره کې درې قوله نقل سوي دي: ① يو دا چي دا فرض دي، ② واجب دي، ③ سنت دي، او له پښې اېښوولو څخه مراد د ګوتو اېښوول دي که څه هم يوه ګوته وي، او زمو د مذهب په کتابو کي اول قول اختيار کړی سوی دی چي پښه اېښوول (يعني کم از کم يوه ګوته يې اېښوول) فرض دي". (عون الفتاح بحوالة فتاوی شامي ج: ۲، ص: ۲۵۸)

﴿۲۹۸﴾ وَتَقْدِيْمُ الرُّكُوْعِ عَلَى السُّجُوْدِ (۲۱) او (شرط دي) رکوع پر سجده مخکي کول.

**تشریح**: يعني د لمانځه په ارکانو کي د ترتيب رعايت کول هم شرط او فرض دي، نو رکوع له سجدې څخه مخکي کول فرض دي، لهذا که اول سجده وکړي، بيا رکوع وکړي، نو دغه سجدې لره هيڅ اعتبار نسته، بلکي تر رکوع وروسته دي بيا سجده راوګرځوي، د دې لپاره چي د دوی ترمينځ کوم ترتيب فرض وي، هغه اداسي او لمونځ صحيح سي، او پر دا سي کس سجدهٔ سهو واجبېږي، او که سجده نه راوګرځوي، نو لمونځ يې فاسدېږي.

## د جلسي بيان

﴿۲۹۹﴾ وَالرَّفْعُ مِنَ السُّجُوْدِ إِلٰى قُرْبِ الْقُعُوْدِ عَلَى الْأَصَحِّ (۲۲) او له سجدې څخه ناستي ته نږدې پوري پورته کېدل، د صحيح ترين قول مطابق (يعني له اولي سجدې څخه دومره را پورته کېدل چي ناستي ته نږدې سي، دا هم شرط دي).

**تشریح**: د اصح مذهب مطابق له اولي سجدې څخه وروسته دومره را پورته کېدل شرط او فرض دي چي ناستي ته نژدې سي، که دومره هم را پورته نه سي، نو لمونځ يې نه کيږي، او واجب دا دي چي له سر را پورته کولو څخه وروسته په اطمينان سره سيده کښېني، بيا بلې سجدې ته ولاړ سي، که داسي نه وکړي، نو لمونځ مکروه تحريمي ګرځي.

د "على الأصح" په قيد سره له غيرِ أصح قول څخه احتراز سوی دی کوم چي د بعضي فقهاؤ قول دی او هغه دا دی چي که صرف تندی هم له ځمکي څخه را پورته کړي او بيا سمدستي دويمي سجدې ته ولاړ سي، نو هم لمونځ کيږي. (شفاء الارواح بحوالۀ طحطاوي)

﴿۳۰۰﴾ وَالْعَوْدُ إِلَى السُّجُوْدِ (۲۳) او (شرط دي) دويمي سجدې ته واپس ګرځېدل (يعني دويمه سجده کول هم فرض دي).

**تشریح**: او دويمي سجدې ته ګرځېدل يعني دويمه سجده کول هم شرط او فرض دي، لکه څرنګه چي اوله سجده کول فرض دي، يعني په هر رکعت کي دوې سجدې فرض دي. (انوار الايضاح بحوالۀ مراقي الفلاح ص: ۱۲۷، عالمګيري ج: ۱ ص: ۷۰)

﴿۳۰۱﴾ وَالْقُعُوْدُ الْأَخِيْرُ قَدْرَ التَّشَهُّدِ (۲۴) او آخره ناسته کول د تشهد په اندازه.

**تشریح**: يعني د رکعتونو له پوره کولو څخه وروسته د تشهد ويلو په اندازه کښېناستل هم شرط او فرض دي، يعني دومره مقدار چي په هغه کي له التحيات څخه تر عبدهٗ ورسولهٗ پوري ويل ممکن وي او تشهد (التحيات) ويل فرض نه دي. (شفاء الارواح)

﴿۳۰۲﴾ وَتَأْخِيْرُهٗ عَنِ الْأَرْكَانِ (۲۵) او آخره ناسته له (ټولو) ارکانو څخه وروسته کول.

**تشریح**: فرمايي چي آخره ناسته (قعدۀ اخيره) له ټولو ارکانو څخه وروسته کول شرط او ضروري دي، يعني د لمانځه آخر د هغه موقع او محل دی، لهذا که له يو چا څخه مثلاً سجده پاته سي او تر آخري ناستي وروسته ورپه ياد سي، نو هغه دي اداء کړي او آخره ناسته دي را وګرځوي او سجدۀ سهو دي هم وکړي، که چيري تر سجدې وروسته آخره ناسته نه را وګرځوي، نو لمونځ فاسديږي. (شفاء الارواح)

## د ويښوالي په حالت کي د لمانځه ارکان اداء کول

﴿۳۰۳﴾ وَأَدَاؤُهَا مُسْتَيْقِظًا (۲۶) او ارکان د ويښوالي (بيدار والي) په حالت کي اداء کول.

**تشریح**: رکوع، سجده او داسي نور ارکان د ويښوالي په حالت کي اداء کول هم شرط دي، نو د خوب په حالت کي اداء سوي ارکان معتبر نه دي، لهذا که د رکوع يا د سجدې په شروع کي ويښ وي، بيا د

رکوع یا د سجدې په حالت کې یا مثلاً په آخره ناسته کې بیده سي، نو هغه لره اعتبار نسته. له نوي سره دې د بیدارۍ په حالت کې هغه اداء کړي او په آخر کې دې سجده سهو هم وکړي. (در مختار مع الشامي ج: ۲، ص: ۱۴۵، ۱۴۶، کتاب المسائل ص: ۲۹۲)



**مسئله**: که رکوع یا سجدې ته د تللو په وخت کې ویښ وي، بیا بیده سي او وروسته بیا د ویښوالي په حالت کې سر راپورته کړي، نو لمونځ یې صحیح کیږي؛ ځکه په خپل اختیار سره رکوع او سجدې ته په تللو او راپورته کېدلو سره اصل فرض اداء سو. (عالمګیري ج: ۱، ص: ۷۰، کتاب المسائل ص: ۲۹۲)

﴿۳۰۴﴾ وَ مَعْرِفَةُ كَيْفِيَّةِ الصَّلٰوةِ (۲۷) او (شرط دي) پېژندل د لمانځه د کیفیت (او طریقې) وَ مَا فِيْهَا مِنَ الْخِصَالِ الْمَفْرُوْضَةِ عَلٰى وَجْهٍ يُمَيِّزُهَا مِنَ الْخِصَالِ الْمَسْنُوْنَةِ او (پېژندل) د هغه صفاتو (شیانو) کوم چي په لمانځه کې فرض دي په داسي توګه (پېژندل) چي هغوی له سنت صفاتو څخه جلا کولای سي (یعني د لمانځه طریقه او په لمانځه کې چي کوم فرض خصلتونه دي. هغوی داسي پېژندل لمونځ ګزار ته معلومېدل چي له سنت خصلتونو څخه یې جلا کولای سي) أَوِ اعْتِقَادُ أَنَّهَا فَرْضٌ یا دا عقیده (یقین) لرل چي دا (خصلتونه یا لمونځ ټول) فرض دي حَتّٰى لَا يَتَنَفَّلَ بِمَفْرُوْضٍ د دې لپاره چي د نفلو په نیت سره فرض شی اداء نه کړي.

**لغات**: ﴿خصال﴾ جمع د خَصْلَةٌ ده: خوی، عادت، صفت.

**تشریح**: ① ... د دې عبارت یو مطلب دا دی چي د لمانځه کیفیت (څرنګوالی) او صفات پېژندل شرط او ضروري دي، یعني په لمانځه کې کوم شی فرض دی او کوم شی سنت دی؟، دا ټول شیان به جلا، جلا ورته معلوم وي؛ ځکه که د فرض او سنت تر منځ تمییز نه سي کولای یعني هر یو جلا، جلا ورته معلوم نه وي، نو کېدلای سي چي کوم شی فرض وي، هغه د سنت په نیت سره اداء کړي او فرض د سنت په نیت سره اداء کول صحیح نه دي. او که دا ورته معلومه نه وي، نو کم از کم دا اعتقاد (عقیده) ساتل فرض دي چي څومره شیان چي په لمانځه کې دي، ټول فرض دي، نو اوس به هیڅ فرض شی د نفلو او سنتو په نیت سره نه اداء کیږي، ها! نفل او سنت شی به د فرضو په نیت سره اداء کیږي او په دې کې څه قباحت نسته.

① ... لېکن د مصنف رَحِمَهُ الله مراد دا پورتنی مطلب بیانول نه دي. بلکې په امداد الفتاح کې چي یې کوم مطلب بیان کړی دی، هغه دا دی چي (خومي) د لمانځه کیفیت پېژندل شرط او فرض دي. یعني

کوم لمنځونه چې فرض یا نفل (سنت) دي، هغوی به ورته معلوم وي او هغوی فرض یا نفل ګڼل. مثلاً د سهار د څلورو رکعتو په باره کې دا پېژندل چې په دوی کې دوه رکعته فرض دي او دوه رکعته سنت دي، دا تفصیل به په لمانځه کې ورته معلوم وي؛ ځکه که دا تفصیل هم ورته معلوم نه وي، نو کېدلای سي چې په فرضو کي د نفلو (سنتو) نیت وکړي او فرض د نفلو په نیت سره نه صحیح کیږي. او که دا تفصیل ورته معلوم نه وي، نو کم از کم دا اعتقاد ساتل شرط دي چې هر لمونځ فرض دی یعني هر لمونځ به فرض ګڼي، نو په دې صورت کې به هیڅ فرض د نفلو په نیت سره اداء کول نه لازمیږي، خو صرف به نفل د فرضو په نیت سره اداء کول لازمیږي، او په دې کې هیڅ قباحت نسته. (شفاء الارواح)

﴿۳۰۵﴾ وَالْأَرْكَانُ مِنَ الْمَذْكُورَاتِ أَرْبَعَةٌ او ارکان له ذکر سوو (اووه ویشت) شیانو څخه څلور دي اَلْقِيَامُ وَالْقِرَاءَةُ وَالرُّكُوعُ وَالسُّجُوْدُ (۱) ولاړه (۲) قرائت (په لمانځه کې قرآن لوستل) (۳) رکوع (۴) او سجده وَقِيلَ: الْقُعُوْدُ الْأَخِيْرُ مِقْدَارَ التَّشَهُّدِ او ویل سوي دي: چې آخره ناسته د تشهد په اندازه (هم رکن ده) وَبَاقِيهَا شَرَائِطُ او پاته (نور) شرطونه دي بَعْضُهَا شَرْطٌ لِصِحَّةِ الشُّرُوْعِ فِي الصَّلٰوةِ بعضې د دوی د لمانځه د شروع د صحیح والي لپاره شرط دي (چې له دوی څخه بغیر په لمونځ شروع کول نه صحیح کیږي) وَهُوَ مَا كَانَ خَارِجَهَا او دا (شرطونه) هغه دي کوم چې د لمانځه څخه بهر دي وَغَيْرُهُ شَرْطٌ لِدَوَامِ صِحَّتِهَا او له دوی څخه بغیر نور (شرطونه) د لمانځه د صحیح والي د باقي ساتلو لپاره شرط دي (چې که هغوی وي. نو لمونځ تر آخره صحیح پاتېږي، کنې ماتیږي).

**تشریح**: یعني کوم اوویشت (۲۷) شرائط او فرائض چې اوس بیان سول، په هغوی کې ارکان صرف څلور دي او بعضو قعدهٔ اخیره (آخره ناسته) په ارکانو کې شمېرلې ده. له دوی څخه بغیر نور ټول شرائط دي، څه شرطونه داسې دي چې له هغوی څخه بغیر د لمونځ شروع کړد سره نه صحیح کیږي او هغوی له لمانځه څخه بهر (دباندې) شرطونه دي لکه؛ د بدن پاکوالی، د عوت پټول، مخ پر قبله کېدل او داسې نور. دغه داسې شرطونه دي چې تر څو تر سره سوي نه وي، د لمانځه شروع کول نه صحیح کیږي. او څه شرطونه بیا داسې دي چې هغوی د لمانځه د صحت باقي پاتېدلو لپاره شرط دي، یا په بله ږنا چې په هغوی سره د لمانځه صحت باقي پاتیږي لکه: رکوع تر قرائت وروسته کول، سجده تر رکوع وروسته کول او ارکان د ویښوالي په حالت کې اداء کول، دغه داسې شیان دي کوم چې د لمانځه د صحت د باقي ساتلو لپاره شرط دي.



# فَصْلٌ (فِيْ لَوَاحِقِهَا)

(دا) فصل دلمانځه دشرائطو دمتعلقاتو (په بیان کي) دي

**تشريح:** په مراقي الفلاح کي مذکوره عبارت داسي نقل سوی دی: فَصْلٌ فِيْ مُتَعَلِّقَاتِ الشُّرُوْطِ وَفُرُوْعِهَا.

## پر داسي کراسته، فرش يا پر داسي بل پنډ شي لمونځ کول چي يو مخ يې مردار وي؟

| |
|---|
| ﴿۲۰۶﴾ تَجُوْزُ الصَّلٰوةُ عَلٰى لَبِدٍ جائز دی لمونځ کول پر داسي کراسته (وغيرها) وَجْهُهُ الْأَعْلٰى طَاهِرٌ وَالْأَسْفَلُ نَجِسٌ چي لوړ (پاسنی) مخ د کراستي پاک وي او لاندي مخ مردار وي. |

**لغات:** ﴿لَبِد﴾ او لَبَد: هغه فرش يا پنډ ټوکر چي د وړيو تر بنه ټکولو او تخته کولو وروسته له وړيو څخه جوړ سوی وي لکه کراسته، نيمڅی، لمڅه، نمله جمع: اللُّبُوْد. او بعضي ويلي دي چي هر داسي پنډ کلک شی او فرش څني مراد دی چي په مينځ کي دوه ځايه کېدلای (پرېکېدلای سي) يعني چي دومره پنډ وي چي د پاک مخ او مردار مخ په مينځ کي يې غچي يا آره يا داسي بل شی تېرېدلای سي او دوه ځايه کېدلای سي. لکه پنډ فرش، پنډه تخته، خښتي (د خښتو فرش) او داسي نور. او که دومره پنډ نه وي. نو پر پاک مخ يې لمونځ نه جائز کيږي.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي که د کراستي يا د يو بل فرش پر يوه مخ (پر يوې خوا) نجاست ولګيږي او لمونځ کونکی د کراستي يا فرش هغه مخ (هغه خوا) واړوي او پر پاک مخ يې لمونځ وکړي، نو د هغه لمونځ جائز دی. په دې شرط چي کراسته او فرش دومره پنډ وي چي د پاک مخ او مردار مخ په مينځ کي يې غچي تېرېدلای سي او له مينځ څخه دوه ځايه کېدلای سي. همدا حکم د هر هغه کلک پنډ شي دی کوم چي په مينځ کې آره کېدلای يا ماتېدلای سي او له مينځ څخه دوه ځايه کېدلای سي، لکه پنډ لرګی، خښته، دژرندي ډبره، د دروازې تخته، چي که يوه خوايې ناپاکه وي او بله خوايې پاکه وي، نو پر هغه لمونځ صحيح کيږي. (ماخوذ از انوار الايضاح. شفاء الارواح. فتح المصلي)

(په کراسته او فرش کي مذکوره قول دامام محمد رحمه الله دی. لېکن د امام ابو يوسف رحمه الله په نېز تر هغه وخته پوري پر داسي کراسته او فرش لمونځ نه صحيح کيږي، تر څو چي کټ نه کړل سي. يعني پاک مخ يې پر مردار نه واړول سي. چي د دوه غبرګي جلمې په څېر وګرځي. او د دوه غبرګي جلمې پر پاک غبرګ لمونځ کول صحيح دي [فتح المصلي]).

## پر داسي استرداره (ذوه غبرګۍ) کپړه لمونځ کول چي استر یې مردار وي؟

﴿۲۰۷﴾ وَعَلٰی ثَوْبٍ طَاهِرٍ وَبِطَانَتُهُ نَجِسَةٌ او (جائز دي لمونځ کول) پر داسي کپړه (جامه) کوم چي پاکه وي او استر یې مردار وي إِذَا كَانَ غَيْرَ مُضَرَّبٍ کله چي استر ور سره ګنډل سوی نه وي.

**لغات:** ﴿بِطَانَة﴾ هغه توکر یا څرمن چي تر جامې یا څرمني لاندي ګنډل سووي وي، استر. دوه غبرګي جامي لاندي غبرګ، جمع: بَطَائِن. ﴿غیر مضرب﴾ مطلب یې دا دی چي کپړه او استر (یا په بله وینا دوه غبرګې جامه) په مینځ کي سره ګنډل سوي نه وي، صرف څلور سره طرفونه (سرونه) یې ګنډل سوي وي، او که دواړه په مینځ او اطرافو ټولو کي سره ګنډل سوي وي، نو هغه مُضَرّب ده.

**تشریح:** فرمایي چي هغه کپړه چي تر هغه لاندي استر (بله کپړه) لګول سوې وي او پاسنۍ حصه (پاسنۍ کپړه) یې پاکه وي، نو پر دې پاکه حصه یې لمونځ کول صحیح دي، په دې شرط چي استر د پاسنۍ کپړې سره ګنډل سوی نه وي یعني داسي وي لکه دوې کپړې چي یوه پر بلې اچول سوي وي (صرف طرفونه او سرونه یې سره ګنډل سوي وي)، همدا ډول مُصَله (جای نماز) یا څادر که دوه غبرګی وي او د هغه د پاسه غبرګ (پاسنۍ کپړه) پاکه وي او لاندینی غبرګ یې ناک وي او دواړه په خپل مینځ کي سره ګنډل سوي نه وي (صرف طرفونه یې سره ګنډل سوي وي)، نو پر هغه هم لمونځ جائز دی (او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز جائز نه دی او احتیاط په همدې کي دی (عمدة الفقه))

## پر داسي کپړه، فرش وغیره لمونځ کول چي یو سر یې مردار وي؟

﴿۲۰۸﴾ وَعَلٰی طَرَفٍ طَاهِرٍ او (جائز دی لمونځ کول د فرش او داسي نورو) پر پاک طرف وَإِنْ تَحَرَّكَ الطَّرَفُ النَّجِسُ بِحَرَكَتِهٖ که څه هم مردار طرف (یې) د پاک طرف په ښورولو سره ښووري عَلَى الصَّحِيْحِ د صحیح قول مطابق.

**لغات:** ﴿طَرَف﴾ (بفتح الطاء والراء): طرف، ژۍ (کناره)، د یو شي انتها (آخري سر).

**تشریح:** یعني داسي فرش، سترنجي، چټایي، یا اوږده مُصله چي یو طرف (یو سر) یې مردار وي او بل طرف (بل سر) یې پاک وي او لمونځ ګزار له مردار طرف څخه را دې خوا ته پر پاک طرف (پاک سر) ودریږي او لمونځ وکړي، نو د هغه لمونځ صحیح دی، برابره ده د هغه فرش، سترنجي وغیره دیوه طرف په ښورولو هغه بل شرط ښوري، که نه، په هر صورت کي د هغه پر پاکي حصې لمونځ صحیح دی (او د اوبو د حوض په څېر یې حکم نه دی؛ ځکه شرط دا دی چي د لمانځه ځای به پاک وي، د نورو ځایو پاکوالی شرط نه دی).

## د داسې لنګوټې او څادر حکم چې يو سر يې مردار وي

﴿۲۰۹﴾ وَلَوْتَنَجَّسَ أَحَدُ طَرَفَيْ عِمَامَتِهِ او که مردار سي د ده (لمونځ ګزار) د لنګوټې يو طرف فَأَلْقَاهُ وَ أَبْقَى الطَّاهِرَ عَلىٰ رَأْسِهِ نو دئ هغه مردار طرف (پر ځمکه) ايله کړي او پاک طرف پر خپل سر پرېږدي وَلَمْ يَتَحَرَّكِ النَّجِسُ بِحَرَكَتِهِ او مردار طرف نه ښورېږي د پاک طرف (يالمونځ ګزار) په ښورېدلو سره جَازَتْ صَلوٰتُهُ نو د ده لمونځ جائز دی وَإِنْ تَحَرَّكَ او که (مردار طرف يې د پاک طرف په ښورولو سره) ښوروي لَاتَجُوْزُ نو لمونځ جائز نه دی.

**تشریح**: مسئله دا ده چې که د لنګوټې يا څادر (پټو) يو سر مردار وي او لمونځ ګزار هغه مردار سر لاندې پر ځمکه ايله کړي او پاک سر يې وتړي او لمونځ وکړي، نو لمونځ يې صحيح کيږي، په دې شرط چې رکوع يا سجدې ته د تللو په وخت کې د لنګوټې يا څادر ناپاک سر د لمونځ ګزار په حرکت سره حرکت نه کوي او نه ښوري بلکې بې حرکته پروت وي، او که د لمونځ ګزار په حرکت سره هغه ښوري، نو لمونځ نه يې صحيح کيږي. (شفاء الارواح)

﴿۲۱۰﴾ وَفَاقِدُ مَايُزِيْلُ بِهِ النَّجَاسَةَ يُصَلِّيْ مَعَهَا او نه موندونکی (نه لرونکی) د داسې شي چې په هغه سره نجاست (مرداري) ليرې کړل سي، هغه دې لمونځ وکړي د دې نجاست سره وَلَا إِعَادَةَ عَلَيْهِ او پر هغه د لمونځ راګرځول نسته (يعني پر هغه واجب نه دي چې دالمونځ بيرته راوګرځوي).

**لغات**: ﴿فَاقِد﴾ د ضرب له بابه د فاعل صيغه ده، فَقَدَ يَفْقِدُ فَقْدًا وفُقْدَانًا: ورکول، معدوم کول، ورکېدل، معدوم کېدل (نيستېدل).

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې که له ناپاکه کپړې څخه بغير د لمونځ ګزار سره بله کپړه نه وي او داسې شی هم موجود نه وي چې په هغه سره نجاست ليرې او صفا کړي، نو په هغه ناپاکه کپړه کې دې لمونځ وکړي، او په دې صورت کې که وروسته د نجاست زائلونکی شی مثلاً اوبه پيدا هم سي، نو هم پر هغه د لمانځه راګرځول ضروري نه دي، که څه هم د لمانځه وخت پاته وي. (مراقی الفلاح مع الطحطاوي ص،۱۲۹)

﴿۲۱۱﴾ وَلَاعَلىٰ فَاقِدِ مَايَسْتُرُعَوْرَتَهُ او نه پر هغه کس (د لمونځ راګرځول واجب دي) کوم چې نه موندونکی وی د داسې شي چې د ده عورت پټ کړي وَلَوْحَرِيْرًا أَوْحَشِيْشًا أَوْطِيْنًا که څه

هم وربښم یا وانبه یا خاوره وي فَإِنْ وَجَدَهُ وَلَوْ بِالْإِبَاحَةِ وَ رُبْعُهُ طَاهِرٌ نو که ومونډي هغه شی که څه هم د مباح کولو (عارت) په توګه وي (یعني دیو څه ګړي لپاره یې یو څوک ورکړي) او د هغه څلورمه حصه پاکه وي لَا تَصِحُّ صَلٰوتُهُ عَارِيًا نو نه صحیح کیږي د ده لمونځ د لڅوالي په حالت کي وَ خُيِّرَ إِنْ طَهُرَ أَقَلُّ مِنْ رُبْعِهِ او اختیار ورکول سوی دی که د هغه شي له څلورمي څخه کمه حصه پاکه وي (یعني په داسي صورت کي ده ته اختیار دی چي که په هغه کپړه کي لمونځ کوي او که په لڅه لمونځ کوي) وَ صَلٰوتُهُ فِيْ ثَوْبٍ نَجِسِ الْكُلِّ أَحَبُّ مِنْ صَلٰوتِهِ عُرْيَانًا او د ده لمونځ کول په پوره مرداره کپړه کي (چي ټوله جامه مرداره وي) ډېر ښه دی د ده تر لمونځ کولو د لڅوالي په حالت کي (یعني په لڅ بدن سره تر لمونځ کولو دا ښه ده چي په مرداره جامه کي لمونځ وکړي. که څه هم هغه جامه ټوله مرداره وي).

**لغات:** ﴿حریر﴾ وربښم، رېښم (رېشم)، ﴿حشیش﴾ وانبه (په اصل کي وچو وښو او بوټو ته وایي).

مفرد: حشیشة. ﴿إباحة﴾ د افعال د باب مصدر دی. أَبَاحَ يُبِيحُ إِبَاحَةً: د دې باب څو معناوي دي: مباح کول (روا کول)، حلال ګرځول. اجازه ورکول دیو کار. فَيُقَالُ: أَبَاحَ الرَّجُلُ مَالَهُ، أی أَذِنَ فِي الْأَخْذِ وَالتَّرْكِ (معجم لغة الفقهاء. مصباح المنير). ﴿عاري﴾ د سمع له بابه فاعل دی. مصدر عُرْيًا: لڅېدل (لڅ کېدل). برېنډ کېدل. عُرْيَان: د صفت صیغه ده په معنیٰ سره د "لڅ"، "برېنډ".

**تشریح:** مسئله دا ده چي که د کپړې د نشتوالي په صورت کي په لڅه لمونځ وکړي او وروسته هغه ته کپړه حاصله سي. نو دوباره لمونځ کول واجب نه دي. که څه هم د لمانځه وخت پاته وي.

ولوحریرًا: یعني که د لمونځ ګزار سره د عورت پټولو لپاره فقط وربښمي کپړه وي. نو هم په هغه وربښمي کپړې سره عورت پټول او لمونځ کول پر هغه لازم دي. په داسي صورت کي په لڅه لمونځ کول نه جائز کیږي؛ او که یې وکړي. نو لمونځ به راګرځوي؛ ځکه وربښمي جامه که څه هم د سړي لپاره حرامه ده. خو بیا هم په هغه کي په لمونځ کولو سره فرض اداء کیږي (عالمګیري ج:۱. ص:۵۹).

همدارنګه که د عورت پټولو لپاره د درختو غټې پاڼي (بلګونه). اخبار (ورځپاڼه). پلستیک. یا سترنجي یا ختة او داسي نور وي. نو هغه دي پر خپل عورت ولګوي او لمونځ دي پکښې وکړي. له هغه څخه بغیر په لڅه لمونځ کول نه جائز کیږي.

فإن وجد ه الخ: يعني كه لڅ انسان ته كپړه حاصله سي او د هغې څلورمه حصه يا تر دې زياته پاكه وي، كه څه هم هغه د څه ګړي لپاره امانتاً ور كول سوې وي، نو پر لمونځ ګزار په هغه كپړه كي لمونځ كول لازم دي، كه په لڅه لمونځ وكړي، نو لمونځ يې نه صحيح كيږي، او كه داسي كپړه ورته حاصله سي چي د هغې له څلورمي حصې څخه كمه حصه پاكه وي، نو ده ته اختيار دی چي كه په كپړه كي لمونځ كوي او كه په لڅه (د ناستي په حالت كي) لمونځ كوي.

وصلاته في الخ: يعني كه كپړه ټوله ناپاكه (مرداره) وي، يا له څلورمي حصې څخه كمه پاكه وي، نو هغه ته اختيار دی لكه اوس چي ذكر سوه، لېكن افضل او غوره دا ده چي په هغه ناپاكه كپړه كي لمونځ وكړي؛ ځكه په لڅه د لمونځ كولو په مقابله كي په نجسه كپړه كي لمونځ كول افضل دي. (شفاء الارواح)

## كه د بعضي عورت د پټولو لپاره يو شی پيدا سي، نو څه حكم دی؟

﴿۲۱۲﴾ وَلَوْ وَجَدَ مَا يَسْتُرُ بَعْضَ الْعَوْرَةِ او كه وموندي څه داسي شی كوم چي د عورت بعضي (لږ) حصه پټولای سي وَجَبَ اِسْتِعْمَالُهُ نو د هغه استعمال (اغوستل) واجب دي وَ يَسْتُرُ الْقُبُلَ وَالدُّبُرَ او پټوي به (په هغه شي سره) د مخ او شا شرمګاه فَإِنْ لَمْ يَسْتُرْ إِلَّا أَحَدَهُمَا او كه هغه شی نه سي پټولای مګر صرف يو د دوی (يعني يوازي دُبر يا قُبل پټولای سي) قِيْلَ: يَسْتُرُ الدُّبُرَ نو ويل سوي دي: چي دُبُر دي پټه كړي (په هغه سره) وَقِيْلَ: الْقُبُلَ او ويل سوي دي (يعني بل قول دا دی): چي قُبل (د مخ شرمګاه) دي پټه كړي.

تشريح: د عبارت حاصل دا دی چي كه د لڅ انسان سره صرف دومره كپړه وي چي په هغه سره ټوله عورت نه سي پټېدلای، بلكي د عورت بعضي حصه پټولای سي، نو پر لمونځ ګزار د هغه استعمالول واجب دي، په لڅه لمونځ كول جائز نه دي. لهذا تر ټولو مخكي دي په هغه كپړه سره د شا او د مخ شرمګاه پټه كړي او كه صرف دومره كپړه وي چي په هغه سره صرف يا قُبل (د مخ شرمګاه) پټېدلای سي يا دُبر، يعني صرف يوه حصه پټولای سي، نو په دې كي اختلاف دی. بعضو ويلي دي چي په هغه سره دي دُبر پټه كړي؛ ځكه د ركوع او سجدې په حالت كي د هغه ښكاره كېدل زيات بد لږي، او بعضو ويلي دي چي په هغه كپړه سره دي قُبل پټه كړي؛ ځكه چي قُبل (د مخ شرمګاه) د قبلې و طرف ته وي او هيڅ اندام د هغه په مخ كي نه وي (دا اختلاف صرف په اولی كېدو او غيرِ اولی كېدو كي دی). (شفاء الارواح. بحوال طحطاوي)

## لڅ کس به څنګه لمونځ کوي؟

﴿۲۱۳﴾ وَنُدِبَ صَلوٰةُ الْعَارِیْ جَالِسًا بِالْإِیْمَاءِ او مستحب دي د لڅ کس (لپاره) لمونځ کول په ناستي په اشاره کولو سره مَادًّا رِجْلَیْهِ نَحْوَ الْقِبْلَةِ په داسي حال کي چي غوړولي يې وي خپل دواړي پښي د قبلې وطرف ته فَإِنْ صَلّٰی قَائِمًا بِالْإِیْمَاءِ نو که هغه په ولاړي په اشاره کولو سره لمونځ وکړي (يعني چي رکوع او سجده په اشاره سره کوي) أَوْ بِالرُّکُوْعِ وَالسُّجُوْدِ يا په رکوع او سجده سره لمونځ وکړي صَحَّ نو (هم) صحيح دي.

**لغات:** ﴿مَادًّا﴾ د نصر له بابه فاعل دی، د حال کېدلو پر بناء منصوب دی، مصدر يې مَدًّا دی: غوړول، غځول. ﴿الایماء﴾ د افعال د باب مصدر دی: اشاره کول.

**تشریح:** مسئله دا ده چي که د چا سره هيڅ کپړه نه وي، نه پاکه کپړه او نه مرداره کپړه، نو داسي کس دي په ناستي لمونځ وکړي او رکوع او سجده دي په اشاره سره وکړي، او د ناستي په هيئت کي دوه قوله دي: ① يو قول خو خپله مصنف رَحِمَهُ الله ذکر کړی دی چي په ناسته کي دي خپل دواړي پښي د قبلې وطرف ته وغځوي (او دواړه لاسونه دي د دواړو پښو په مينځ کي يعني پر عورت غليظه باندي کښېږدي)، ② دويم قول دا دی چي څه ډول چي په التحيات کي کښېني، هغسي دي په ناستي په اشاره سره لمونځ وکړي، بعضي حضراتو دا دويم قول ته ترجيح ورکړې ده؛ ځکه په دې کي پرده زياته ده او د قبلې وطرف ته د پښو له غځولو څخه هم بچ کيږي.

او که څوک د لڅوالي په حالت کي په ولاړي په اشاره سره لمونځ وکړي، نو دا هم جائز دي، همدارنګه که له اشارې څخه بغير په رکوع او سجده سره يې وکړي، نو هم جائز دي. (شفاء الارواح)

## د سړي د عورت اندازه

﴿۲۱۴﴾ وَعَوْرَةُ الرَّجُلِ مَا بَيْنَ السُّرَّةِ وَمُنْتَهَى الرُّكْبَةِ او د سړي (نارينه) عورت (د بدن) هغه حصه ده کوم چي د نامه (نو) او د زنګون د آخري حصې تر مينځ ده (يعني تر نامه د لاندي څخه بيا د زنګون تر آخره پوري).

**تشریح:** له دې ځايه مصنف رَحِمَهُ الله د عورت حد بيانوي، فرمايي چي د سړي عورت له نامه څخه لاندي تر زنګنو پوري دی، لهذا نُو (ناف) په عورت کي داخل نه دی، نو د هغه پټول فرض نه دي او زنګونان په عورت کي داخل دي، نو د هغوی پټول فرض دي.

## د مينځي د عورت اندازه

﴿۳۱۵﴾ وَتَزِيدُ عَلَيْهِ الْأَمَةُ الْبَطْنَ وَالظَّهْرَ او مينځه دي پر هغه نس او شا (هم) زيات کړي (يا په بله ترجمه دا چي: مينځه پر هغه زياته ده په نس او شا سره، يعني د سړي له عورت څخه زائد د مينځي نس او شا هم عورت دي).

**لغات:** ﴿بطن﴾ نس، جمع: بُطُوْن، ﴿ظهر﴾ شا، ملا، جمع: أَظْهُر ظُهُوْرٌ. عليه: د ضمير مرجع الرجل دی.

**تشريح:** يعني د سړي چي کومه حصه عورت ده، هغه د ښځي هم ده، او له دې څخه بغير د مينځي نس او شا هم په عورت کي داخل دي، لهذا د هغوی پټول هم فرض دي، خو له دې حصې څخه بغير د مينځي نور بدن عورت نه دی، د نس حدّ له سينې څخه تر نامه پوري دی. سينه او د سينې په مقابل کي د شا حصه عورت نه ده، او که د سړي دومره حصه ښکاره وي او لمونځ وکړي، نو صحيح دي.

## د آزادي ښځي د عورت اندازه

﴿۳۱۶﴾ وَجَمِيعُ بَدَنِ الْحُرَّةِ عَوْرَةٌ او د آزادي ښځي ټوله بدن عورت دی (چي پټول يې فرض دي) إِلَّا وَجْهَهَا وَكَفَّيْهَا وَقَدَمَيْهَا مګر نه د هغې مخ او دواړه ورغوي (خپړي) او دواړه پښې.

**تشريح:** په دې عبارت کي د آزادي ښځي عورت بيانوي کوم چي مينځه نه وي، نو فرمايي چي د آزادي ښځي له مخ او دواړو ورغوو او دواړو پښو څخه بغير نور ټوله بدن عورت دی. همدارنګه د ښځي د سر وېښتان او له سر څخه را ايله وربښتان (همدارنګه د ښځي چوټي وغيره) هم عورت دي او دواړه ليڅي يې هم عورت دي. دلته بحث د لمانځه د ستر سره متعلق دی چي په لمانځه کي کومه حصه پټول فرض دي؟ نو ويې فرمايل: چي په لمانځه کي د ښځي لپاره مخ، دواړه ورغوي او دواړه پښې پټول فرض نه دي، له دې څخه بغير نور ټوله بدن پټول فرض دي، او له لمانځه څخه بهر له پرديو خلکو (اجنبيانو) څخه مخ پټول هم فرض دي. (شفاء الارواح)

## څومره عورت ښکاره کېدل مانع د لمانځه دي

﴿۳۱۷﴾ وَكَشْفُ رُبُعِ عُضْوٍ مِّنْ أَعْضَاءِ الْعَوْرَةِ يَمْنَعُ صِحَّةَ الصَّلٰوةِ او لڅېدل (ښکاره کېدل) څلورمه حصه د يو اندام د عورت له اندامونو څخه منع کوي د لمونځ صحيح کېدل (يعني که له عورت والا اندامونو څخه د يوه اندام څلورمه حصه ښکاره سي، نو لمونځ نه ورسره صحيح کيږي).

**تشريح:** د عورت والا اندامونو وضاحت دا دی چي هر ورون د زنګون سره يو اندام دی، د ښځي دواړه پنډۍ د بجلکو سره دوه جلا، جلا اندامونه دي، دواړه تيان کله چي پوره را پورته سوي وي، جلا، جلا اندامونه دي، ذَکَر يو جلا اندام دی، همدارنګه خصيتين (خوټي) مستقل اندام دی، له نامه څخه

لاندي د ذکر تر بېخه پوري يو جلا اندام دی، هر يو کوناټی جلا اندام دی، دبر له کوناټو څخه جلا يو اندام دی (حاشيه)

مسئله دا ده چي که د لمونځ کولو په دوران کي د عورت والا له اندامونو څخه د يو اندام څلورمه حصه ښکاره سي او د يوه رکن يعني د درې واره "سبحان الله" ويلو په اندازه ښکاره پاته سي. نو لمونځ فاسديږي. مثلاً د ښځي څلورمه حصه پنډۍ، يا څلورمه حصه ورون، يا څلورمه حصه غوږ، يا څلورمه حصه سر، يا د يو بل اندام څلورمه حصه ښکاره سي او د يوه رکن په اندازه ښکاره پاته سي، نو لمونځ فاسديږي. او که تر ښکاره کېدلو وروسته يې سمدستي پټ کړي، يعني د يوه رکن له مقدار څخه يې مخکي، مخکي پټ کړي، نو لمونځ نه فاسديږي. (شفاء الارواح)

## بېلابېل ځايونه ښکاره کېدل (لڅېدل)

﴿۲۱۸﴾ وَلَوْ تَفَرَّقَ الْإِنْكِشَافُ عَلَى أَعْضَاءٍ مِنَ الْعَوْرَةِ او که بېلا بېل سي لڅوالی د عورت پر اندامونو (يعني د عورت له اندامونو څخه بېلابېل (مختلف) ځايونه لڅ سي) وَكَانَ جُمْلَةُ مَا تَفَرَّقَ يَبْلُغُ رُبْعَ أَصْغَرِ الْأَعْضَاءِ الْمُنْكَشِفَةِ او هغه ټوله بېلا بېل لڅوالی (مختلف لڅ ځايونه) رسيږي د څلورمي حصې ته د کوچني اندام له لڅو اندامونو څخه (يعني د لڅ کوچني اندام څلورمي حصې ته رسيږي) مَنَعَ نو (لمونځ) منع کوي وَإِلَّا فَلَا کنې نه (يې منع کوي، يعني که هغه بېلابېل لڅ ځايونه د کوچني اندام څلورمي حصې ته نه رسيږي، نو بيا لمونځ ور سره ممنوع نه دی).

**تشريح:** که عورت له مختلفو ځايونو څخه لڅ او ښکاره سي، مثلاً جامه د عورت پر بېلابېلو ځايونو څيري سوې وي، او د هغوی ټولو مقدار يعني ټوله لڅ (ښکاره) ځايونه د لڅ کوچني اندام د څلورمي حصې سره برابر وي، نو لمونځ نه صحيح کېږي، مثلاً د ښځي د غوږ لږ حصه ښکاره سي. همدارنګه د ورېښتانو لږ حصه يې ښکاره سي او د سينې يې هم لږ حصه ښکاره سي. نو په دې اندامونو کي کوچنی غوږ دی، که چيري دا ټوله ښکاره ځايونه د غوږ د څلورمي حصې په اندازه نه وي، بلکي تر هغه کم وي، نو لمونځ يې صحيح کېږي، او که د غوږ د څلورمي حصې په اندازه يا تر هغه زيات وي (او دومره وخت لڅ پاته سي چي په هغه کي يو رکن اداء کېدلای سي يعني په څومره وخت کي چي درې تسبيحات يعني درې واره "سبحان ربی العظيم" يا درې واره "سبحان ربی [illegible] کېدلای [illegible] نو [illegible] نه صحيح کېږي او فاسديږي. يا مثلاً ذکر، خُصيتين او کوناټي [illegible] کوچنی اندام خُصيتين (خوټې) دي. لهذا که دا ټوله ښکاره ځايونه د [illegible] لمونځ نه صحيح کېږي او فاسديږي.

❀ ❀ ❀

## په لمانځه کې قصداً عورت ښکاره کول

**مسئله (۱)**: که څوک قصداً د لمونځ کولو په دوران کې فقط يوه ثانيه هم د عورت له اندامونو څخه يو اندام د څلورمې حصې په اندازه ښکاره کړي، نو سمدستي لمونځ باطليږي. د هغه لپاره د درېو تسبيحاتو مهلت نشته. (عالمگيري ج:۱ ص:۵۸، کتاب المسائل ص:۲۵۶)

## په تنګه جامه کې لمونځ کول

**مسئله (۲)**: داسې تنګه جامه چې په هغه کې د عورت والا اندامونو هيئت ښکاره سي، که څه هم مکروه او د بې حيائۍ دليل دی، خو بيا هم که جامه دومره پنډه وي چې د ننه بدن نه ليدل کيږي، نو په هغه کې لمونځ صحيح دی، لېکن د اجنبي سړي لپاره داسې تنګې جامې والا ښځې ته د جامې د پاسه هم کتل جائز نه دي. (حلبي کبير ص:۲۱۴)

## په نرۍ (باريکه) جامه او پوړنې کې لمونځ کول

**مسئله (۳)**: که جامه داسې نرۍ (باريکه) وي چې له هغې څخه د عورت والا اندامونه صفا ښکاره کيږي، نو په داسې نرۍ جامه کې لمونځ نه صحيح کيږي، همدارنګه په داسې نرۍ پوړنۍ (پړونې) کې لمونځ کول هم صحيح نه دي. (عالمگيري ج:۱، ص:۵۸، شامي ج:۲، ص:۷۶، ۷۷)

## که څوک له استقبال القبله څخه عاجزه وي، نو څه حکم دی؟

﴿۲۱۹﴾ وَمَنْ عَجَزَ عَنِ اسْتِقْبَالِ الْقِبْلَةِ لِمَرَضٍ او څوک چې عاجزه سي له مخ پر قبله کېدو څخه د يو مرض (ناروغی) په وجه أَوْ عَجَزَ عَنِ النُّزُوْلِ عَنْ دَابَّتِهِ يا عاجزه سي له راښوه کېدو څخه له خپل سپارليه (يعني له خپل سپارلي (اوښ او داسې نورو) څخه نه سي راښوه کېدلای) أَوْ خَافَ عَدُوًّا يا بېرېږي له يو دښمن څخه فَقِبْلَتُهُ جِهَةُ قُدْرَتِهِ وَأَمْنِهِ نو د داسې کس قبله د ده د قدرت او د ده د امن جهت (طرف) دی (يعني د داسې کس لپاره قبله هغه طرف دی کوم طرف ته چې د ده قدرت وي او کوم طرف ته چې له دښمن څخه په امن وي).

**تشريح**: مسئله دا ده چې که يو څوک د معقول عذر په وجه په لمانځه کې مخ پر قبله نه سي کېدلای، نو له هغه څخه د استقبال القبله شرط ساقطيږي او هغه چې پر کوم جهت قادر وي هغه طرف ته لمونځ کولای سي، معقول عذر په لاندې توګه کېدلای سي:

①... مريض دومره کمزوری وي چې خپله مخ پر قبله نه سي کېدلای. او داسې مرستيال هم نه وي چې هغه مخ پر قبله کړي.

②... یو څوک له سپارلي څخه خپله نه سي راښوه کېدلای، او یو مرستیال هم موجود نه وي چي هغه راښوه کړي، یا له راښوه کېدلو څخه وروسته دور ختلو قدرت نه لري. برابره ده د کمزوري په وجه وي، یا د سپارلي د سرکښوالي په وجه وي.

③... مخ پر قبله د لمونځ کولو په صورت کي د ځاني یا مالي نقصان سخته خطره وي.

④... یا سړی پر سپارلي سپور وي او لاندي ځمکه تړوله ختي وي، څه پاک ځای د لمانځه لپاره نه وي.

⑤... یا د سپارلي پر درولو قادر نه وي.

⑥... یا دا خطره وي چي که ودرېږم او لمونځ وکړم، نو نور مسافر او قافلې والا به را څخه ولاړ سي او تنها به پاته سم.

نو په داسي صورتونو کي فرض لمونځ له قبلې څخه بغیر بل طرف ته هم کول صحیح دي. (حلبی کبیر ص:۲۱۹، شامی ج:۲، ص:۱۰۳، کتاب المسائل ص:۲۶۸)

## که چا ته د قبلې طرف معلوم نه وي، نو څه حکم دی؟

| |
|---|
| ﴿۲۲۰﴾ وَمَنِ اشْتَبَهَتْ عَلَيْهِ الْقِبْلَةُ او پر چا چي قبله مشتبه سي (یعني په قبله کي شکمن سي) وَلَمْ يَكُنْ عِنْدَهُ مُخْبِرٌ وَلَا مِحْرَابٌ او د ده سره (نژدې) هیڅ خبر ورکونکی نه وي او نه محراب وي (چي له هغه څخه د قبلې درک معلوم کړي) تَحَرّٰى نو غور و فکر دي وکړي (یعني په خپل نکر سره دي د قبلې طلب وکړي، نو کوم طرف ته چي د ده زړه ووايي چي دا به نو قبله وي. هغه طرف ته دي لمونځ وکړي) وَلَا إِعَادَةَ عَلَيْهِ لَوْ أَخْطَأَ او پر هغه د لمونځ راګرځول نسته که چیري خطا وتلی (تېروتلی) وي. |

لغات: ﴿اشتبهت﴾ د افتعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صیغه ده: مشتبه کېدل، شکمن کېدل، ناڅرګندېدل. ﴿تحرّی﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: اصل معنیٰ یې ده: طلبُ الأحریٰ، د زیات لایق او غوره شي طلب کول، یعني په څو شیانو کي د اولیٰ شي طلب او پلټنه کول چي کوم یو یې اولیٰ دی، د صحیح او غیر صحیح د معلومولو لپاره پوره غور او فکر کول.

تشریح: که یو څوک مثلاً په سفر کي وي او هغه ته د قبلې طرف معلوم نه وي او نه نژدې داسي څوک وي چي د قبلې طرف ور وښیي او نه داسي بل شی وي چي له هغه څخه قبله ور ته معلومه سي. نو په دې صورت کي پر هغه تحرّی کول فرض دي. یعني د قبلې په تعیین کي غور او فکر کول او په علاماتو او قرائنو سره د قبلې انداز لګول پر هغه لازم دي، او س که له تحرّی کولو څخه وروسته یو

طرف ته لمونځ وکړي، بیا د لمانځه څخه تر فراغت وروسته ورته معلومه سي چي ما غلط طرف ته لمونځ کړی دی، نو لمونځ یې صحیح کیږي، د راګرځولو ضرورت یې نسته. (هندیه ج:۱، ص:۶۴، کتاب المسائل ص:۲۶۷)

## که د لمانځه په دوران کي معلومه سي چي قبله بل طرف ته ده؟

﴿۲۲۱﴾ وَإِنْ عَلِمَ بِخَطْئِهٖ فِيْ صَلٰوتِهٖ او که هغه په لمانځه کي دننه په خپل خطا خبر سي (پوه سي، چي غلط طرف ته ولاړ یم) اِسْتَدَارَ وَبَنٰى نو (په لمانځه کي دننه) دي وګرځي او بناء دي وکړي (پر کړي لمانځه، یعني تر کومه ځایه چي هغه لمونځ کړی وي، له هاغه ځایه دي لمونځ شروع کړي. له سره لمونځ راګرځولو ته ضرورت نسته؛ ځکه کړی لمونځ یې صحیح دی).

**لغات:** ﴿استدار﴾ د استفعال د باب ماضي ده: ګرځېدل. ﴿بنٰی﴾ د ضرب د باب ماضي ده. د دې له معناوو څخه یوه معنیٰ ده: (وروسته لمونځ پر مخکیني اداء کړي لمانځه) بناء کول. (وروسته اداء کونکی لمونځ د مخکیني اداء سوي لمانځه سره) پیوند کول.

**تشریح:** که چیري له تحرّي کولو څخه وروسته لمونځ شروع کړي، بیا د لمانځه په دوران کي ورته معلومه سي چي قبله بل طرف ته ده یعني تحرّي یې بدله سي، یا یو بل څوک د لمانځه په دوران کي د بل طرف خبر ورکړي چي قبله ودې طرف ته ده، نو په لمانځه کي دننه هغه طرف ته مخ ګرځول ضروري دي، او اوس له نوي سره د لمونځ راګرځولو ضرورت نسته، بلکي پاته لمونځ دي په هغه سابقه لمونځ باندي بناء او پوره کړي. (هندیه ج:۱، ص:۶۴، کتاب المسائل ص:۲۶)

## بغیر له تحرّی څخه لمونځ کول

﴿۲۲۲﴾ وَإِنْ شَرَعَ بِلَا تَحَرٍّ او که بغیر له غور فکر څخه لمونځ شروع کړي فَعَلِمَ بَعْدَ فَرَاغِهٖ أَنَّهٗ أَصَابَ بیا د لمونځ څخه تر فارغېدلو وروسته خبر سي چي دئ صحیح سوی دی (یعني ورته معلومه سي چي زه په خپل تحرّی کي نه یم خطا وتلی او مخ پر قبله درېدلی یم) صَحَّتْ نو لمونځ (یې) صحیح کیږي وَإِنْ عَلِمَ بِإِصَابَتِهٖ فِيْهَا او که په لمانځه کي دننه په خپل صحیح کېدلو (نه خطا وتلو) خبر سي (چي زه صحیح مخ پر قبله ولاړ یم) فَسَدَتْ نو لمونځ (یې) فاسدیږي كَمَا لَوْ لَمْ يَعْلَمْ إِصَابَتَهٗ أَصْلًا لکه څرنګه چي (په هغه وخت کي یې لمونځ فاسدیږي) که هغه په خپل صحیح کېدلو (مخ پر قبله درېدلو) بالکل خبر نه وي.

**لغات:** ﴿أَصَابَ﴾ د افعال د باب ماضي ده، د دې باب څو معناوې دي چې له هغوى څخه څينې دا دي: نه خطا وتل (صحيح کېدل، ټيک لګېدل)، رسېدل او داسي نور. (معجم الوسيط)

**تشريح:** پر کوم کس چې قبله مشتبه سي، د هغه لپاره له تحري کولو څخه بغير لمونځ شروع کول صحيح نه دي، خو بيا هم که له تحرى څخه بغير لمونځ شروع کړي او له فراغت څخه وروسته ورته معلومه سي چې واقعي مخ پر قبله مي لمونځ کړى دى، نو لمونځ يې صحيح کېږي (څکه دلمانځه په دوران کي يو خاص صورت پېښ سوى نه دى)، او که دلمانځه په دوران کي په يقيني توګه ورته معلومه سي چې د قبلې طرف صحيح يا غلط دى، نو لمونځ يې فاسدېږي (ماتېږي) او له نوي سره به لمونځ کوي (په دې صورت کي دلمونځ فاسدېدلو وجه دا ده چې مخکينى حالت يو کمزوري حالت وو. اوس چې قبله ورته معلومه سوه نو اوس يو قوي حالت دى چې د هغه په پېښېدلو سره هغه کمزورى بنياد قائم نه پاتېږي. لکه په تيمم سره لمونځ کونکى چې دلمانځه په دوران کي اوبه ومومندي، نو لمونځ يې فاسدېږي). (شامي ج: ۲، ص: ۱۰۶. ايضاح الاصباح ص ۶۴)

## که مقتديانو ته د امام طرف نه معلومېږي، نو څه حکم دى؟

﴿۲۲۳﴾ وَلَوْ تَحَرَّى قَوْمٌ جِهَاتٍ او که تحرى وکړي يو قوم د مختلفو طرفونو (يعني يو څو مقتديان په خپل غور و فکر سره بېلابېلو طرفونو ته لمونځ وکړي) وَجَهِلُوا حَالَ إِمَامِهِمْ او دوى نا خبره وي د خپل امام په حالت (چې هغه کوم طرف ته ولاړ دى) تُجْزِئُهُمْ نو دا لمونځ ورلره کافي کېږي (لمونځ يې جائز کېږي).

**تشريح:** که امام په توره تياره کي لمونځ کوي او د هغه شا ته په جماعت کي چې کوم خلګ ور سره شريک کېږي، هغو ته هيڅ نه معلومېږي چې د امام صاحب مخ وکوم طرف ته دى. نو هر يو دي په خپله تحرى سره د قبلې جهت معلوم کړي او لمونځ دي وکړي، اوس که د امام مخ يو طرف ته وي او د مقتديانو مخ بل طرف ته وي، نو په دې صورت کي د ټولو لمونځ صحيح کېږي. خو په دې شرط چې امام به له مقتديانو څخه مخکي وي، لېکن کوم څوک چې تر امام مخکي وي. يا کوم چا ته چې د امام حال معلوم سي. نو د هغه لمونځ نه کېږي. دلته درې صورتونه دي؛ يا د مقتدي مخ به د امام د مخ وطرف ته وي، يا به د امام د اړخ وطرف ته وي، يا د مقتدي شا به د امام د مخ وطرف ته وي. دغه درېيم صورت له امام څخه د مخکي کېدلو صورت دى (يعني کله چې د مقتدي شا د امام د مخ وطرف ته واقع کېږي. نو په دې صورت کي د هغه لمونځ نه صحيح کېږي چې تر امام مخکي دى).



## آيا د قبلې په تعيين کې د کافر قول هم معتبر دی؟

**مسئله (۱)**: که څوک داسې ځای وي چې هلته دا پته نه لګيږي چې قبله کوم طرف ته ده؟ مثلاً دا نه معلوميږي چې دلته قبله د مشرق وطرف ته ده او که د مغرب وطرف ته؟ نو په داسې ځای کې که يو نا مسلمان کس د قبلې طرف ور وښيي، نو محض د هغه خبر له اعتبار نسته. تر څو چې په قرائنو سره د هغه تصديق نه وسي، او که داسې ځای وي چې هلته دومره خو معلومه وي چې قبله دلته مثلا د مغرب وطرف ته ده، خو دا نه معلوميږي چې مغرب کوم طرف ته دی، نو د مغرب د طرف پېژندلو لپاره له يو نامسلمان کس څخه هم تحقيق کېدلای سي، کله چې د هغه د رښتنوالي غالب ګومان وي. (الفقه الحنفي في ثوبه الجديد ج:۱، ص:۱۹۷، كتاب المسائل ص:۲۶۵)

## د قبلې د طرف معلومولو ذرائع

**مسئله (۲)**: په کومو ښارونو او آباديو کي چې زاړه مسجدونه وي، د هغوی محرابونه به د قبلې معيار جوړول کيږي او چيري چې له مخکي څخه جوړ سوي مسجدونه نه وي، نو هلته دي شا وخوا له اوسېدونکو مسلمانانو څخه د قبلې تحقيق کول کيږي او چيري چې هيڅ ښوونکی نه وي. مثلاً دښتونه، يا نوي آبادياني، نو په هغوی کي به د قطب نما يا لمر او سپوږمۍ وغيره په ذريعه له تحرّي او غور وفکر کولو څخه وروسته قبله متعيّنول کيږي. (شامي ج:۲، ص:۱۰۰، كتاب المسائل ص:۲۶۵)

## په افغانستان او پاکستان کي د قبلې د صحيح طرف معلومولو آسانه طريقه

**مسئله (۳)**: په افغانستان او پاکستان او کومي علاقې چې له دوی څخه د مشرق پر طرف واقع دي، په هغوی ټولو کي د قبلې د طرف معلومولو آسانه او محتاطه طريقه دا ده چې په ګرمۍ (دوبي) کي دي تر ټولو په اوږده ورځ او په ژمي کي دي تر ټولو په کوچنۍ ورځ د لمر لوېدلو ځايو ته وکتل سي، نو د دې دواړو په مينځ کي چې کوم ځای واقع کيږي، هغه به د قبلې طرف وي. يعني د دغه مينځوي ځای په هره حصه کي چې هم لمونځ وسي، نو صحيح کيږي. (جواهر الفقه ج:۱، ص:۲۷۶، حلبي كبير ص:۲۱۸، شامي ج:۲، ص:۹۹)



# فَصْلٌ (فِيْ وَاجِبِ الصَّلَاةِ)

(دا) فصل (دلمانځه دواجباتو په بیان کې) دی

وَهُوَ ثَمَانِيَةَ عَشَرَشَيْئًا او هغوی (واجبات) اتلس (١٨) شیان دي.

**تشریح:** په دې فصل کې مصنف رَحِمَهُ الله دلمانځه واجبات بیانوي.

**د واجب لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** واجب په لغت کې له "وُجوب" څخه دی او د "وُجوب" یوه معنیٰ "سقوط" (لوېدل) ده او بله معنیٰ یې "لزوم" ده. نو واجب ته ځکه واجب وایي چې علم (او ځان په خبرول) یې زموږ څخه ساقط دي او عمل یې پر موږ لازم دی. یا له "وجیب" څخه دی کوم چې "شک او تردد" ته وایي. او دا ځکه چې د واجب په ثبوت کې شک وي یعني د فرضو په څیر په قطعي دلیل سره ثابت نه وي.

او اصطلاحي معنیٰ یې ده: « مَالَزِمَ بِدَلِيْلٍ فِيْهِ شُبْهَةٌ ». (چې په داسې دلیل سره ثابت وي چې په هغه کې څه شبهه وي).

دلته له واجب څخه مراد هغه دی چې په عمداً پرېښودلو باندې یې ګناه او په سهواً پرېښودلو باندې یې سجدهٔ سهو لازمیږي، نه فساد. دلمانځه واجبات اتلس (١٨) دي. لیکن دا صرف په همدې اتلسو (١٨) کې منحصر نه دي. له دې څخه هم زیات کېدلای سي.

صاحب د بدائع الصنائع ټوله شپږ واجبات بیان کړي دي: ① د سورة الفاتحه سره سورت یو ځای کول. ② په جهري لمنځونو کې جهر او په سرّي لمونځو کې سرّ. ③ تعدیل دارکانو. ④ قعدهٔ اولیٰ. ⑤ تشهد ⑥ ترتیب د افعالو (بدائع ج: ١، ص: ٣٩٤). خو د متعلقاتو او جزئیاتو په اعتبار سره دا شمېر له دې څخه څو چنده زیات کېدلای سي.

مصنف رَحِمَهُ الله ټوله اتلس واجبات ذکر کړي دي:

## سورة الفاتحه ویل

﴿٣٢٢﴾ قِرَاءَةُ الْفَاتِحَةِ (١) سورةُ الفاتحه ویل.

**تشریح:** د امام او دیوازې لمونځ کونکي لپاره د فرضي لمانځه په اولو دوو رکعتونو کې او د وترو، سنتو او نوافلو په هر رکعت کې سورة الفاتحه ویل واجب دي، لیکن د مقتدي لپاره د امام د قرائت په وخت کې چپ پاتېدل ضروري دي؛ ځکه د امام قرائت د مقتدي قرائت لره هم حکماً شامل دی.

## د سورة الفاتحه سره بل سورت يو ځای کول

﴿۲۲۵﴾ وَضَمُّ سُوْرَةٍ أَوْ ثَلَاثِ آيَاتٍ فِيْ رَكْعَتَيْنِ غَيْرِ مُتَعَيِّنَتَيْنِ مِنَ الْفَرْضِ (۲) او (د سورة الفاتحې سره) ديو سورت يا دريو آيتونو يو ځای کول (ضمول) د فرضو په دوو نا متعينو (نا معلومو) رکعتونو کي وَفِيْ جَمِيْعِ رَكَعَاتِ الْوِتْرِ وَالنَّفْلِ او د وترو او نفلو په ټولو رکعتونو کي.

**تشريح:** د سورة الفاتحې سره د فرضو په دوو رکعتونو کي او نور د ټولو لمنځونو په هر رکعت کي د سورة الفاتحې سره بل کوچنی سورت يو ځای کول يا کم از کم درې کوچني آيتونه يا يو اوږد آيت ور سره يو ځای کول واجب دي، کوچنی سورت لکه سورة الکوثر، يا د هغه قائم مقام درې کوچني آيتونه لکه ﴿ثُمَّ نَظَرَ. ثُمَّ عَبَسَ وَبَسَرَ. ثُمَّ أَدْبَرَ وَاسْتَكْبَرَ﴾، دا ور سره يو ځای کول د امام او منفرد لپاره واجب دي.

فی رکعتین غیر متعینین: يعني د فرضو صرف په دوو رکعتونو کي د سورة الفاتحې سره سورت يو ځای کول دا جلا واجب دي، او صرف اول دوه رکعتونه د دې قرائت لپاره متعين کول جلا واجب دي، چي دا به په راروان عبارت کي ذکر سي.

## د فرضو په اولو دوو رکعتونو کي د قرائت تعيين

﴿۲۲۶﴾ وَتَعْيِيْنُ الْقِرَاءَةِ فِي الْأُوْلَيَيْنِ (۳) او قرائت متعينول په اولو دوو رکعتونو کي.

**تشريح:** په څلور رکعتيز يا درې رکعتيز فرضي لمانځه کي واجب دي چي د سورة الفاتحې سره د سورت يو ځای کولو عمل (قرائت) په اولو دوو رکعتونو کي وسي، که له هغوی څخه بغير په دريم يا څلورم رکعت کي قرائت وکړي، نو د واجب پرېښوولو په وجه سجدهٔ سهو لازميږي. (مراقی الفلاح ص،۱۳۵، عالمگيري ج،۱، ص،۷۱)

## سورة الفاتحه له قرائت څخه مخکي ويل

﴿۲۲۷﴾ وَتَقْدِيْمُ الْفَاتِحَةِ عَلٰى سُوْرَةٍ (۴) او سورة الفاتحه پر سورت مخکي کول.

**تشريح:** په کومو رکعتونو کي چي د سورة الفاتحې سره سورت يو ځای کول ضروري دي، په هغوی کي سورة الفاتحه له سورت څخه مخکي ويل واجب دي، او که د دې برعکس وکړي، نو سجدهٔ سهو واجبيږي. (حلبی کبير ص،۲۹۶، عالمگيري ج،۱، ص،۷۱)

﴿۲۲۸﴾ وَضَمُّ الْأَنْفِ لِلْجَبْهَةِ فِي السُّجُوْدِ (۵) او پزه د تندي سره یو ځای کول په سجده کي (یعني پر پزه او تندي دواړو باندي سجده کول).

**تشریح:** په سجده کي د تندي سره پزه یو ځای کول یعني پزه هم پر ځمکه لګول واجب دي (په دې شرط چي د پزي هډوکی د ځمکي سره لګېدلی وي)، همدارنګه په سجده کي د تندي اکثره حصه لګول واجب دي او د تندي څه حصه لګول فرض دي، او بېله عذره صرف پر پزه سجده کول ممنوع دي.

## په هر رکعت کي دوې سجدې پر له پسې کول

﴿۲۲۹﴾ وَالْإِتْيَانُ بِالسَّجْدَةِ الثَّانِيَةِ فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ قَبْلَ الْإِنْتِقَالِ لِغَيْرِهَا (۶) او دویمه سجده اداء کول په هر رکعت کي مخکي له منتقل کېدلو څخه و بل رکعت (یا بل رکن) ته.

**تشریح:** په هر رکعت کي دوې سجدې بغیر له فصل او جدایی څخه اداء کول واجب دي یعني د دواړو سجدلو په مینځ کي دي یو بل رکن نه اداء کول کیږي، کنې سجدهٔ سهو واجبیږي. (مراقی الفلاح ص: ۱۳۵)

## د تعدیلِ ارکان بیان

﴿۲۳۰﴾ وَالْإِطْمِئْنَانُ فِي الْأَرْكَانِ (۷) او په ارکانو کي اطمینان کول (یعني د اطمینان په حالت کي په آرامتیا سره ارکان اداء کول)

**تشریح:** د لمانځه افعال قیام (ولاړه)، رکوع، سجده، قعدهٔ اخیره (آخره ناسته) او جلسه په اطمینان او تعدیل سره اداء کول واجب دي، چي د هغه حدّ دا دی چي په هر رکن کي اندامونه ساکن او پر خپل ځای قرار ونیسي او دا کیفیت کم از کم دیوه وار سبحان الله ویلو په اندازه پاته سي (یعني د تعدیل او اطمینان حدّ دا دی چي تقریباً دیوه وار سبحان الله ویلو په اندازه په هر رکن کي اندامونه ساکن او پر خپل. خپل ځای قرار پاته سي). (طحطاوي علیٰ مراقی الفلاح ص: ۱۳۵)

حضرت مولا مفتي سعید احمد صاحب (دامت برکاتهم) په تحفة الالمعي کي داسي لیکلي دي: چي په ارکان اربعه یعني په رکوع، قومه، سجده او جلسه کي تعدیل واجب دی. کله چي انسان کوع ته دومره کوږ سي چي لاسونه تر زنګنو پوري ورسیږي، نو رکوع وسوه. بیا په رکوع کي ملا سیده کول یعني په اطمینان سره رکوع کول تعدیل دی، همدارنګه کله چي له رکوع څخه پورته سي او ولاړي ته نژدې سي، نو قومه وسوه. بیا ملا سیده کول یعني په اطمینان سره درېدل د قومې تعدیل دی. او کله چي له اولي سجدې څخه سر را پورته کړي او ناستي ته نژدې سي، نو جلسه وسوه. او په اطمینان سره کښېناستل د جلسې تعدیل دی. او پر ځمکه د تندي په اېښوولو سره سجده وسوه. او په هغه کي په سکون سره پاتېدل تعدیل دی. (تحفة الالمعي ج: ۲، ص: ۵۹)

# قعدهٔ اولیٰ (اوله ناسته)

﴿۲۲۱﴾ وَ الْقُعُوْدُ الْأَوَّلُ (۸) او اوله ناسته کول.

**تشریح:** په درې رکعتیز یا څلور رکعتیز فرضي یا نفلي لمنځونو کې د دوو رکعتو له اداء کولو څخه وروسته کم از کم دومره کښېنستل واجب دي چې په هغه کې تشهد ویل کېدلای سي.

## په اوله ناسته کې تشهّد ویل

﴿۲۲۲﴾ وَقِرَاءَةُ التَّشَهُّدِ فِيْهِ فِي الصَّحِيْحِ (۹) او تشهد ویل په اوله ناسته کې د صحیح قول مطابق.

**لغات:** فیه د ضمیر مرجع "القعود الأول" دی.

**تشریح:** په قعدهٔ اولیٰ کې تشهد ویل واجب دي. یو قول دا دی چې سنت دي. خو صحیح او مفتیٰ به قول دوجوب دی، د "فی الصحیح" په قید سره یې هغه دسنتوالي قید خارج کړی یا د "فی الصحیح" تعلق د قعدهٔ اولیٰ او تشهد دواړو سره دی یعني صحیح او مفتیٰ به قول دا دی چې قعدهٔ اولیٰ او په هغه کې تشهّد ویل واجب دي، بعضي حضرات د دواړو دسنتوالي قائل دي. نو په دې قید سره د هغو له قول څخه احتراز دی. (مراقی الفلاح ص:۱۳۶)

## په آخره ناسته کې تشهّد ویل

﴿۲۲۳﴾ وَقِرَاءَتُهُ فِي الْجُلُوْسِ الْأَخِيْرِ (۱۰) او تشهد ویل په آخره ناسته کې.

**تشریح:** دلمانځه له واجباتو څخه لسم واجب په قعدهٔ اخیره (آخره ناسته) کې تشهّد ویل دي.

## تر قعدهٔ اولی وروسته بېله ځنډه دریېم رکعت ته ولاړېدل

﴿۲۲۴﴾ وَالْقِيَامُ إِلَى الثَّالِثَةِ مِنْ غَيْرِ تَرَاخٍ بَعْدَ التَّشَهُّدِ (۱۱) او (واجب دي) ولاړېدل دریېم رکعت ته بغیر له څه ځنډ څخه تر تشهّد وروسته (یعني په دویمه ناسته کې تر تشهد ویلو وروسته بغیر له څه ځنډ کولو څخه دریېم رکعت ته ولاړېدل هم واجب دي)

**تشریح:** د درې رکعتیز یا څلور رکعتیز فرضي لمانځه په قعدهٔ اولیٰ کې تر تشهّد ویلو وروسته سملستي د دریېم رکعت لپاره ولاړېدل واجب دي، که په هېره سره ځنډ وکړي او درود شریف ویل شروع کړي، نو سجدهٔ سهو واجبېږي.

**يادونه**: ټوله امامان پر دې متفق دي چې د ثلاثي او رباعي فرضي لمانځه په اوله ناسته کي به صرف تشهد ويل کيږي، له هغه څخه وروسته درود شريف وغيره به نه ويل کيږي، او واجب لمنځونه او د يوه قول مطابق د ماپښين څلور سنتونه هم د فرضو سره ملحق دي چې په هغوی کي به هم صرف تشهد ويل کيږي، همدارنګه د نورو سنت مؤکده وو دی، او نور په ټوله نفلي او سنت غير مؤکده لمنځونو کي په هره قعده کي تشهد، درود او دعاء ټوله ويل کېدلای سي؛ ځکه د نفلو او سنتو هر دوه رکعته يو جلا لمونځ دی، او که صرف تشهد ووايي، نو هم صحيح دي. خو زياتره خلک په دې مسئله ناخبره دي او هغوی د هر لمانځه په اوله ناسته کي صرف تشهد وايي او درود شريف صرف دا نه چي نه وايي، بلکي که څوک يې په هېره ووايي، نو سجدهٔ سهو کوي، دا غلط فهمي د فرائضو له قعدهٔ اولیٰ څخه پيدا سوې ده، څرنګه چې د فرضو په اوله ناسته کي صرف تشهد ويل واجب دي، نو ځکه خلکو د ټولو لمنځونو لپاره همدا حکم سنجولی دی. (تحفة الالمعی ج: ۲، ص: ۱۹۳)

## د "سلام" په لفظ سره لمونځ ختمول

﴿۲۳۵﴾ وَلَفْظُ السَّلَامِ دُوْنَ عَلَيْكُمْ (۱۲) او (واجب دي) لفظ د "السلام" ويل. نه "عليکم".
(يعني صرف لفظ دالسلام ويل واجب دي په همدې سره لمونځ پوره کيږي، تر هغه وروسته عليکم ورحمة الله... ويل سنت دي. ويل يې پکار دي، واجب نه دي).

**تشريح**: په لفظ د "السَّلَام" سره له لمونځ څخه وتل واجب دي يعني لمونځ د "السَّلَام" په لفظ سره ختمول واجب دي. نه په بل لفظ سره، او پاته سوه دا خبره چي يو وار "السَّلَام" ويل واجب دي او که دوه واره ويل واجب دي، نو په دې کي اختلاف دی، بعضي فرمايي چي دوه واره د "السَّلَام" لفظ ويل واجب دي او علامه طحطاوي رَحِمَهُ الله همدې ته اصح ويلي دي او د بعضو په نيز دوېم سلام سنت دی. او راسته او چپه طرف (دوارو خواوو) ته مخ ګرځول هم واجب نه دي (حاشيه)، او پاته سو لفظ د "عَلَيْکُم..." واجب نه دی. لهذا که څوک داسي وخت مسجد ته ورسيږي چي امام اول "السَّلَام" ويلی وي، نو اوس د هغه اقتداء نه صحيح کيږي که څه هم امام تر اوسه "عَلَيْکُم" نه وي ويلي. (شفاء الارواح بحوالة حاشيه، درمختار مع الشامي ج: ۲، ص: ۱۶۲)

## د وترو په لمانځه کې قنوت ویل

﴿۲۲۶﴾ وَقُنُوْتُ الْوِتْرِ (۱۳) او د وترو قنوت ویل (یعنې په وترو کې دعاء قنوت ویل هم واجب دي).

تشریح: د وترو په دریم رکعت کې دعاءِ قنوت ویل واجب دي، قنوت په لغت کې مطلقاً دعاء ته وایي، نه مخصوصې دعاء ته، او پاتې سوه مخصوصه دعاء یعنې "اَللّٰهُمَّ إِنَّا نَسْتَعِيْنُكَ وَنَسْتَغْفِرُكَ...الخ" ویل سنت دي، نه لازم، لهذا که له دې دعاء څخه بغیر بله دعاء ووایي، نو هم لمونځ صحیح کېږي، خو د سنت خلاف به وي؛ همدارنګه د قنوت لپاره تکبیر یعنې الله أکبر ویل واجب دي او تر غوږو پورې لاسونه پورته کول سنت دي. (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

## په اخترونو کې تکبیراتِ زوائد ویل

﴿۲۲۷﴾ وَتَكْبِيْرَاتُ الْعِيْدَيْنِ (۱۴) او د دواړو اخترونو تکبیرات (تکبیراتِ زوائد) ویل.

تشریح: د کوچني اختر او لوی اختر په لمنځونو کې شپږ زائد تکبیرونه واجب دي، درې تکبیرونه په اول رکعت کې او درې تکبیرونه په دویم رکعت کې، او له دوی څخه هر یو تکبیر مستقل واجب دی. (مراقی الفلاح ص: ۱۳۷)

## په تحریمه کې تکبیر (الله أکبر) ویل

﴿۲۲۸﴾ وَتَعْيِيْنُ التَّكْبِيْرِ لِافْتِتَاحِ كُلِّ صَلٰوةٍ لَا الْعِيْدَيْنِ خَاصَّةً (۱۵) او تکبیر متعین کول (ټاکل) د هر لمانځه د شروع کولو لپاره، نه خاص د اخترونو (د لمانځه) لپاره.

تشریح: د لمونځ شروع کولو په وخت کې خاص د "الله أکبر" په لفظ سره تحریمه ویل دا واجب دي، او که څوک له "الله أکبر" څخه بغیر په یو بل ذکر مثلاً په "الله أعظم" یا په "الله أجلّ" سره لمونځ شروع کړي، نو د واجب پرېښودونکي به وي کوم چې مکروه تحریمي دي، او داسې نه ده چې صرف د دواړو اخترونو په لمانځه کې د "الله أکبر" په لفظ سره لمونځ شروع کول واجب دي او له اخترونو څخه بغیر په نورو لمنځونو کې سنت دي لکه څرنګه چې بعضو دا د اخترونو سره خاص کړي دي؛ ځکه د "الله أکبر" په لفظ سره د هر لمانځه په شروع کولو باندې نبي کریم ﷺ همېشتوب کړی دی. (شفاء الا...ام، انوار الایضاح)

﴿۲۳۹﴾ وَتَكْبِيرَةُ الرُّكُوعِ فِيْ ثَانِيَةِ الْعِيدَيْنِ (۱۶) او د رکوع تکبیر د دواړو اخترونو (د لمانځه) په دویم رکعت کې.

**تشریح**: د اخترونو د لمانځه په دویم کې د رکوع تکبیر واجب دی، په نورو لمنځونو کې دا تکبیر صرف سنت دی. (مراقی الفلاح ص:۱۳۷)

## په جهري لمنځونو کې په لوړ آواز سره قرائت کول

﴿۲۴۰﴾ وَجَهْرُ الْإِمَامِ بِقِرَاءَةِ الْفَجْرِ وَأُوْلَيَيِ الْعِشَائَيْنِ (۱۷) او (واجب دي لپاره) د امام په زوره ویل (جهر کول) د سهار په قرائت کې او د ماښام او ماخوستن په اولو دوو رکعتونو کې وَلَوْ قَضَاءً که څه هم قضاء وي (یعنی که څه هم دې لمنځونو قضاء راوړي په جماعت سره) وَالْجُمُعَةِ وَالْعِيدَيْنِ وَالتَّرَاوِيحِ وَالْوِتْرِ فِيْ رَمَضَانَ او (جهر کول) په جمعه، دواړو اخترونو، تراویحو او د رمضان په وترو کې.

**لغات**: ﴿أُوْلَيَيِ﴾ اوله یاء په فتحه سره ده او دویمه په کسره سره ده، تثنیه د أُوْلَى ده، دا په اصل کې أُوْلَيَيْنِ وه، د اضافت په وجه نون حذف سو، او له عشائین څخه د ماښام او ماخوستن لمونځ مراد دی او مغربین څکه نه دي ورته ویل سوي چې غلبه اکثر له ور کول کیږي، نو څکه عشائین ورته ویل سوي دي.

**تشریح**: د امام لپاره په جهري لمنځونو کې جهر کول (په لوړ آواز سره قرائت کول) واجب دي، یعني د ماښام او ماخوستن په اولو دوو رکعتونو کې او د سهار د لمانځه او د جمعې او اخترونو د لمانځه او د تراویحو او د رمضان د وترو په هر رکعت کې جهر کول واجب دي، او که جهر پرېږدي، نو سجدهٔ سجهو لازمیږي.

او که څوک تنها لمونځ کوي (منفرد وي)، نو پر هغه جهر کول واجب نه دي، خو افضل دا ده چې جهر وکړي، او د هغه لپاره د جهر حد دا دی چې نژدې کس یې اوربدلای سي. (حاشیه)

همدارنګه که چیري جهري لمونځ قضاء سي او هغه په جماعت سره راګرځوي نو په هغه کې هم جهر واجب دی، که امام جهر نه پکښې وکړي، نو سجدهٔ سهو لازمیږي.

## په سرّي لمونځو کي په کراره قرائت کول

﴿۲۲۱﴾ وَالْإِسْرَارُ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ (۱۸) او په کراره ویل (په پټه قرائت کول) په (ټولو رکعتونو) دماپښین او مازیګر کي وَفِيمَا بَعْدَ أُولَيَيِ الْعِشَائَيْنِ وَنَفْلِ النَّهَارِ او (په کراره قرائت کول) دماخوستن له اولو دوو رکعتونو څخه وروسته والا رکعتونو کي او دورځي په نفلو کي.

**تشریح:** دسرّي لمنځونو لکه دماپښین او مازیګر په ټولو رکعتونو کي، او دماښام په دریم رکعت، او دماخوستن په آخري دوو رکعتونو کي په کراره (په پټ آواز سره) قرائت کول واجب دي، همدارنګه دورځي په نفلو کي مثلاً د کسوف او استسقاء په لمانځه په کراره قرائت کول واجب دي (او صاحب دانوار الایضاح د "نفل النهار" تشریح داسي کړې ده چي دورځي په اوقاتو کي له جماعت څخه بغیر اداء کېدونکي سنت او نفل، په معنوی کي هم په کراره قرائت کول واجب دي).

لود کرار ویلو حدّ دادی چي صرف خپله يې اوري او بل څوک يې نه اوري. (حاشیه)

﴿۲۲۲﴾ وَالْمُنْفَرِدُ مُخَيَّرٌ فِيمَا يَجْهَرُ او تنها لمونځ کونکي ته اختیار دی په هغه لمنځونو کي چي جهر پکښي کول کیږي كَمُتَنَفِّلٍ بِاللَّيْلِ لکه دشپې نفل کونکي (ته چي اختیار دی).

**تشریح:** فرمايي چي په جهري لمنځونو کي منفرد ته اختیار دی چي که قرائت جهراً کوي او که يې سراً کوي (خو جهر کول افضل د)، لکه څرنګه چي هغه کس ته اختیار دی کوم چي دشپې نفل کوي چي که په کراره قرائت کوي او که په زوره يې کوي.

## د فرضو په اولو دوو رکعتو کي سورت پرېښوول

﴿۲۲۳﴾ وَلَوْ تَرَكَ السُّورَةَ فِي أُولَيَيِ الْعِشَاءِ او که دماخوستن په اولو دوو رکعتونو کي سورت پرېږدي قَرَأَهَا فِي الْأُخْرَيَيْنِ مَعَ الْفَاتِحَةِ جَهْرًا نو په آخري دوو رکعتونو کي دي يې دسورة الفاتحه سره په زوره (په لوړ آواز سره) ووايي.

**تشریح:** دعبارت حاصل دادی چي که یو څوک دماخوستن په اولو دوو رکعتو کي تر الحمد لله ویلو وروسته سورت نه ووايي، نو په آخري دوو رکعتو کي به يې وايي، او دویلو طریقه داده چي اولاً دي سورة الفاتحه په جهر سره ووايي او بیا دي سورت په جهر سره ووايي او سجدهٔ سهو دي هم وکړي. (انوار الایضاح، شذا الارواح)

## فاتحه پرېښوول

﴿۲۲۴﴾ وَلَوْتَرَكَ الْفَاتِحَةَ او که سورة الفاتحه پرېږدي لَایُكَرِّرُهَا فِی الْأُخْرَیَیْنِ نو په آخري دوو رکعتو کي به يې نه مکرره کوي (دوباره به يې نه وايي).

**تشريح**: فرمايي که څوک په اولو دوو رکعتو کي سورت ووايي، خو سورة الفاتحه نه ووايي، نو اوس په آخري دوو رکعتو کي د سورة الفاتحه دوه واره ويلو ته ضرورت نسته، بلکي صرف يو وار به سورة الفاتحه وايي او د واجب پرېښوولو په وجه دي په آخر کي سجدهٔ سهو وکړي.



## سورة الفاتحه مکرره ويل

**مسئله (۱)**: واجب دي چي د فرضو د اولو دوو رکعتونو په هر رکعت کي سورة الفاتحه بېله فصله صرف يو وار ويل سي، که يې پرله پسې په يوه رکعت کي دوه واره ووايي، نو سجدهٔ سهو واجبيږي، ها! که د سورة الفاتحه تر ويلو وروسته يو بل سورت ووايي، بيا سورة الفاتحه په هغه رکعت کي ووايي، نو هيڅ حرج نسته؛ ځکه په دې صورت کي به دويمه سورة الفاتحه د قرائت په درجه کښل کيږي او هغه ته به تکرار نه ويل کيږي. (حلبي کبير ص: ۲۹۵، هنديه ج: ۱، ص: ۷۱، کتاب المسائل ص: ۲۹۶)

## د لمانځه په افعالو کي بېله فصله ترتيب باقي ساتل

**مسئله (۲)**: د لمانځه ټوله افعال بغير له څه فصل څخه په ترتيب سره اداء کول واجب دي، مثلاً که څوک په اول رکعت کي له دويمي سجدې څخه راپورته سي او سملستي نه ودريږي بلکي کښېني، يا پرله پسې دوه واره رکوع يا درې واره سجده وکړي، نو په ترتيب کي د خلل راتللو په وجه سجدهٔ سهو لازميږي. (حلبي کبير ص: ۲۹۷، کتاب المسائل ص: ۳۰۰)



# فَصْلٌ فِيْ سُنَنِهَا

## (دا) فصل په (بیان د) سنتو د لمانځه کې دی

وَهِيَ إِحْدٰى وَخَمْسُوْنَ او هغوی (سنتونه) یو پنځوس (۵۱) دي.

**تشریح**: سُنَن جمع د سنت ده.

**د سنت لغوي او اصطلاحي معنی**: سنت په لغت کې "لاري" ته وایي، او اصطلاحي معنی یې دا ده: هِيَ الطَّرِيْقَةُ الْمَسْلُوْكَةُ فِي الدِّيْنِ مِنْ غَيْرِ اِفْتِرَاضٍ وَلَا وُجُوْبٍ. (مطلب دا چې له سنت څخه مراد هغه کار دی چې بغیر له فرضیت او وجوب څخه د عبادت په توګه نبي ﷺ پر هغه همېشتوب کړی وي او کله نا کله یې (د عذر په وجه) پرې ایښی وي)، پر سنت عمل کول ډېر د ثواب باعث دي، لېکن د هغه په پرېښوولو سره نه په لمانځه کې سجدهٔ سهو واجبېږي او نه هغه فاسدېږي، او د تارک سنت حکم په لاندیني مختلفو صورتونو کې جلا، جلا دی.

① که بلا اراده او په هېره یو سنت پرېښوول سي، نو هیڅ ګناه نسته. ② او که قصداً یو سنت پرېښوول سي، لېکن په زړه کې د سنت د تحقیر او سپکاوي اراده نه وي، نو ګنهکاره کېږي. ③ او که نعوذ بالله د سنت د تحقیر او سپکاوي پر بناء یې پرې ایښی وي، نو دا سړی کس له اسلام څخه خارج دی. لهذا په هر صورت کې د سنت مطابق د لمونځ کولو پوره اهتمام کول پکار دي او کوښښ کول پکار دي چې د لمانځه هیڅ سنت زموږ څخه پاته نه سي، الله ﷻ دې توفیق راکړي، اللهم آمین. (در مختار مع الشامي بیروت ج۱، ص۱۴۹، کتاب المسائل ص۳۱۳)

## په لمانځه کې څو سنتونه دي؟

د لمانځه اصل سنتونه څومره دي او کوم، کوم دي؟ په دې باره کې د فقهاؤ مختلفه رایې دي، صاحب د نور الایضاح رحمه الله (۵۱) سنتونه ذکر کړي دي، حال دا چې په در مختار کې (۲۳) او په حلبي کبیر (شرح منیة المصلي) کې (۲۰) سنتونه ذکر سوي دي او پاته شیان یې په آدابو کې شمېرلي دي.

## د تکبیرِ تحریمه په وخت کي دواړه لاسونه پورته کول

﴿۲۲۵﴾ رَفْعُ الْيَدَيْنِ لِلتَّحْرِيمَةِ حِذَاءَ الْأُذُنَيْنِ لِلرَّجُلِ وَالْأَمَةِ دواړه لاسونه پورته کول د تکبیرِ تحریمه (لول الله اکبر) لپاره د غوږونو (د نرمیو) تر برابرۍ. پوري د سړي او مینځي لپاره وَحِذَاءَ الْمَنْكِبَيْنِ لِلْحُرَّةِ او د اوږو تر برابرۍ پوري د ښځي لپاره.

**لغات**: ﴿حِذَاء﴾ او حَذْو: برابر، مقابل، په برابرۍ کي، ﴿مَنْكِبَيْن﴾ تثنیه د مَنْكِبٌ ده: اوږه (ووږه).

**تشریح**: (۱) دلمونځ شروع کولو په وخت کي د سړي لپاره دالله اکبر ویلو پر مهال دغوږو تر نرمیو پوري دواړه لاسونه پورته کول سنت دي، همدا حکم دمینځي دي، او دلاس پورته کولو طریقه دا ده چي لاسونه دي داسي پورته کړي چي مړوندونه يې داوږو په مقابل کي راسي، بټي ګوتي دغوږو د نرمیو په مقابل کي راسي او دګوتو سرونه دغوږو د پورتني طرفونو (سرونو) په مقابل کي راسي، او ښځه دي لاسونه داسي پورته کوي چي لاسونه داوږو په مقابل کي راسي (یعني ښځه دي تر خپلو اوږو پوري لاسونه پورته کوي).

## د لاسونو د پورته کولو په وخت کي ګوتي خلاصي ساتل

﴿۲۲۶﴾ وَنَشْرُ الْأَصَابِعِ او ګوتي غوړول (خلاصي اوپرانښي اساتل).

**لغات**: ﴿نشر﴾ دنصر دباب مصدر دی: غوړول، پرانیستل (دګوتو په مینځ کي خلا پیدا کول).

**تشریح**: (۲) دویم سنت دا دی چي د تکبیرِ تحریمه لپاره دلاس پورته کولو په وخت کي ګوتي سره موښتي (جوختي) نه وي، بلکي څه غوندي خلاصي (غوړول سوي) وي، او پوره غوړول هم نه دي پکار دي (یا په بله وینا: پر خپل حال پرېښوول پکار دي چي نه پوره سره موښتي وي او نه پوره خلاصي وي)، او لاسونه دي داسي پورته کوي چي ورغوي د قبلې وطرف ته وي. (ثمرة النجاح، انوار الایضاح)

﴿۲۲۷﴾ وَمُقَارَنَةُ إِحْرَامِ الْمُقْتَدِي لِإِحْرَامِ إِمَامِهِ او د مقتدي (لپاره) تکبیرِ تحریمه یو ځای کول د خپل امام د تکبیرِ تحریمه سره.

**تشریح**: (۳) دمقتدي لپاره تکبیرِ تحریمه دامام سره یو ځای اداء کول هم سنت دي، یعني کوم وخت چي امام "اللهُ أكبر" ووایي، هاغه وخت دي يې مقتدي هم ووایي، په دې شرط چي تر امام مخکي څني فارغ نه سي یعني په دې شرط چي دامام له "اللهُ" او "أكبر" ویلو څخه مخکي مقتدي له "اللهُ" او "أكبر" ویلو څخه فارغ نه سي، لهذا که یو مقتدي لفظ د "الله" خو دامام سره یو ځای ووایي

لېکن د "أکبر" لفظ مخکې ووايي يعني د امام له "أکبر" ويلو څخه مخکې څنې فارغ سي، نو د اصح قول مطابق د هغه لمونځ نه شروع کېږي. (شفاء الارواح بحوالۀ حاشيه)

## راسته لاس په چپه لاس باندې اېښوول او نيول او د نيولو طريقه

﴿۲۲۸﴾ وَوَضْعُ الرَّجُلِ يَدَهُ الْيُمْنٰى عَلَى الْيُسْرٰى تَحْتَ سُرَّتِهٖ او د سړي (لپاره) خپل راسته لاس پر چپه لاس تر نامه لاندې اېښوول وَصِفَةُ الْوَضْعِ أَنْ يَّجْعَلَ بَاطِنَ كَفِّ الْيُمْنٰى عَلٰى ظَاهِرِ كَفِّ الْيُسْرٰى او د اېښوولو طريقه دا ده چې راسته ورغوی د چپه ورغوي پر شا کېږدي مُحَلِّقًا بِالْخِنْصَرِ وَالْإِبْهَامِ عَلَى الرُّسْغِ په داسې حال کې چې په خچې او بټه ګوته سره پر مړوند حلقه جوړونکی وي.

**لغات:** ﴿مُحَلِّقًا﴾ د تفعيل د باب له د فاعل صيغه ده: حلقه (کړی) جوړونکی، حَلَّقَ يُحَلِّقُ تَحْلِيْقًا: حلقه جوړول، دائره جوړول.

**تشريح:** (۴) په دې عبارت کې څلورم سنت بيان سوی دی چې په لمانځه کې راسته لاس په چپه لاس باندې اېښوول سنت دي، او د دې تر څنګ دوې مسئلې نورې بيان سوې دي: ① يوه مسئله د لاس اېښوولو د ځای ده چې دواړه لاسونه دې تر نامه (ناف) لاندې اېږدي (په داسې توګه چې ټو (ناف) د لاسونو د پورتنۍ حصې سره لګېدلی وي)، ② دويمه مسئله د هغه د طريقې ده، نو طريقه يې دا ده چې د راسته لاس ورغوی دې د چپه لاس د ورغوي پر شا اېږدي او د راسته لاس په خچې او بټه ګوته سره دې د چپه لاس مړوند نيسي (يا په بله وينا: د راسته لاس په خچنه او بټه ګوته سره دې د چپه لاس پر مړوند حلقه جوړوي). او پاته درې ګوتې دې يې پر ليښې غوړوي. (انوار الايضاح. شفاء الارواح)

## د ښځې د لاس اېښوولو ځای او طريقه

﴿۲۲۹﴾ وَوَضْعُ الْمَرْأَةِ يَدَيْهَا عَلٰى صَدْرِهَا مِنْ غَيْرِ تَحْلِيْقٍ او د ښځې خپل لاسونه پر سينه اېښوول بغير له حلقه جوړولو سره.

**تشريح:** (۵) او ښځه دې په لمانځه کې لاسونه پر سينه اېږدي؛ ځکه په دې کې ستر زيات دی کوم چې د ښځې لپاره ضروري دی، او د اېښوولو طريقه يې دا ده چې د راسته لاس ورغوی دې د چپه لاس د ورغوي پر شا اېږدي او د سړي په څېر دې حلقه نه جوړي يعني په خچې او بټه ګوته سره دې مړوند نه نيسي.

## څو نور سنتونه

﴿۳۵۰﴾ وَالثَّنَاءُ او (همدارنګه سنت دي) ثناء ویل وَالتَّعَوُّذُ لِلْقِرَاءَةِ او اعوذ بالله... ویل د قرائت لپاره وَالتَّسْمِيَةُ أَوَّلَ كُلِّ رَكْعَةٍ او بسم الله... ویل د هر رکعت په شروع کې وَالتَّأْمِيْنُ او آمین ویل وَالتَّحْمِيْدُ او ربنالك الحمد ویل وَالْإِسْرَارُ بِهَا او دا ټوله په کراره ویل (یعني ثناء، تعوذ، تسمیه، آمین او تحمید په پټ آواز سره ویل سنت دي).

**لغات:** ﴿تأمین﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: آمین ویل، آمین اسم فعل دی چې د هغه معنیٰ ده: "اِسْتَجِبْ" (اې رب تعالیٰ! دعاء قبوله کړه!)، اوس وخت مسلمانان، یهود او نصاریٰ ټوله دغه لفظ استعمالوي، خو مسلمانان یې په مد سره آمین وایي او یهود او نصاریٰ یې بغیر له مد څخه بغیر أمین وایي، دا لفظ له کومې ژبې څخه دی؟ په دې باره کې مې څه تحقیق تر لاسه نه کړی.

**تشریح:** په دې عبارت کې څو سنتونه بیان سوي دي: (۶) له الله اکبر (تکبیر تحریمه) ویلو څخه وروسته ثناء "سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَا إِلٰهَ غَيْرُكَ" ویل سنت دي، (۷) تر ثناء وروسته له سورة الفاتحه څخه مخکې تعوذ "أَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ" ویل سنت دي، او تعوذ دا د ثناء جزء نه دی، بلکې د قرائت سره متعلق دی، (۸) له تعوذ څخه وروسته تسمیه "بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ" ویل سنت دي. او په هر رکعت کې له سورة الفاتحه څخه مخکې بسم الله ویل سنت دي، (۹) آمین ویل سنت دي، یعني کله چې امام سورة الفاتحه ختم کړي "وَلَا الضَّالِّيْنَ" ووایي، نو په دې وخت کې امام او مقتدي دواړو لره آمین ویل سنت دي، همدارنګه تنها لمونځ کونکی او د لمانځه څخه بهر چې څوک سورة الفاتحه ووایي، هغه لره هم تر "وَلَا الضَّالِّيْنَ" وروسته آمین ویل سنت دي، (۱۰) بل سنت دا دی چې امام او منفرد (تنها لمونځ کونکی) دې له "سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ" څخه وروسته "رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ" هم وایي، او مقتدي دې صرف "رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ" وایي، (۱۱) او یو بل مستقل سنت دا دی چې ثناء، تعوذ، تسمیه او آمین دې په کراره وایي، برابره ده امام وي او که مقتدي یا منفرد وي؛ ځکه دا ټوله شیان له اذکار مسنونه څخه دي چې د هغوی حکم اخفاء ده لکه د سجدې او رکوع تسبیحات او داسې نور. (مراقی الفلاح مع الطحطاوي بحواله انوار الایضاح ص: ۱۴۱، ۱۴۲)

## د تکبیر تحریمه په وخت کي به څنګه دریږي؟

﴿٢٥١﴾ وَالْاِعْتِدَالُ عِنْدَ التَّحْرِيْمَةِ مِنْ غَيْرِ طَأْطَاةِ الرَّأْسِ او سیده دربدل د تحریمه (تکبیرِ تحریمه ویلو) په وخت کي بغیر له سر ټیټولو څخه.

**تشریح:** (١٢) مصنف رَحِمَهُ الله فرمایي چي د تکبیرِ تحریمه دویلو پرمهال بالکل سیده دربدل هم سنت دي، سر دي بالکل نه کږوي، بعضي لمونځ ګزاران چي کله د تکبیر تحریمه لپاره لاسونه پورته کوي، نو سر ډېر کږوي، دا خلاف سنت دی. (در مختار مصر ج:١، ص: ٢٢٣ بحوالة انوار الایضاح)

## تکبیرات انتقالیه په لوړ آواز سره ویل

﴿٢٥٢﴾ وَجَهْرُ الْإِمَامِ بِالتَّكْبِيْرِ وَالتَّسْمِيْعِ او په زوره ویل دامام (لپاره) دالله اکبر او سمع الله لمن حمده.

**تشریح:** (١٣) دامام لپاره دا سنت دي چي له رکن څخه بل رکن ته د منتقل کېدلو په وخت کي تکبیرات انتقالیه او له رکوع څخه د پورته کېدلو په وخت کي "سمع الله لمن حمده" او "سلام" په لوړ آواز سره وایي، د دې لپاره چي مقتدیان خبر سي چي امام له یوه رکن څخه و بل رکن ته منتقل کیږي. (مراقي الفلاح ص، ١٤٣)

﴿٢٥٣﴾ وَتَفْرِيْجُ الْقَدَمَيْنِ فِي الْقِيَامِ قَدْرَ أَرْبَعِ أَصَابِعَ او دواړي پښې خلاصي ساتل (سره لیري کول) په ولاړه کي د څلورو ګوتو په اندازه.

**لغات:** ﴿تفریج﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: خلاصول، خلاص ساتل، پراخه ساتل.

**تشریح:** (١٤) په لمانځه کي د ولاړي په حالت کي د دواړو قدمونو ترمینځ څلور ګوتي فاصله راوستل سنت دي.

## په لمانځه کي د قرائت سنت مقدار

﴿٢٥٤﴾ وَأَنْ تَكُوْنَ السُّوْرَةُ الْمَضْمُوْمَةُ لِلْفَاتِحَةِ مِنْ طِوَالِ الْمُفَصَّلِ فِي الْفَجْرِ وَالظُّهْرِ او (همدارنګه سنت دي) دا چي وي هغه سورت کوم چي د فاتحه سره یو ځای کول کیږي له طوالِ مُفصّل (اوږدو سورتونو) څخه په سهار او ماپښین کي وَمِنْ أَوْسَاطِهِ فِي الْعَصْرِ وَالْعِشَاءِ او له اوساطِ مُفصّل (منځنیو سورتونو) څخه په مازیګر او ماخوستن کي وَمِنْ قِصَارِهِ فِي الْمَغْرِبِ او له قصارِ مُفصّل (کوچنیو سورتونو) څخه په ماښام کي لَوْكَانَ مُقِيْمًا (دا سنت والی هلته دي) که چیري

لمونځ گزار مقیم وي وَيَقْرَأُ أَيَّ سُوْرَةٍ شَاءَ لَوْكَانَ مُسَافِرًا او وايي دې هر سورت چې يې خوښه وي که چيرې مسافر وي.

**تشريح**: (۱۵) په لمانځه کې څومره مقدار قرائت سنت دی، په دې باره کې د لمونځ گزار د دريو حالتونو په اعتبار سره جلا، جلا حکم دی:

①... که چيرې لمونځ گزار په سفر کې وي او سفر جاري وي، نو له سورة الفاتحه څخه وروسته چې کوم سورت هم وړيل وغواړي، هغه دې وايي، که څه هم ډېر کوچنی سورت وي او که څه هم هر لمونځ وي (مثلاً که د سهار په لمانځه کې قُل أعوذ برب الفلق او قُل أعوذ برب الناس ووايي، نو بيا هم سنت اداء کيږي).

②... که لمونځ گزار مسافر وي، ليکن يو ځای په اطمينان سره اقامت وکړي، نو د سهار او ماپښين په لمانځه کې له اوساط مفصّل څخه اوږده سورتونه، د ماز يگر او ماخوستن په لمانځه کې د اوساط مفصل کوچني سورتونه او د ماښام په لمانځه کې د قصار مفصل کوچني سورتونه وړيل سنت دي.

③... او که لمونځ گزار مقيم وي او وخت هم تنگ نه وي، نو د هغه لپاره سنت دا دي چې د سهار او ماپښين په لمانځه کې دې طوال مفصل، د مازيگر او ماخوستن په لمانځه کې دې اوساط مفصل او د ماښام په لمانځه کې دې قصار مفصل وايي (برابره ده لمونځ گزار امام وي او که منفرد وي اشفاء الارواح ا)

**فايده**: له طِوَالِ مُفَصَّل څخه مراد اوږده سورتونه دي، او دا له "سورة الحُجرات" څخه واخله تر "سورة البُروج" پورې دي. دغه سورتونو ته طوال مفصل وړيل کيږي. له أَوْسَاطِ مُفَصَّل څخه مراد مينځوي درجې سورتونه دي يعني چې نه زيات اوږده وي او نه زيات کوچني، او دا "له سورة البُروج" څخه واخله تر "سورة البَيِّنه (لَمْ يَكُنِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا)" پورې دي. له قِصَارِ مُفَصَّل څخه مراد کوچني سورتونه دي، او دا له "سورة البَيِّنه" څخه د قرآن تر آخره يعني تر "سورة النَّاس" پورې دي، همدا د جمهورو علماؤ مختار تعريف دی.

**يادونه**: په عمومي حالاتو کې د مسجد په جماعت کې د سهار او ماپښين په لمانځه کې طوال مفصل، د مازيگر او ماخوستن په لمانځه کې اوساط مفصل او د ماښام په لمانځه کې قصار مفصل څخه کم قرائت نه کول پکار دي، که څوک بوډا يا مريض وي او د سهار په لمانځه کې د سنت قرائت په اندازه نه سي دريدلای، نو هغه دې په ناسته قرائت اوري، يا په کور کې دې لمونځ کوي، د داسې کس په رعايت کې به په سنت قرائت کې کمي او تخفيف نه کول کيږي، خو په ناڅاپه پېښېدونکي حالاتو کې کمي وزياتوب کولای سي، مثلاً د لمانځه په دوران کې امام محسوس کړي چې ډېر خلک مسجد ته راغلي دي او اودسونه کوي، نو امام قرائت اوږدولای سي، د دې لپاره چې خلک له اودس څخه تر فارغېدلو وروسته په جماعت کې شريک سي، يا په صحن (غولي) او خلاص

ځای کي جماعت کول کيږي او باران شروع سي، نو قرائت مختصره کولای سي، همدارنګه که په کور کي بوډا يا مريض کس ته لمونځ ورکوي، نو هم له سنت قرائت څخه کم قرات کولای سي.(تحفة الالمعي ج:۱، ص:۵۶۹)

## د سهار په لمانځه کي اول رکعت اوږدول

﴿۲۵۵﴾ وَإِطَالَةُ الْأُوْلٰى فِي الْفَجْرِ فَقَطْ او (سنت دي) د اول رکعت اوږدول صرف په سهار کي.

**تشريح:** (۱۶) د امام ابو حنيفه او امام ابو يوسف رَحِمَهُمَا الله په نيز د سهار په لمانځه کي اول رکعت له دويم رکعت څخه اوږدول او په نورو لمنځونو کي دواړه رکعتونه برابر ساتل مسنون دي. د امام محمد او د نورو امامانو رَحِمَهُمُ الله په نيز په ټولو لمنځونو کي اول رکعت له دويم رکعت څخه اوږدول سنت دي. (طحطاوي على مراقي الفلاح ص:۱۴۴)

﴿۲۵۶﴾ وَتَكْبِيْرَةُ الرُّكُوْعِ او (سنت دي) د رکوع تکبير.

**تشريح:** (۱۷) رکوع ته د تللو په وخت کي "الله أکبر" ويل سنت دي.

﴿۲۵۷﴾ وَ تَسْبِيْحُهُ ثَلَاثًا او د رکوع تسبيح دري واره (ويل).

**تشريح:** (۱۸) په رکوع کي کم از کم دري واره "سبحان ربي العظيم" ويل سنت دي.

﴿۲۵۸﴾ وَ أَخْذُ رُكْبَتَيْهِ بِيَدَيْهِ او (سنت دي په حالت د رکوع کي) خپل دواړه زنګونان په دواړو لاسو سره نيول.

**تشريح:** (۱۹) د رکوع کولو په وخت کي زنګونان په لاسو سره نيول سنت دي.

﴿۲۵۹﴾ وَ تَفْرِيْجُ أَصَابِعِهِ او (سنت دي په رکوع کي) خپل ګوتي خلاصي ساتل وَالْمَرْأَةُ لَا تُفَرِّجُهَا او ښځه به يې خلاصي نه ساتي.

**لغات:** ﴿تفريج﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: خلاصول، خلاص ساتل، پراخه ساتل

**تشریح**: (۲۰) شلم سنت دا دی چې په رکوع کي پر زنګنو د لاسو د اینبوولو (زنګون نیولو) په وخت کي دي سړی ګوتې خلاصي ساتي (خلا دي پکښي راولي) او بنځه دي ګوتې سره یو ځای (جوختي) ساتي او په لاسو سره دي زنګون نه نیسي، صرف اږدي دي یې.

﴿۳۶۰﴾ وَنَصْبُ سَاقَيْهِ او (سنت دي) خپل دواړي پنډۍ سیده درول (سیده ساتل) وَبَسْطُ ظَهْرِهِ وَتَسْوِيَةُ رَأْسِهِ بِعَجُزِهِ او خپله ملا هوارول (سیده کول) او خپل سر د کوناټو سره برابرول (سیده ساتل).

**لغات**: ﴿نَصْب﴾ د ضرب د باب مصدر دی: درول، جګول، ﴿عَجز﴾ او عَجُزُ د هر شي شاتني حصه، کوناټي، جمع: أَعْجَازٌ. (انوار الایضاح)

**تشریح**: (۲۱) پنډیاني سیده کول په دې توګه چې په زنګنو کي کوږوالی نه وي، سنت دي.

(۲۲، ۲۳) او د سړي لپاره د رکوع په حالت کي بنه ټیټېدل چې سر، ملا او سُرین (کوناټي) تول سره برابر سیده سي چې که داوبو لوښی د هغه پر ملا کښېښول سي، نو هغه سیده پاته سي. او د ښځې لپاره په رکوع کي په دې تولو هیئتونو کي د سړي برعکس کول سنت دي چې په رکوع کي دي صرف دومره اندازه کږېږي چې لاسونه یې تر زنګنو پوري ورسیږي او ملا دي نه سیده کوي او ګوتې دي سره یو ځای (جوختي) اږدي او پر زنګنو دي صرف لاسونه اږدي او په زنګنو کي دي کوږوالی ساتي. د خلکو په څېر دي یې نه سیده کوي. (شفاء الارواح بحوالهٔ عمدة الفقه)

﴿۳۶۱﴾ وَالرَّفْعُ مِنَ الرُّكُوعِ وَالْقِيَامُ بَعْدَهُ مُطْمَئِنًّا او (سنت دي) له رکوع څخه پورته کېدل او تر رکوع وروسته په اطمینان سره درېدل.

**تشریح**: (۲۴) له رکوع څخه پورته کېدل سنت دي.

(۲۵) بیا تر رکوع وروسته سیده درېدل یعني قومه د مشهوره مذهب مطابق سنت ده، خود صحیح مذهب مطابق قومه واجب ده. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

﴿۳۶۲﴾ وَوَضْعُ رُكْبَتَيْهِ ثُمَّ يَدَيْهِ ثُمَّ وَجْهِهِ لِلسُّجُودِ او د سجدې لپاره (اول) خپل دواړه زنګنونه، بیا لاسونه، بیا خپل مخ اینبوول وَعَكْسُهُ لِلنُّهُوضِ او د پورته کېدو لپاره ددې برعکس کول.

**لغات**: ﴿نهوض﴾ د فتح د باب ماضي ده: پورته کېدل، درېدل.

**تشريح:** (۲۶) سجدې ته د تللو په وخت کې زنګونان پر ځمکه اېښوول بيا لاسونه. بيا پزه. بيا تندی اېښوول سنت دي، (۲۷) او له سجدې څخه د پورته کېدلو په وخت کې د دې برعکس کول سنت دي، يعني اول تندی، بيا پزه، بيا دواړه لاسونه، بيا دواړه زنګونان پورته کول. (شفاء الارواح)

﴿۳۶۳﴾ وَتَكْبِيْرُ السُّجُوْدِ وَتَكْبِيْرُ الرَّفْعِ مِنْهُ او د سجدې تکبير او له سجدې څخه د راپورته کېدلو تکبير (يعني په الله اکبر سره سجدې ته تلل او را پورته کېدل سنت دي).

**تشريح:** (۲۸) سجدې ته د تللو په وخت کې تکبير ويل سنت دي، (۲۹) همدارنګه له سجدې څخه د راپورته کېدلو په وخت کې هم تکبير ويل سنت دي.

﴿۳۶۴﴾ وَكَوْنُ السُّجُوْدِ بَيْنَ كَفَّيْهِ او سجده د خپل دواړو ورغوو ترمينځ کېدل.

**تشريح:** (۳۰) د سجدې په حالت کې مخ د دواړو ورغوو (لاسونو) په مينځ کې اېښوول هم سنت دي.

﴿۳۶۵﴾ وَتَسْبِيْحُهُ ثَلَاثًا او د سجدې تسبيح درې واره (ويل).

**تشريح:** (۳۱) په سجده کې کم از کم درې وار "سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلٰى" ويل هم سنت دي.

﴿۳۶۶﴾ وَمُجَافَاةُ الرَّجُلِ بَطْنَهُ عَنْ فَخِذَيْهِ او (سنت دي په سجده کې) د سړي (ږاره) ليري کول د خپل نس له خپلو ورنو څخه وَمِرْفَقَيْهِ عَنْ جَنْبَيْهِ او (ليري کول) د خپلو څنګلو له خپلو اړخو څخه وَذِرَاعَيْهِ عَنِ الْأَرْضِ او (ليري کول) د خپلو ليڅو له ځمکې څخه.

**لغات:** ﴿مجافاة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: ليري ساتل، جلا ساتل. ﴿فَخْذٌ﴾ او فَخِذٌ (د راء په سکون او کسره سره): ورون، جمع: أَفْخَاذ. ﴿جنب﴾ بغل څنګ، جمع: أَجْنَابٌ و جُنُوْبٌ. ﴿ذراع﴾ ليڅې (يعني له څنګلې څخه ترمروند پورې د لاس برخه).

**تشريح:** (۳۲) دوهم شم سنت دا دی چې سړی دې د سجدې په حالت کې نس له ورنو څخه جلا ساتي، همدارنګه د سړي لپاره د سجدې په حالت کې څنګلې پر ځمکه يا پر ورنو لګول صحيح نه دي، همدغه دې څنګلې پورته او له بغلو څخه ليري ساتي. خو په جماعت سره د لمونځ کولو په وخت کې دې څنګلې داسې نه باسي چې په هغه سره څنګ والا لمونځ ګزارانو ته تکليف ورسيږي. لو که څوک لوړه سجده کوي او هغه د سنت طريقې مطابق د سجدې کولو په وجه يعني له بغلو څخه

د ځنګلو دلېږي ساتلو په وجه سترې سي، نو د هغه لپاره ځنګلي پر ورنو لګول جائز دي، خو دلېځو د هوارولو اجازه ور ته نسته.

## د ښځي د سجدې طريقه

﴿۳٦۷﴾ وَانْخِفَاضُ الْمَرْأَةِ او (سنت دي په سجده کي) د ښځي (لپاره) ټيټېدل وَلَزْقُهَا بَطْنَهَا بِفَخْذَيْهَا او خپل نس له خپلو ورنو سره مښلول (لګول).

**لغات:** ﴿انخفاض﴾ د انفعال د باب مصدر دی: ټيټېدل، ﴿لَزق﴾ لزوقًا: د سمع د باب مصدر دی: مښلېدل (لګېدل)، مښلول.

**تشريح:** (۳۳، ۳۴) د ښځي لپاره په سجده کي د سړي خلاف کول سنت دي چي هغه دي خپلي ځنګلي د بغلونو سره لګوي او نس دي د ورنو سره لګوي او لېځي دي پر ځمکه هواروي.

﴿۳٦۸﴾ وَالْقَوْمَةُ وَالْجَلْسَةُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ او (سنت دي) قومه (له رکوع څخه وروسته) او جلسه د دوو سجدو په مينځ کي (يعني له رکوع څخه وروسته په اطمينان سره درېدل او د دوو سجدو په مينځ کي په اطمينان سره کښېنستل، دا هم سنت دي).

**تشريح:** (۳۵، ۳٦) د صحيح قول مطابق قومه يعني تر رکوع وروسته سيده په اطمينان سره درېدل واجب دي (لکه مخکي چي مو ذکر کړه) او جلسه يعني د دوارو سجدو په مينځ کي سيده په اطمينان سره کښېنستل دا هم د صحيح قول مطابق واجب دي، مصنف رَحِمَهُ الله غير صحيح قول را اخيستی دی.-(شفاء الارواح)

﴿۳٦۹﴾ وَوَضْعُ الْيَدَيْنِ عَلَى الْفَخْذَيْنِ فِيمَا بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ او (سنت دي) دواړه لاسونه پر ورنو اېښوول د دوارو سجدو په مينځ کي كَحَالَةِ التَّشَهُّدِ د تشهد د حالت په څېر (يعني لکه څنګه چي د التحيات ويلو په حالت کي لاسونه پر ورنو اېښوول کېږي، همداسي دي په جلسه هم کول کېږي).

**تشريح:** (۳۷، ۳۸) او په جلسه (يعني د دوارو سجدو د مينځ په ناسته) کي لاسونه پر ورنو اېښوول سنت دي، په لاسونو سره دي زنګونان نه نيسي، لکه څرنګه چي په التحيات کي همدا طريقه ده چه لاسونه پر ورنو ايږدي (په دې توګه چي ګوتي يې د قبلې پر طرف وي).

﴿۲۷۰﴾ وَافْتِرَاشُ رِجْلِهِ الْيُسْرٰى وَنَصْبُ الْيُمْنٰى او (سنت دي. د سړي لپاره) خپل چپه پښه غوړول او راسته پښه درول.

**تشريح:** (۳۹) په جلسه او التحيات کي د کښېنستلو پر مهال چپه پښه هوارول او پر هغه کښېنستل او راسته پښه درول (په دې توګه چي د هغې ګوتي د قبلې وطرف ته وي) سنت دي.

﴿۲۷۱﴾ وَتَوَرُّكُ الْمَرْأَةِ او د ښځي (لپاره) تورک کول.

**لغات:** ﴿تورك﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: پر کوناټي کښېنستل او پښې تر يوه طرف ايستل.

**تشريح:** (۴۰) او د ښځي لپاره د ناستي سنت طريقه دا ده چي دواړي پښې دي هواري کړي، راسته طرف ته دي يې وباسي او پر چپه کوناټي دي کښېني.

﴿۲۷۲﴾ وَالْإِشَارَةُ فِي الصَّحِيحِ بِالْمُسَبِّحَةِ عِنْدَ الشَّهَادَةِ او (سنت دي) اشاره کول په صحيح قول کي د شهادت په ګوته سره (په التحيات کي) د شهادت (أشهد أن لا إله...) ويلو په وخت کي يَرْفَعُهَا عِنْدَ النَّفْيِ وَيَضَعُهَا عِنْدَ الْإِثْبَاتِ پورته دي کړي هغه د نفي (لا إله ويلو) په وخت کي او هغه دي کښېږدي (کښته کړي) د اثبات (إلا الله ويلو) په وخت کي.

**تشريح:** (۴۱) په التحيّات کي د شهادت ويلو پر مهال په ګوته سره اشاره کول سنت دي او پر دې د څلورو سره فقهاؤ اتفاق دی، که څه هم د احنافو په نيز مخکي په دې مسئله کي شديد اختلاف وو، خو وروسته دا اختلاف ختم سو، اوس ټوله احناف د اشارې قائل دي، د اشاره کولو طريقه دا ده چي خچې (خچنه) ګوته او د هغې څنګ والا دوې ګوتي (يعني د ګوتمې ګوته او مينځوی ګوته) دي بندي کړي او د شهادت ګوته دي سيده پورته کړي او بټه ګوته دي د مينځوی ګوتي د سر پر طرف کښېږدي چي حلقه څني جوړه سي (يا بټه ګوته دي د مينځوی ګوتي پر دوېم بند کښېږدي)، او له دې څخه بغير دوې طريقې نوري هم سته: ① يوه دا چي خچې ګوته او د هغې څنګ والا دوې ګوتي بندي کړي او بټه ګوته د شهادت ګوتي د بېخ سره ولګوي، ② دوېمه دا چي ټوله ګوتي موټ کړي (موټ څني جوړ کړي) او د شهادت په ګوتي سره اشاره وکړي.

او اشاره به کله کوي؟ نو فرمايي چي کله په التحيات کي شهادت (أشهد أن لا إله إلا الله...)

ته ورسيږي نو د "لا إله" د ويلو په وخت کي دي د شهادت ګوته دومره حدّ پورته کړي چي ګوته مخ پر قبله پاته سي (مخ يې د قبلې وطرف ته پاته سي) او دومره لوړه نه سي چي د آسمان وطرف ته سي، او

کله چي "إلا الله" ته ورسيږي، نو ګوته دي لاندي کړي او دا حلقه او موټ دي د سلام ګرځولو تر وخته پوري باقي ساتي.

او يو قول دا دی چي اشاره نه دي کول کيږي، خو هغه قول صحيح نه دی. (انوار الايضاح، شفاء الارواح بحوالة حاشيه)

﴿۲۴۳﴾ وَقِرَاءَةُ الْفَاتِحَةِ فِيْمَا بَعْدَ الْأُوْلَيَيْنِ او (سنت دي) سورة الفاتحه ويل له اولو دوو رکعتونو څخه وروسته والا رکعتونو کي.

**تشريح:** (۴۲) د فرضي لمانځه له اولو دوو رکعتونو څخه وروسته په آخري پاته رکعتونو کي سورة الفاتحه ويل سنت دي، واجب او لازم نه دي.

## درود شريف او دعاء ويل

﴿۲۴۴﴾ وَالصَّلٰوةُ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ فِي الْجُلُوْسِ الْأَخِيْرِ او (سنت دي) درود شريف ويل په نبي کريم ﷺ باندي په آخره ناسته کي وَالدُّعَاءُ بِمَا يُشْبِهُ أَلْفَاظَ الْقُرْآنِ وَالسُّنَّةِ لَا كَلَامَ النَّاسِ او دعاء کول په داسي الفاظو سره کوم چي مشابه وي د قرآن کريم او حديثو د الفاظو، نه د خلکو د خبرو (يعني داسي الفاظ کوم چي د کلام الناس مشابه وي).

**تشريح:** (۴۳) په آخره ناسته (قعدهٔ اخيره) کي تر تشهد وروسته درود شريف ويل سنت وي، او په درود کي درود ابراهيمي ويل افضل دي. (۴۴) همدارنګه له درود شريف څخه وروسته دعاء غوښتل هم سنت دي، خو دعاء به په هغه الفاظو سره غواړي کوم چي په قرآن يا حديثو کي وارد سوي وي.

**درود ابراهيمي:** اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى إِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰى آلِ إِبْرَاهِيْمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ، اَللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى إِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰى آلِ إِبْرَاهِيْمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ.

**تر درود وروسته قرآني دعاګاني:** په قرآن کي ډېر ځايونه دعاء ګاني ذکر سوي دي، له هغوی څخه شو دعاء ګاني لاندي نقل سوي دي، لمونځ ګزار ته پکار ده چي له دې دعاء ګانو يا له نبوي دعاء ګانو څخه يوه يا دوې وايي:

① ﴿رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ﴾. (سورة البقرة: ۲۰۱)

② ﴿رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوْبَنَا بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنَا وَهَبْ لَنَا مِنْ لَّدُنْكَ رَحْمَةً إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ﴾. (سورة آل عمران: ۸)

③ ﴿ رَبِّ اجْعَلْنِي مُقِيمَ الصَّلَاةِ وَمِن ذُرِّيَّتِي رَبَّنَا وَتَقَبَّلْ دُعَاءِ. رَبَّنَا اغْفِرْ لِي وَلِوَالِدَيَّ وَلِلْمُؤْمِنِينَ يَوْمَ يَقُومُ الْحِسَابُ ﴾. [سورة ابراهيم: ۳۰، ۳۱]

④ ﴿ رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَكَفِّرْ عَنَّا سَيِّئَاتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ الْأَبْرَارِ. رَبَّنَا وَآتِنَا مَا وَعَدتَّنَا عَلَىٰ رُسُلِكَ وَلَا تُخْزِنَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيعَادَ ﴾. [سورة آل عمران: ۱۹۳، ۱۹۴]

⑤ ﴿ رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ أَزْوَاجِنَا وَذُرِّيَّاتِنَا قُرَّةَ أَعْيُنٍ وَاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِينَ إِمَامًا ﴾. [سورة الفرقان: ۷۴]

**تر درود وروسته نبوي دعاګاني:** تر تشهد وروسته له نبي کريم ﷺ څخه څو نقل سوي دعاګاني دادي:

① « اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ جَهَنَّمَ وَمِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَمِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ وَمِنْ شَرِّ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ ». [بخاري شريف، حديث شمېره: ۸۳۲، مسلم شريف، حديث شمېره: ۱۳۵۲]

② « اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي مَا قَدَّمْتُ وَمَا أَخَّرْتُ وَمَا أَسْرَرْتُ وَمَا أَعْلَنْتُ وَمَا أَسْرَفْتُ وَمَا أَنْتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّي. أَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَأَنْتَ الْمُؤَخِّرُ لاَ إِلٰهَ إِلاَّ أَنْتَ ». [مسلم شريف، حديث شمېره: ۱۸۱۲]

③ « اللَّهُمَّ إِنِّي ظَلَمْتُ نَفْسِي ظُلْمًا كَثِيرًا وَلاَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلاَّ أَنْتَ فَاغْفِرْ لِي مَغْفِرَةً مِنْ عِنْدِكَ وَارْحَمْنِي إِنَّكَ أَنْتَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ ». [بخاري شريف، حديث شمېره: ۸۳۴]

④ « اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْعَجْزِ وَالْكَسَلِ وَالْجُبْنِ وَالْهَرَمِ وَالْبُخْلِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَمِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ ». [مسلم شريف، حديث شمېره: ۶۳۶۷، ۶۸۷۳]

**د دعاء د قبوليت په هکله د ځينو علماؤ قول:** ځينو علماؤ ودې خبري ته اشاره کړې ده چي په آخره ناسته کي تر درود شريف وروسته دعاء قبليږي. ځکه په لمانځه کي تر درود مخکيني حصه ټوله دالله لپاره ده، لو دا تر درود حصه د بنده لپاره وي، او د دې مثال داسي دى لکه يو مزدور چي ټوله ورځ کار وکړي. نو د ورځي په آخر کي له مالک څخه د خپل کار اُجرت غواړي. آخري دعاء هم د يو اُجرت په ډول ده کوم چي يو مومن له الله ﷻ څخه د لمانځه په آخر کي غواړي، نو انشاء الله دا دعاء قبليږي. همدا وجه ده چي يو بزرګ ويلي دي: چي که څوک غواړي زما اولاد او زما ښځه فرمانبرداره سي او زما لپاره د سترګو يخوالى وګرځي. نو هغه دې په آخره ناسته کي د دې قرآني دعاء اهتمام کوي: « رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ أَزْوَاجِنَا وَذُرِّيَّاتِنَا قُرَّةَ أَعْيُنٍ

وَّاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِيْنَ إِمَامًا ، او په نبه اخلاص سره دي دا دعاء نور وختونه هم وايي، ان شاء الله مقصد به يې پوره سي.

لهذا مونږ ته پکار ده چي له نقل سوو دعاګانو څخه يوه غوره دعاء انتخاب کړو، او داسي هم کولای سو، چي ځيني وختونه يوه دعاء وايو، او ځيني وختونه بله دعاء.

## راسته او چپه طرف ته مخ ګرځول

﴿۲۷۵﴾ وَالْاِلْتِفَاتُ يَمِيْنًا ثُمَّ يَسَارًا بِالتَّسْلِيْمَتَيْنِ او (سنت دي) مخ ګرځول راسته طرف ته بيا چپه طرف ته په دواړو سلامونو کي (يعني د سلام ګرځولو په وخت کي).

**لغات**: ﴿الالتفات﴾ د افتعال د باب مصدر دی: توجّه کول (پاملرنه کول)، د يو شي و طرف ته مخ ګرځول (مخ اړول). (معجم الوسيط)

**تشريح**: (۴۵) د سلام ګرځولو په وخت کي راسته او چپه طرف ته مخ ګرځول سنت دي، او مخ دي دومره ګرځوي چي له شا څخه يې باړخو ليدل کيږي، همدارنګه چپه طرف ته، او د سلام ګرځولو په وخت کي راسته طرف ته په راسته اوږده باندي نظر ساتل او چپه طرف ته په چپه اوږه باندي نظر ساتل مستحب دي.

## د سلام ګرځولو په وخت کي به امام څه نيت کوي؟

﴿۲۷۶﴾ وَنِيَّةُ الْإِمَامِ الرِّجَالَ وَالْحَفَظَةَ وَصَالِحِ الْجِنِّ بِالتَّسْلِيْمَتَيْنِ او د امام (لپاره سنت دي) نيت کول د خلکو او د ساتونکو ملائکو او د نېکو پېريانو په دواړو سلامونو کي فِي الْأَصَحِّ د صحيح ترين قول مطابق.

**تشريح**: (۴۶) د سلام ګرځولو په وخت کي د سلام کولو نيت کول سنت دي، امام به د مقتديانو نيت کوي (يعني پر مقتديانو به د سلام کولو نيت کوي) او د ساتونکو فرشتو نيت به کوي کوم چي د انسان د هر قول او عمل حفاظت کوي يا له سرکښو جناتو او شياطينو څخه د انسان حفاظت کوي، همدارنګه د نېکو جناتو نيت به هم کوي (ځکه ډېر ځله نېک جنات هم په جماعت کي شرکت کوي)، او دا حکم دواړو طرفونو ته د سلام ګرځولو په وخت کي دی، ځيني حضرات فرمايي چي صرف په اول سلام کي دي نيت کوي، خو اصح قول همدا اول قول دی. (مراقی الفلاح ص، ۱۵۰)

## مقتدي به څه نیت کوي؟

﴿۲۷۷﴾ وَنِيَّةُ الْمَأْمُوْمِ إِمَامَهُ فِيْ جِهَتِهِ او د مقتدي (لپاره سنت دي) نیت کول د خپل امام د هغه په طرف کي (یعني کوم طرف ته چي امام وي، یعني که امام د مقتدي راسته طرف ته وي، نو د راسته طرف په سلام کي دي د هغه نیت وکړي او که چپه طرف ته وي نو.....) وَإِنْ حَاذَاهُ او که د امام سره برابر وي (یعني که مقتدی د امام شاته برابر ولاړ وي) نَوَاهُ فِي التَّسْلِيْمَتَيْنِ مَعَ الْقَوْمِ وَالْحَفَظَةِ وَصَالِحِ الْجِنِّ نو په دواړو سلامونو کي دي د امام نیت وکړي، د قوم، ساتونکو فرشتو او نېکو پېریانو (د نیت) سره.

**لغات:** ﴿حاذاه﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: په مقابل کي راتلل، برابرېدل، برابرول. ﴿حفظة﴾ جمع د حَافِظٌ ده: علمنامه لیکونکي فرشتې، د انسان راسته طرف ته "رقیب" فرشته ده کوم چي نېکیاني لیکي او چپه طرف ته "عتید" فرشته ده کوم چي بدیاني لیکي او دوی ته "حَفَظَة" په دې وجه ویل کېږي چي دوی له انسان څخه صادر بېدونکي ټوله اقوال او فعال لیکي او محفوظه کوي، یا په دې وجه چي دوی له خبیثه جناتو او د هلاکت له ځایو څخه د انسان حفاظت کوي. (انوار الایضاح)

**تشریح:** (۴۷) یعني د سلام ګرځولو په وخت کي د مقتدي لپاره هم نیت کول سنت دي، او مقتدی درې قسمه کېدلای سي: ① هغه مقتدی کوم چي د امام راسته طرف ته وي، هغه دي په اول سلام کي صرف د خپل راسته طرف والا مقتدیانو، فرشتو او نېکو جناتو باندي د سلام نیت کوي او د چپه طرف په سلام کي دي د امام او د چپه طرف والا مقتدیانو او فرشتو او جناتو نیت کوي، ② هغه مقتدی کوم چي د امام چپه طرف ته وي، هغه دي په اول سلام کي د امام او چپه طرف ته د مقتدیانو، فرشتو او جناتو نیت کوي او په دویم سلام کي دي د امام له نیت څخه بغیر باقي د ټولو نیت کوي، ③ هغه مقتدی کوم چي بالکل د امام شاته وي، برابره ده هغه په هر صف کي وي، هغه دي په خپل دواړو سلامونو کي د امام نیت کوي او د دې تر څنګ د دواړو طرفونو د فرشتو، جناتو او مقتدیانو نیت دي هم کوي. (مراقي الفلاح ص، ۱۵۰)

## منفرد به څه نیت کوي؟

﴿ ۲۷۸ ﴾ وَنِيَّةُ الْمُنْفَرِدِ الْمَلَائِكَةَ فَقَطْ او د تنها لمونځ کونکي (لپاره سنت دي) صرف د فرښتو نیت کول.

**تشریح**: (۴۷) د منفرد لپاره صرف راسته او چپه طرف ته د فرښتو نیت کول سنت دي، یعني کوم څوک چې تنها (یوازې) لمونځ کوي، هغه دې صرف په حفاظت کونکو فرښتو باندې د سلام نیت کوي؛ ځکه د ده سره صرف هغه فرښتې دي. خو علامه طحطاوي رَحِمَهُ الله فرمايي چې کله یو کس په دښت او صحرا کې په آذان او اقامت سره لمونځ کوي، نو خلق کثیر په هغه پسې اقتداي کوي، لهذا دلته د "وَيَنْوِيْ مَنِ اقْتَدیٰ" عبارت ذکر کول مناسب وه. (طحطاوي ص: ۱۵۰)



**د مسلمان سره د فرښتو شمېر**: له ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه روایت دی چې د هر مسلمان سره پنځه حفاظت کونکي فرښتې وي: ① یوه یې راسته طرف ته د نېکیو لیکونکې فرښته وي، ② او یوه یې چپه طرف ته د بدیو لیکونکې فرښته وي، ③ او یوه یې مخ ته د ښو کارونو تلقین ورکونکې فرښته وي، ④ او یوه یې شاته له ستونزو او پېښو څخه ساتونکې فرښته وي، ⑤ او یوه یې د تندي سره درود لیکونکې او نبي ﷺ ته د درود رسونکې فرښته وي.

او له ابو امامه ﷛ څخه روایت دی: « وُكِّلَ بِالْمُؤْمِنِ مِائَةٌ وَسِتُّونَ مَلَكًا يَذُبُّوْنَ عَنْهُ كَمَا يُذَبُّ عَنْ قَصْعَةِ الْعَسَلِ الذُّبَابُ... (الخ) ». [المعجم الكبير للطبراني، حديث شمېره، ۷۷۰۴: تفسير آلوسي ج: ۲۰، ص: ۲۷۵]. (یعني د مؤمن د حفاظت او ساتنې لپاره یو سل او شپېته [۱۶۰] فرښتې ټاکل سوي دي چې هغه له مؤمن څخه داسې دفاع او ساتنه کوي څرنګه چې د تندي ګرمۍ په ورځ د عسلو کاسه له مچیانو څخه ساتل کیږي، او که بنده یوه ثانیه خپل نفس ته وسپارل سي، نو شیطانان به یې څیري او نادر که کړي ).

او په ځینې روایاتو کې د شپېته فرښتو او په ځینو کې د لسو فرښتو ذکر سوی دی، او په ځینو کې د پنځو او په ځینو کې د دوو ذکر سوی دی. لنډه دا چې کله د فرښتو په شمېر کې اختلاف دی، نو ځکه بعضې علماء فرمايي چې له څه تعیین څخه پرته د ټولو فرښتو نیت به کول کیږي.

﴿۲۷۹﴾ وَخَفْضُ الثَّانِيَةِ عَنِ الْأُولٰى او (سنت دي) دويم سلام له اول سلام څخه ټيټول (يعني په ټيټ آواز سره ويل د اول سلام په نسبت).

**لغات:** ﴿خفض﴾ د ضرب د باب مصدر دی: ټيټول (په ټيټ آواز سره ويل).

**تشریح:** (۴۸) دويم سلام څه په ټيټ (کښته) آواز سره ويل هم سنت دي، چې امام دي دويم سلام د اول سلام په نسبت څه په ټيټ آواز سره وايي.

﴿۲۸۰﴾ وَمُقَارَنَتُهُ لِسَلَامِ الْإِمَامِ او (سنت دي) د مقتدي (لپاره خپل سلام) يو ځای کول د امام د سلام سره.

**تشریح:** (۴۹) د مقتدي لپاره سنت دا دي چې د امام د سلام سره يو ځای سلام وګرځوي. خو صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې د امام د سلام وروسته دي سلام ګرځوي چې په دنياوي امورو کې تلوار کول لازم نه سي (يعني غوره دا ده چې مقتدی امام ته منتظر سي کله چې امام راسته طرف ته سلام وګرځوي، نو بيا دي مقتدی راسته طرف ته سلام وګرځوي، همدارنګه کله چې امام چپه طرف ته له سلام څخه فارغ سي، نو مقتدی دي چپه طرف ته سلام وګرځوي). (مراقی الفلاح ص: ۱۵۰. شفاء الارواح ص ۱۶۹)

﴿۲۸۱﴾ وَالْبِدَاءَةُ بِالْيَمِيْنِ او (سنت دي) شروع کول (په سلام کې) په راسته طرف سره.

**تشریح:** (۵۰) او په سلام کې په راسته طرف سره شروع کول يعني اول راسته طرف ته سلام ګرځول هم سنت دي.

## مسبوق به د خپل پاته لمانځه د پوره کولو لپاره کله ولاړيږي؟

﴿۲۸۲﴾ وَانْتِظَارُ الْمَسْبُوْقِ فَرَاغَ الْإِمَامِ او (سنت دي) د مسبوق (لپاره) انتظار کول د امام د فارغيدلو.

**لغات:** ﴿مسبوق﴾ هغه مقتدی چې اول رکعت څني تېر سوی وي، هغه ته مسبوق وايي. نور بيا که د رکعته څني تير سوي وي او که دري يا څلور سره.

**تشریح:** (۵۱) او د مسبوق لپاره د خپل امام د فارغيدلو انتظار کول سنت دي، يعني د مسبوق لپاره دا سنت دي چې کله امام دواړو طرفونو ته سلام وګرځوي او مسبوق مطمئن سي چې پر امام سجدهٔ سهو نسته، نو بيا دي د خپل پاته لمانځه د پوره کولو لپاره ولاړ سي.

❀ ❀ ❀

## تر سلام مخکې د پاته لمانځه د پوره کولو لپاره ولاړېدل

**مسئله**: په آخره ناسته کې د تشهّد په اندازه ناستې څخه مخکې د مسبوق ولاړېدل په هیڅ صورت کې جائز نه دي، او د تشهد په اندازه ناستې څخه وروسته او د امام تر سلام ګرځولو مخکې ولاړېدل صرف د عذر په صورت کې جائز کېدلای سي، په عامو حالاتو کې یې اجازه نسته، او عذرونه په لاندې توګه کېدلای سي:

① یو دا چې مسبوق موزې، (جرموقین وغیره) اغوستې وي او ده ته دا بېره وي چې که د امام تر سلام ګرځولو وروسته خپل پاته لمونځ پوره کړم، نو د مسح موده به ختمه سي، ② دویم دا چې مسبوق شرعاً معذره وي او هغه ته د لمانځه د وخت وتلو بېره وي، ③ درېیم دا چې د جمعې په لمانځه کې د مازیګر د وخت داخلېدلو بېره وي، یا د سهار په لمانځه کې د لمر راختلو امکان وي. ④ څلورم دا چې مسبوق ته دا بېره وي چې د امام تر سلام ګرځولو وروسته به داسې رش (ګڼه ګونه) سي چې د پاته لمونځ پوره کول به زما لپاره مشکل سي، نو د داسې عذرونو په وجه مسبوق د خپل بقیه لمونځ لپاره د امام تر سلام ګرځولو مخکې هم ولاړېدلای سي. (عالمګیري ج:۱، ص:۹۱، طحطاوي ص:۱۵۰، کتاب المسائل ص:۳۹۷)



# فَصْلٌ فِيْ آدَابِهَا

(دا) فصل په (بیان د) د لمانځه د آدابو کي دی

**تشریح**: آدَاب جمع د أدبٌ ده.

**د ادب لغوي او اصطلاحي معنیٰ**: ادب د "کَرُم" او "ضَرَبَ" له بابونو څخه مصدر راځي: ځیرک کېدل، هوښیار کېدل، بلنه ورکول، ښه خوی او عادت والا کېدل. او اصطلاحي معنیٰ یې په ادبیاتو کي په مختلفه الفاظو سره نقل سوې ده، د دې باب سره اړوند اصطلاحي معنیٰ یې داسي نقل سوې ده: « مَا فَعَلَهُ النَّبِيُّ ﷺ مَرَّةً وَتَرَكَهُ أُخْرَىٰ »، (یعني هغه عمل چي ځیني وختونه نبي کریم ﷺ کړی وي او ځیني وختونه یې پرې ایښی وي). لنډه دا چي له ادب څخه مراد هغه دی کوم چي نبي کریم ﷺ کله نا کله کړی وي او پر هغه یې همېشتوب نه وي کړی، لکه په رکوع او سجده کي له دریو وارو څخه زیات تسبیحات ویل او له سنت مقدار څخه زیات قرائت کول (صاحب د "ثمرة النجاح" دلته د آدابو معنیٰ په مستحباتو سره کړې ده)، د ادب او مستحب حکم دا دی چي که په هغه باندي عمل وکړي، نو ثواب ورته حاصلیږي او که عمل نه په وکړي، نو هیڅ گناه او عتاب باندي نسته.

﴿۲۸۳﴾ مِنْ آدَابِهَا إِخْرَاجُ الرَّجُلِ كَفَّيْهِ مِنْ كُمَّيْهِ عِنْدَ التَّكْبِيْرِ د لمانځه له آدابو څخه دي (۱) د سړي (پاره) را ایستل د خپلو ورغوو (لاسونو) له خپلو لستونو څخه د تکبیرِ تحریمه په وخت کي.

**لغات**: ﴿كُمٌّ﴾ لستونی، جمع: أَكْمَامٌ، كِمَمَةٌ.

**تشریح**: اول ادب دا دی چي سړی دي د تکبیرِ تحریمه په وخت کي لاسونه له څادر یا لستونو څخه راباسي، خو که دیو علر مثلاً د سخت یخ وغیره په وجه یې نه راوباسي، نو څه حرج نسته او په داسي حالت کي را ایستل مستحب نه پاتیږي، او ښځه دي په هیڅ حالت کي له پوړني وغیره څخه لاسونه نه راباسي، بلکي په هغه کي دننه دي یې پورته کوي. (شفاء الارواح)

## په ولاړه، رکوع، سجده او سلام ګرځولو کي به لمونځ ګزار کوم ځای ته ګوري؟

﴿۲۸۴﴾ وَ نَظَرُ الْمُصَلِّيْ إِلَىٰ مَوْضِعِ سُجُوْدِهٖ قَائِمًا (۲) او دلمونځ ګزار کتل دخپل سجدې و ځای ته دولاړي په حالت کي وَإِلَىٰ ظَاهِرِ الْقَدَمِ رَاكِعًا (۳) او (کتل) د پښو وښکاره طرف (شا) ته درکوع کولو په حالت کي (د پښې ښکاره طرف چي ځيني خلک د پښې شا ورته وايي او ځيني يې د پښې مخ بولي) وَإِلَىٰ أَرْنَبَةِ أَنْفِهٖ سَاجِدًا (۴) او (کتل) دخپلي پزي و نرميو ته د سجدې په حالت کي وَإِلَىٰ حِجْرِهٖ جَالِسًا (۵) او (کتل) خپلي غېږي ته د سجدې کولو په حالت کي وَإِلَى الْمَنْكِبَيْنِ مُسَلِّمًا (۶) او (کتل) و خپلو اُوږو ته د سلام ګرځولو په حالت کي.

**لغات:** ﴿أرنبة الأنف﴾ قال صاحب المعجم: أرنبة الأنف: أي طرفه (المعجم الوسيط، مصباح اللغات) ځينو دي معنیٰ د پزي په هلو کي سره کړې ده (انوار الایضاح). ﴿حِجْر﴾ غېږه (غېږ)، جمع: حُجُوْرٌ.

**تشریح:** دلمونځ ګزار لپاره مستحب او ادب دا دي چي د ولاړي په حالت کي به يې نظر د سجدې پر ځای وي او د رکوع په حالت کي به يې نظر د پښو پر شا وي او د سجدې په حالت کي به د پزي نرميو ته ګوري او د ناستي په حالت کي به خپلي غېږي يعني دلمني پورتنۍ حصې ته ګوري، د خشوع او دزړه په اخلاص سره د الله ﷻ دعبادت کولو تقاضا همدا ده. او د سلام ګرځولو په وخت کي به راسته طرف ته په راسته اوږه باندي نظر ساتي او چپه طرف ته به په چپه اوږه باندي نظر ساتي. دا حکم په هر حالت کي دی حتیٰ که څوک کعبې شريفي ته مخامخ لمونځ کوي، نو هغه ته هم دمذکوره آدابو خيال ساتل پکار دي او دلمانځه په دوران کي کعبې شريفي ته نه کتل پکار دي. (طحطاوي على مراقي الفلاح ص: ۱۵۱)

## توخی وغیره دفع کول

﴿۲۸۵﴾ وَ دَفْعُ السُّعَالِ مَا اسْتَطَاعَ (۷) او توخی دفع کول (نيول) تر څو چي يې طاقت وي (حتی الوسع توخی دفع کول).

**لغات:** ﴿سُعال﴾ توخی (توخ). سَعَلَ يَسْعُلُ سُعَالًا وَ سُعْلَةً: توخېدل، توخی کېدل. (قاموس)

**تشریح:** يو ادب دا دی چي دلمانځه په دوران کي دي حتی الامکان توخی او لړی منع کړل سي.

## اړږدمی دفع کول

﴿۲۸۶﴾ وَكَظْمُ فَمِهِ عِنْدَ التَّثَاؤُبِ (۸) او خپله خوله بندول (ټول) داړږمی په وخت کې.

**لغات:** ﴿كظم﴾ د ضرب د باب مصدر دی: بندول، نیول. ﴿التثاؤب﴾ اړږمی، ثَئِبَ يَثْئَبُ ثَأْبًا: اړږمی راتلل.

**تشریح:** په لمانځه کې دې پوره کوشش کوي چې داړږمی راتللو پر مهال خوله خلاصه نه سي په دې توګه چې لاندې شونډه دې په غاښو سره نیسي، خو بیا هم که خوله بنده نه سي، نو د ولاړې (قیام) په حالت کې دې د راسته لاس شا او په نورو حالتونو کې دې د چپه لاس شا پر خوله اږدي. (شفاء الارواح بحوالهٔ حاشیه)

**فایده:** علامه شامي رحمه الله لیکلي دي چې که داړږمی راتللو په وخت کې انسان دا سوچ وکړي چې انبیاؤ علیهم السلام ته به اړږمی نه راتلله، نو هغه ته به هم اړږمی نه راځي. (شفاء الارواح)

## مقتدیان به کله د جماعت لپاره دریږي؟

﴿۲۸۷﴾ وَالْقِيَامُ حِيْنَ قِيْلَ: حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ (۹) او ولاړېدل کله چې وویل سي: "حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ" وَ شُرُوْعُ الْإِمَامِ مُذْ قِيْلَ: قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوةُ (۱۰) او د امام (لپاره) شروع کول کله چې وویل سي: "قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوةُ". (یعني د "قدقامت الصلوة" ویل کېدو له وخت څخه د امام لپاره لمونځ شروع کول ادب او مستحب دي).

**تشریح:** د احنافو فقهاؤ د دې مسئلې څو صورتونه بیان کړي دي، چې د هغه خلاصه دا ده: ① که امام په مسجد کې موجود نه وي او کله چې راځي، نو د شا لخوا څخه مسجد ته راسي، نو په دې صورت کې (ادب دا دی) چې هر صف ته را رسیږي، هغه صف والا دې دریږي. (عالمګیري ج:۱ ص:۵۷)
② که امام د مخ لخوا راسي، نو پر هغه د نظر لګېدلو سره دې سمدستي جماعت دریږي. (پورتنی حواله)
③ او که امام له مخکې څخه په مسجد او صف کې موجود وي او اقامت شروع سي، نو په دغه صورت کې له اقامت څخه مخکې د چا درېدل مکروه دي، او افضل دا ده چې کله اقامت کونکی "حي على الفلاح" ته ورسیږي، نو د امام سره ټوله جماعت دې ودریږي او تر "حي على الفلاح" وروسته ناست پاتېدل مکروه دي. (پورتنی حواله)

**یادونه:** په دې مسئله کې د ځینې مشایخو په عبارتونو کې څه تضاد معلومیږي. مثلاً امام طحطاوي رَحِمَهُ الله په "طحطاوي على مراقى الفلاح" کې لیکلي دي چې د اقامت له ابتداء څخه درېدل مکروه دي (طحطاوي ص:۱۵۱)، حالانکې له یو امام څخه صراحتاً دا خبره منقوله نه ده او بل طرف ته یې په همدې مسئله کې د درمختار په حاشیه کې لیکلي دي چې ښکاره همدا ده چې په دې سره تر "حیّ على الفلاح" وروسته له تأخیر کولو څخه احتراز مقصود دی، نه له تقدیم څخه (یعني چې تر "حیّ على الفلاح" وروسته دې ناست نه پاتېږي، بلکې سملستي دې درېږي، او که تر هغه مخکې ودرېږي، نو څه حرج نشته). حتیٰ که د اقامت له شروع څخه ودرېږي، نو هم څه حرج نشته. (طحطاوي على الدر المختار ص:۱۱۵ بحواله احسن الفتاویٰ ج:۲، ص:۳۱۶)

نو کله چې له یو مصنف رَحِمَهُ الله څخه دوې خبرې نقل سوي دي، نو د هرې خبرې جلا جلا محمل کېدل پکار دي چې تعارض پاته نه سي او هغه محمل دا دی چې که امام له خپل ځای څخه ولاړ سوی نه وي، یا مسجد ته داخل سوی نه وي، نو د اقامت له شروع څخه درېدل مکروه تنزیهي دي. په داسې صورت کې کښېنستل او د امام انتظار کول پکار دي، تر دې چې امام مسجد او مصلیٰ ته راسي، او کله چې امام درېدلی وي یا مصلیٰ ته رسېدلی وي، نو د بیا د اقامت له شروع څخه په درېدلو کې څه حرج نشته. (کتاب المسائل ص:۳۲۴- ۳۲۷ بحواله انوار الایضاح)

وشروع الإمام الخ: یعني د امام لپاره هغه وخت لمونځ شروع کول مستحب دي کله چې اقامت کونکی "قد قامت الصلاة" ووایي، په فتاویٰ رحیمیه کې دي: چې که تأخیر وکړي یعني د اقامت تر ختمېدلو وروسته لمونځ شروع کړي، نو بیا هم پروا نشته، بلکې تأخیر زیات صحیح دی په دې لحاظ سره چې اقامت کونکی هم په تکبیر اولیٰ کې د امام سره شرکت وکړی سي. (فتاویٰ رحیمیه ج:۸، ص:۲۰۹)



# فَصْلٌ فِيْ كَيْفِيَّةِ تَرْكِيْبِ الصَّلَاةِ

(دا) فصل دلمانځه د ترکیب د طریقې په بیان کي دی

**تشریح**: مصنف رَحِمَهُ الله په دې فصل کي دلمانځه پوره کیفیت او طریقه بیانول غواړي کوم چي له سلفو څخه منقوله را روانه ده، د دې لپاره چي پر خپل، خپل ځای دلمانځه د فرائضو، واجباتو، سنتو او مستحباتو د اداء کېدلو طریقه معلومه سي.

## د لمانځه طریقه

﴿۳۸۸﴾ إِذَا أَرَادَ الرَّجُلُ الدُّخُوْلَ فِي الصَّلٰوةِ کله چي سړی لمانځه ته د داخلېدلو (لمونځ شروع کولو) اراده وکړي أَخْرَجَ كَفَّيْهِ مِنْ كُمَّيْهِ نو خپل ورغوي (لاسونه) دي له لستونو څخه را وباسي ثُمَّ رَفَعَهُمَا حِذَاءَ أُذُنَيْهِ بیا دي ورغوي (لاسونه) پورته کړي د خپلو غوږو (د نرمیو) تر برابرۍ پوري.

**تشریح**: کله چي سړی د لمانځه لپاره ودېږي، نو تر ټولو مخکي دي خپل لاسونه له څادر یا له لستونو څخه را وباسي، بیا دي دواړه لاسونه د غوږو تر نرمیو پوري پورته کړي په دې توګه چي ورغوي او ګوتي مخ پر قبله وي او ګوتي بالکل نه سره موښتي وي او نه زیاتي خلاصي وي بلکي پر خپل عادي مینځوي حالت وي، بیا چي کوم لمونځ کوي، په زړه کي دي د هغه نیت وکړي، مثلاً دا چي: د سهار فرض د خدای تعالیٰ لپاره کوم، او که په ژبه سره هم ووایي، نو ښه ده او بغیر له مدّ څخه دي الله أكبر ووایي، دا طریقه یعني چي اول لاسونه پورته کړي بیا تکبیر ووایي، دا اصح ده. (شفاء الارواح)

﴿۳۸۹﴾ ثُمَّ كَبَّرَ بِلَا مَدٍّ نَاوِيًا بیا دي الله اکبر ووایي بغیر له مدّ کولو (کشولو) څخه په داسي حالت کي چي (دلمانځه) نیت کونکی وي،

**تشریح**: په لفظ د الله باندي د مدّ کولو یو صورت دا دی چي په شروع کي مدّ وکړي، یعني که څوک په ناخبرۍ کي په الله أكبر کي د الله الف کش کړي آلله أكبر ووایي، نو لمونځ یې فاسدېږي او که قصداً داسي ووایي، نو د هغه د کافر کېدلو خطره ده، همدا حکم د أكبر پر ځای د آكبر ویل دي

(یعني چي د أکبر همزه کش کړي. ځیني امامان. مؤذنان او اقامت کونکي د دې خیال نه ساتي او خپل و د مقتدیانو لمونځونه خرابوي. باید په دې هکله پوره خبر کړل سي). (حلبي کبیر ص: ۲۶۰)



## په "الله أکبار" ویلو سره لمونځ فاسدیږي

**مسئله**: که څوک د لمانځه په دوران کي د تکبیر ویلو په وخت کي د الله أکبر پر ځای الله أکبار ووایي، نو د اصح قول مطابق لمونځ فاسدیږي، او همداسي الفاظ که د لمانځه په شروع کي ووایي، نو لمونځ یې نه شروع کیږي. (حلبي کبیر ص: ۲۵۹، کتاب المسائل ص: ۲۷۸)

## له الله أکبر څخه بغیر بل ذکر ویل یا په بله ژبه ویل یا په بله ژبه قرائت کول

﴿۳۹۰﴾ وَيَصِحُّ الشُّرُوْعُ بِكُلِّ ذِكْرٍ خَالِصٍ لِلّٰهِ تَعَالٰى كَسُبْحَانَ اللّٰهِ او صحیح کیږي لمونځ شروع کول په هر داسي ذکر سره کوم چي خالص د الله تعالیٰ لپاره وي لکه "سُبْحَانَ الله"(ویل) وَبِالْفَارْسِيَّةِ إِنْ عَجَزَ عَنِ الْعَرَبِيَّةِ او (همدارنګه صحیح کیږي...) په فارسي سره که چیري له عربي څخه عاجزه وي وَإِنْ قَدَرَ او که (پر عربي) قدرت لري لَا يَصِحُّ شُرُوْعُهُ بِالْفَارْسِيَّةِ نو بیا په فارسي سره د ده (لپاره) لمونځ شروع کول صحیح نه دي.

﴿۳۹۱﴾ وَلَا قِرَاءَتُهُ بِهَا فِي الْأَصَحِّ او نه د ده قرائت کول په فارسي سره د صحیح ترین قول مطابق.

**تشریح**: د صحیح قول مطابق خاص د "الله أکبر" په لفظ سره لمونځ شروع کول (تکبیر تحریمه ویل) واجب دي او له "الله أکبر" څخه بغیر په یو بل ذکر لکه په "سبحان الله" وغیره سره لمونځ شروع کول که څه هم صحیح دي خو مکروه دي. تر دې وروسته فرمایي چي که څوک بالکل د عربي ژبي پر وینا او اداء کولو قادر نه وي. نو مجبوراً د هغه لپاره په فارسي ژبه لمونځ شروع کول او په فارسي ژبه تکبیر (مثلاً خدا بزرگ است) ویل صحیح دي، برابره ده امام وي او که مقتدي یا منفرد وي. فرض لمونځ وي او که نفل وغیره وي او کوم څوک چي پر عربي تلفظ قادري وي. نو د هغه لپاره په فارسي ژبه په لمونځ سره شروع کول صحیح نه دي، له فارسي ژبي څخه بغیر د نورو ژبو هم دغه حکم دی. او صاحب د شفاء الارواح د حاشیې په حواله سره لیکلي دي چي صحیح دا ده چي د امام صاحب رحمه الله په نیز لمونځ ګزار که پر عربي قدرت لري او که یې نه لري، په هر صورت کي په غیرِ عربي (فارسي

یا داسي نورو ژبو) سره لمونځ شروع کول صحیح دي، خو پر عربي د قدرت لرلو په صورت کي د کراهت تحریمي سره صحیح کیږي، او اول قول د صاحبینو رَحِمَهُمَااللہ دی (چي د قدرت لرلو په صورت کي په غیرِ عربي سره لمونځ شروع کول جائز نه دي)، او له بعضي کتابو څخه معلومیږي چي صاحبینو رَحِمَهُمَااللہ د امام صاحب رَحِمَهُ‌اللہ و قول ته رجوع کړه. (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

ولا قرائته بها إلخ: یعني پر عربي ژبي د قدرت لرلو په صورت کي په فارسي ژبي سره قرائت کول هم صحیح نه دي، خو صاحب د "شفاء الارواح" لیکلي دي چي د قرائت په باره کي هم اختلاف دی چي د صاحبینو رَحِمَهُمَااللہ په نېز که لمونځ گزار پر عربي ژبي قدرت نه لري، نو په غیرِ عربي (فارسي او داسي نورو) سره قرائت کول جائز دي، او که پر عربي قادر وي، نو بیا په غیرِ عربي سره جائز نه دی. او د امام صاحب رَحِمَهُ‌اللہ په نېز برابر ده پر عربي ژبه قدرت وي او که نه وي، په هر صورت کي په غیرِ عربي سره قرائت جائز دی، لېکن د قرائت په باره کي بیا امام صاحب رَحِمَهُ‌اللہ د صاحبینو رَحِمَهُمَااللہ و قول ته رجوع وکړه، او فتویٰ هم پر همدې قول ده چي له عربي ژبي څخه بغیر په بله ژبه قرائت کول صحیح نه دي، هغه که فارسي وي او که له فارسي څخه بغیر بله ژبه وي. (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

﴿۲۹۲﴾ ثُمَّ وَضَعَ يَمِينَهُ عَلَى يَسَارِهِ تَحْتَ سُرَّتِهِ عَقِبَ التَّحْرِيمَةِ بِلَا مُهْلَةٍ بیا دي خپل راسته لاس پر چپه لاس تر نامه لاندي کېږدي له تحریمه (تکبیر تحریمه) څخه وروسته بېله ځنډه (یعني تر تکبیر تحریمه وروسته دي سملستي لاسونه تر نامه لاندي کېږدي) مُسْتَفْتِحًا په داسي حال کي چي د ثناء (سبحانك اللهم ...) ویونکی وي.

﴿۲۹۳﴾ وَهُوَ أَنْ يَقُولَ او هغه (ثناء) دا ده چي ووایي سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ اې الله! پاکي ده تا لره (یا پاکي دي ستا ذات، یا زه ستا د پاکي اقرار کوم اې الله!) وَبِحَمْدِكَ او زه ستا تعریف بیانوم وَتَبَارَكَ اسْمُكَ او ستا نوم برکت والا دی وَتَعَالَىٰ جَدُّكَ او ستا لویي ډېره لوړه ده (د "جد" معنیٰ دلته "لویي" ده) وَلَا إِلٰهَ غَيْرُكَ او ستا څخه بغیر بل هیڅ معبود (د عبادت لائق) نشته.

لغات: ﴿مستفتحا﴾ د وَضَعَ له ضمیر څخه حال دی، د فتح له بابه د فاعل صیغه ده: پېلول، شروع کول، د شروع دعاء ویل، مراد ځني ثناء یعني "سبحانك اللّٰهم إلخ" ویل دي.

**تشريح**: مسئله دا ده چي د تكبير تحريمه تر ويلو وروسته دي سمدستي بېله ځنډه دواړه لاسونه تر نامه لاندي په دې تركيب سره وتړي چي راسته لاس پر چپه لاس كېښږدي.

وهوأن يقول إلخ: بيا تر لاس تړلو وروسته دي په كراره، كراره ثناء وايي چي د هغه الفاظ د ترجمې سره په عبارت كي ذكر سوه.

**فايده**: د تكبير او قرائت تر مينځ د ذكر (ثناء) اېښوولو حكمت دا دى چي له مخكي څخه موجود تولـه مقتديان د امام سره يوځاى لمونځ نه سي شروع كولاى. څه خلک د كرار والي په وجه شاته پاتېږي، نو كه امام د تكبير سره سمدستي قرائت شروع كړي، نو څه مقتديان به له اوربدلو څخه محروم پاته سي، نو ځكه د ثناء دعاء اېښوول سوې ده. (انوار الايضاح)

## هر لمونځ گزار به ثناء وايي

﴿ ۲۹۴ ﴾ وَيَسْتَفْتِحُ كُلُّ مُصَلٍّ او ثناء (سبحانك اللهم...إلخ) به هر لمونځ كونكى وايي.

**تشريح**: مصنف رحمه الله فرمايي چي هر لمونځ گزار يعني امام، مقتدى او منفرد ټوله به ثناء "سبحانك اللّهم إلخ" وايي، برابره ده فرض لمنځونه وي او كه واجبات، نوافل وي او كه سنن، او برابره ده لمونځ جهري وي او كه سرّي. لېكن كه يو مقتدى د جماعت له دربلو څخه وروسته داسي وخت په لمانځه كي شريک سي كله چي امام قرائت شروع كړى وي، نو هغه مقتدى دي ثناء نه وايي، برابره ده لمونځ جهري دي او كه سرّي وي، بلكي په هغه وخت كي دي چپ دربږي، بيا ركوع ته له تللو څخه مخكي كه هغه دومره ژر ثنا ويلاءسي چي ركوع نه ځني تېربږي، نو هغه وخت دي ثناءووايي او ركوع ته دي ولاړ سي او كه د ثناء ويلو هيڅ موقع تر لاسه نه سي، نو هم په لمانځه كي هيڅ خرابي نه راځي. (ديني مسائل اور انكا حل، طحطاوي علىٰ مراقي الفلاح ص: ۱۵۳)

﴿ ۲۹۵ ﴾ ثُمَّ يَتَعَوَّذُ سِرًّا لِلْقِرَاءَةِ بيا دي اعوذ بالله... ووايي په كراره د قرائت لپاره فَيَأْتِي بِهِ الْمَسْبُوْقُ لَا الْمُقْتَدِيْ او دا (اعوذ بالله...) به مسبوق وايي، نه مقتدى.

﴿ ۲۹۶ ﴾ وَيُؤَخِّرُ عَنْ تَكْبِيْرَاتِ الْعِيْدَيْنِ او وروسته كوي به يې د اخترونو له تكبيراتو (تكبيرات زوائدو) څخه.

**تشريح:** له ثناء (سبحانك اللّهمّ...) څخه وروسته دي د قرائت لپاره په كراره تعوّذ "أعوذ بالله من الشيطن الرّجيم" ووايي، لهذا څوک چي قرائت کوي، صرف هغه به تعوّذ وايي لکه امام او منفرد. همدارنګه مسبوق چي کله خپل پاته رکعت راګرځوي، نو اولاً دي ثناء ووايي، بيا دي تعوّذ ووايي. وروسته فرمايي چي مقتدی به تعوّذ نه وايي؛ ځکه چي هغه قرائت نه کوي.

للقراءة: په دې قيد سره و دې طرف ته اشاره ده چي د تعوّذ تعلق د قرائت سره دی، نه د ثناء سره. (مراقي الفلاح ص: ۱۵۳)

ويُؤخر عن إلخ: مسئله دا ده چي د اخترونو په لمانځه کي دي تعوّذ (أعوذ بالله...) په اول رکعت کي له تکبيرات زوائدو څخه وروسته وايي؛ ځکه تعوّذ د قرائت لپاره دی او قرائت له تکبيراتو څخه وروسته شروع کول کيږي. (مراقي الفلاح ص: ۱۵۴)

﴿۲۹۷﴾ ثُمَّ يُسَمِّيْ سِرًّا بيا دي په كراره بسم الله... ووايي.

**تشريح:** تر تعوّذ وروسته دي "بسم الله الرّحمٰن الرّحيم" په كراره (په ټيټ آواز سره) ووايي، برابره ده لمونځ جهري وي او که سرّي وي او برابره ده امام وي او که منفرد وي.

﴿۲۹۸﴾ وَيُسَمِّيْ فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ قَبْلَ الْفَاتِحَةِ فَقَطْ او په هر رکعت کي دي صرف له سورة الفاتحه څخه مخکي بسم الله... وايي.

**تشريح:** او "بسم الله الرّحمٰن الرّحيم" دي د هر رکعت په شروع کي له سورة الفاتحه څخه مخکي ويل کيږي، لېکن تر سورة الفاتحه وروسته له سورت څخه مخکي بسم الله ويل سنت نه دي او که څوک يې ووايي، نو مکروه هم نه دي، بلکي له سورت څخه مخکي بسم الله په كراره ويل ښه دي. خو که د سورت پر ځای آيتونه وايي (يا په بله ورنا سورت له شروع څخه نه وايي)، نو د هغه په شروع کي دي بسم الله نه وايي. (شفاء الارواح بحوالة حاشيه و عمدة الفقه)

﴿۲۹۹﴾ ثُمَّ قَرَأَ الْفَاتِحَةَ بيا دي سورة الفاتحه ووايي.

﴿۳۰۰﴾ وَأَمَّنَ الْإِمَامُ وَالْمَأْمُوْمُ سِرًّا او امام او مقتدي (دواړه) دي په كراره آمين ووايي.

**تشريح:** تر "بسم الله..." وروسته دي سورة الفاتحه (الحمد شريف) ووايي. کله چي لمونځ ګزار امام يا منفرد وي. خو څوک چي په امام پسي لمونځ کوي يعني مقتدي وي، نو هغه به سورة الفاتحه نه وايي.

وأمن الإمام الخ: يعني كله چې سورة الفاتحه ختم كړي او "ولا الضالين" ووايي. نو په كراره دې آمين ووايي، برابره ده امام يا منفرد وي او كه مقتدي وي، ټوله به آمين وايي.

﴿۲۰۱﴾ ثُمَّ قَرَأَ سُوْرَةً أَوْ ثَلَاثَ آيَاتٍ بيا دې يو سورت يا درې آيتونه ووايي.

**تشريح**: تر سورة الفاتحه وروسته دې يو سورت يا كم از كم درې كوچني آيتونه يا يو لوى آيت ووايي، چې واجب اداء سي، بلكې د سنت اندازې قرائت دې وكړي چې د كراهت تنزيهيه ارتكاب لازم نه سي، او په قرائت كې دې تېزي نه كوي بل په كراره او صحيح دې يې وايي. او څوك چې په امام پسې لمونځ كوي يعني مقتدي وي، نو هغه دې صرف ثناء وايي او چپ دې ودرېږي. تعوذ، تسميه، فاتحه او سورت به نه وايي. (شفاء الارواح)

## د ركوع بيان

﴿۲۰۲﴾ ثُمَّ كَبَّرَ رَاكِعًا مُطْمَئِنًّا بيا دې الله اكبر ووايي په داسې حال كې چې ركوع كونكى (او په ركوع كې) اطمينان كونكى وي (يعني بيا دې په تكبير ويلو سره ركوع ته ولاړ سي او په اطمينان سره دې ركوع وكړي) مُسَوِّيًا رَأْسَهُ بِعَجُزِهِ (او) په داسې حال كې چې برابرونكى وي د خپل سر د خپلو كوناټو سره آخِذًا رُكْبَتَيْهِ بِيَدَيْهِ مُفَرِّجًا أَصَابِعَهُ (او) نيونكى وي د خپلو زنګنو په خپلو لاسو سره په داسې حال كې چې خلاصونكي وي د خپلو ګوتو (يعني ګوتې به يې پر زنګنو خلاصې ارتې انيولې وي) وَسَبَّحَ فِيهِ ثَلَاثًا او تسبيح دې ووايي په ركوع كې درې واره وَذٰلِكَ أَدْنَاهُ او دا يې كمتره درجه ده (يعني دا درې واره د ركوع د تسبيح كمترين مقدار دی).

**لغات**: ﴿مُسَوِّيًا﴾ د تفعيل له بابه اسم فاعل دی: برابرونكی، سيده كونكی. ﴿عَجُز﴾ او عَجِز: د هر شي شاتنی حصه، كوناټي، جمع: أَعْجَاز.

**تشريح**: د قرائت له ختمېدو څخه وروسته دې سمدستي په الله اكبر ويلو سره ركوع ته ولاړ سي او په ركوع كې دې دومره كوږ او ټيټ سي چې سر او ملا يې سره برابر او سيده سي. د ركوع په دوران كې دې سر او غاړه په مېنځ كې ساتي، يعني نه دې يې دومره پورته كوي چې له ملا څخه لوړ سي او نه دې يې دومره لاندې كوي چې زنه د سينې سره ولګيږي، پښې دې سيده ساتي او برابري دې يې لوډي چې ګوتې يې مخ پر قبله وي او په مېنځ كې دې يې كم از كم څلور ګوتې فاصله ساتي او د لاس ګوتې دې خلاصې (ارتې) ساتي او په هغوی سره دې په ښه ګوته زنګونان نيسي. د ركوع په حالت كې دې څنګلي او بازوګان سيده ساتي او د ورنو سره دې يې نه لګوي او نه دې يې د غشي په څېر

کړوي، او ښځه دې په رکوع کې صرف دومره کږېږي چې لاسونه يې زنګنو ته ورسيږي او ښځه دې ګوتې پر زنګنو اږدي او دا ښوولو په وخت کې دې ګوتې سره يو ځاى (جوختې) ساتي. نه خلاصې، د ښځې لپاره په رکوع کې خپل دواړه بجلکي يو ځاى کول سنت دي. په رکوع کې دې کم از کم درې وار تسبيح "سُبْحَانَ رَبِّـى الْعَظِيْم" وايي او دا يې کمترين مقدار دى. زيات يې هم ويلاى سي، خو که امام وي. نو له درېو وارو ځخه دې يې زيات نه وايي چې پر مقتديانو تنګي نه وسي. که چيرې څوک بالکل تسبيح نه ووايي، يا يې يو وار ووايي، نو جائز دي. خو مکروه تنزيهي دي او صحيح دا ده چې داسې کول له کراهت تنزيهي ځخه زيات او له کراهت تحريمي ځخه کم دي او د بعضې احنافو په نېزيو وار تسبيح ويل واجب دي. نو ځکه هغه ضرور ويل پکار دي چې له اختلاف ځخه بچ سي او په ښه اطمينان سره دې رکوع کوي. (انوار الايضاح. شفاء الارواح)



## تکبيرات څنګه ويل پکار دي؟

**مسئله:** په لمانځه کې د تکبيرات انتقاليه وو دويلو صحيح طريقه دا ده چې کله له يوه رکن ځخه بل رکن ته منتقل کيږي نو له منتقل کېدو سره يو ځاى دې تکبير داسې شروع کړي چې کله بل رکن ته ورسيږي نو آواز يې بند سي (تکبير ختم سي). (مراقي الفلاح ص: ۱۵۴)

## د قومه بيان

﴿۲۰۳﴾ ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهٗ بيا دې خپل سر (له رکوع ځخه) راپورته کړي وَ اطْمَأَنَّ قَـائِلًا سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ او مطمئن دې سي په داسې حال کې چې ويونکى وي د "سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَه" رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ لَوْ إِمَامًا أَوْ مُنْفَرِدًا (او ويونکى وي د) "رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ" که چيرې امام يا منفرد وي (يعني په اطمينان سره دې سمع الله لمن حمده ووايي. او که امام يا منفرد وي. نو ربنا لک الحمد دې هم دې وايي) وَالْمُقْتَدِیْ يَكْتَفِیْ بِالتَّحْمِيْدِ او مقتدي دې صرف په "رَبَّنَا لَكَ الْحَمْد" باندې اکتفا کړي.

**تشريح:** تر رکوع وروسته دې د "سمع الله لمن حمده" په ويلو سره پورته سي، او بالکل سيده دې ودرېږي، بيا دې "ربنالک الحمد" ووايي، د قومه په حالت کې به لاسونه نه تړي. په قومه کې به تېزي نه کوي بلکې دومره به ضرور درېږي چې تول اندامونه يې پر خپل، خپل ځاى ساکن سي. د ډېر ځله په قومه کې د تلوار کولو په وجه لمونځ واجبُ الاعاده ګرځي. (انوار الايضاح)

**فایده**: تحمید څلور ډوله نقل سوی دی یعني د تحمید څلور درجې دي: ① اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ دا تر ټولو افضله درجه ده. ② اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ. بیا دا افضله درجه ده. ③ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ. بیا دا افضله ده. ④ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ. او آخري یې همدا درجه ده.

## د سجدې بیان

﴿۲۰۲﴾ ثُمَّ كَبَّرَ خَارًّا لِلسُّجُوْدِ بیا دې الله اکبر ووایي په داسې حال کې چې سجدې ته لوېدونکی (ټیټېدونکی) وي (یعني بیا دې په تکبیر ویلو سره رکوع ته ولاړ سي) ثُمَّ وَضَعَ رُكْبَتَيْهِ ثُمَّ يَدَيْهِ ثُمَّ وَجْهَهٗ بَيْنَ كَفَّيْهِ بیا دې کښېږدي خپل زنګنونه، بیا لاسونه، بیا خپل مخ د خپل دواړو ورغوو (لاسونو) په مینځ کې وَ سَجَدَ بِأَنْفِهٖ وَجَبْهَتِهٖ مُطْمَئِنًّا مُسَبِّحًا ثَلَاثًا او سجده دې وکړي پر خپله پزه په داسې حال کې چې په اطمینان سره تسبیح ویونکی وي درې واره وَ ذٰلِكَ أَدْنَاهُ او دا یې کمتره درجه ده (یا په بله وینا دا چې: دا درې واره ویل یې تر ټولو کم مقدار دی) وَ جَافٰى بَطْنَهٗ عَنْ فَخِذَيْهِ او لیرې (جلا) دې کړي خپل نس له خپلو ورنو څخه وَعَضُدَيْهِ عَنْ إِبْطَيْهِ فِيْ غَيْرِ زَحْمَةٍ او خپل بازوګان (یا په بله وینا: خپلې څنګلې) له خپلو بغلو څخه په غیر د رش (ټنې ټوټې) کې (یعني کله چې ګڼه ګونه نه وي. یعني په جماعت کې نه وي) مُوَجِّهًا أَصَابِعَ يَدَيْهِ وَ رِجْلَيْهِ نَحْوَ الْقِبْلَةِ په داسې حال کې چې مخامخ کونکی (ګرځونکی) وي د خپلو لاسونو او پښو د ګوتو د قبلې وطرف ته وَالْمَرْأَةُ تَخْفِضُ وَتَلْزَقُ بَطْنَهَا بِفَخِذَيْهَا او ښځه دې (په سجده کې) ټیټېږي او خپل نس دې د خپلو ورونو سره مښلوي (یو ځای کوي).

**لغات**: ﴿خارًّا﴾ د نصر او ضرب له بابه د فاعل صیغه ده، خُرُوْر: لاندې لوېدل، په سجده کې لوېدل، پر څمکه لوېدل. ویل کیږي: خَرَّ لِلّٰهِ سَاجِدًا: د الله ﷻ لپاره سجده کونکی (د سجده کولو لپاره) پر ځمکه ولوېدی. ﴿جافٰی﴾ د ضرب د باب ماضي ده، لیرې ساتل. جلا ساتل. ﴿عضديه﴾ تثنیه، عَضُدٌ:

بازو، مټ (یعني له څنګلي څخه تر اوږې پورې د لاس برخه). ﴿إبطیه﴾ تثنیه د اِبطْ ده: تخرګ، بغل.
﴿تلزق﴾ د سمع د باب مضارع ده: مښلېدل، مښلول، لګول.

**تشریح:** په دې عبارت کې د سجدې طریقه او کیفیت بیان سوی دی، فرمایي چې تر قومه وروسته دې د "الله اکبر" په ویلو سره سجدې ته شوه سي په دې توګه چې سجدې ته په رسیدلو سره "الله اکبر" ختم کړي (یعني چې د الله اکبر شروع سجدې ته د کږېدلو پر مهال وسي او ختمېدل یې سجدې ته د رسېدلو پر مهال وسي)، سجدې ته د تللو په وخت کې دې اول پر ځمکه هغه اندامونه کښېږدي کوم چې ځمکې ته نژدې دي، نو اول دې دواړه زنګونان کښېږدي، بیا دې دواړه لاسونه، بیا پزه، بیا دې تندی کښېږدي او په سجده کې دې مخ د دواړو لاسونو تر مینځ داسې کښېږدي چې بټې ګوتې د غوږو د نرمیو په مقابل کې راسي او سجده دې پر پزه او تندي دواړو باندې وکړي او په اطمینان سره دې سجده وکړي او په سجده کې دې درې واره "سبحان ربي الأعلیٰ" ووایي، دا یې کم مقدار دی، دلته هم هاغه تفصیل دی کوم چې په رکوع کې بیان سو، او په سجده کې دې نس له ورنو څخه لیرې او جلا ساتي او څنګلي دې له بغلونو سره نه لګوي، بلکې هغوی دې هم لیرې ساتي کله چې ازدحام او رش یعنې د جماعت په لمانځه کې نه وي، لېکن د جماعت په لمانځه کې دې څنګلي دومره نه لیرې کوي او پورته کوي چې څنګ والا لمونځ ګزار په تکلیف سي، د "فی غیرزحمة" همدا مطلب دی، او په سجده کې دې د لاسو او پښو ګوتې مخ پر قبله ساتي او ښځه دې بالکل تپته سجده کوي، نه دې څنګلي پورته کوي او نه دې نس له ورنو څخه جلا کوي او پښې دې هواري ساتي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

## د جلسي بیان

﴿۲۰۵﴾ وَجَلَسَ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ او بیا دې کښېني د دوو سجدو په مینځ کې وَاضِعًا يَدَيْهِ عَلٰى فَخِذَيْهِ په داسې حال کې چې ایښونکی وي د خپلو لاسونو پر خپلو ورنو مُطْمَئِنًّا (او) اطمینان کونکی وي (یعني په اطمینان سره دې کښېني).

**تشریح:** په دې عبارت کې د دواړو سجدو تر مینځ د ناستې طریقه او حالت بیان سوی دی، حاصل یې دادی چې له اولې سجدې څخه دې په "الله اکبر" ویلو سره سر راپورته کړي او په اطمینان سره دې کښېني. دې ته جلسه وایي. په جلسه کې دې په اطمینان سره یعنې د یو وار سبحان الله لوستلو په اندازه آرام وکړي، دا واجب دی. او کوم ذکر یا دعاګانې چې پر دې موقع په حدیث کې راغلي

دي، هغه پر نوافلو محمول دي، لیکن مستحب داده چې د فرضو په جلسه کې هم مسنونه دعاء وايي او هغه داده "اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ وَارْحَمْنِيْ وَعَافِنِيْ وَاهْدِنِيْ وَارْزُقْنِيْ" يا صرف "رَبِّ اغْفِرْلِيْ" دې وايي، ځکه د امام احمد رَحِمَهُ الله په نيز د مغفرت دعاء يعني "رَبِّ اغْفِرْلِيْ" ويل فرض دي، نو له اختلاف څخه د بچ کېدلو لپاره د احنافو په نيز هم د مغفرت دعاء ويل مستحب دي، همدارنګه د دې مستحب په عادت سره په جلسه کې د اطمينان کولو واجب هم اداء کيږي، کنې زياتره خلکو د هغه پرېښوونکي او د هغه له ضروت څخه ناخبره دي. (شفاء الارواح بحوالة عمدة الفقه)

﴿۲۰۶﴾ ثُمَّ كَبَّرَوَ سَجَدَ مُطْمَئِنًّا بيا دې تكبير ووايي او په اطمينان سره دې سجده وكړي وَسَبَّحَ فِيْهِ ثَلَاثًا او په سجده کې دې درې واره تسبيح ووايي وَجَافٰى بَطْنَهٗ عَنْ فَخِذَيْهِ او خپل نس دې له ورنو څخه ليرې (جلا) وساتي وَأَبْدٰى عَضُدَيْهِ او خپل دواړه بازوګان دې ښکاره كړي (يعني خپل متان او شنكلي دې له بغلو څخه پورته او ليرې کړي).

**لغات**: ﴿أَبْدٰى﴾ د افعال له بابه د واحد مذکر غائب ماضي صيغه ده، مصدر: إِبْدَاء: ښکاره کول، څرګندول.

**تشريح**: د دواړو سجدو په مينځ (جلسه) کې کم از کم د يو وار سبحان الله ويلو په اندازه په اطمينان سره تر ناستي کولو وروسته دې په الله أكبر ويلو سره دوېمې سجدې ته ولاړ سي او سجدې ته د تللو په وخت کې دې اول دواړه لاسونه پر ځمکه کښېږدي، بيا دې پزه او تندی کښېږدي او د سجدې په طريقه او کيفيت کې هاغه تفصيل دی کوم چې په اوله سجده کې ذکر سو.

## له دوېمي سجدې څخه د ولاړېدلو طريقه

﴿۲۰۷﴾ ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهٗ مُكَبِّرًا لِلنُّهُوْضِ بيا دې پورته کړي خپل سر په داسې حال کې چې تكبير ويونکی وي د ولاړېدلو لپاره بِلَا اِعْتِمَادٍ عَلَى الْأَرْضِ بِيَدَيْهِ بېله تكيه كولو په خپلو لاسو سره پر ځمکه باندې وَبِلَا قُعُوْدٍ او بېله کښېنستلو.

**تشريح**: په دې عبارت کې له سجدې څخه د قيام و طرف ته طريقه بيان سوې ده، کله چې دوېمه سجده په اطمينان سره اداء کړي، نو بيا دې په تكبير ويلو سره جست پورته سي يعني بغير له لاس لګولو او تكيه كولو څخه پر ځمکې او بغير له ناستي څخه، يعني نه دې بېله عذره کښېني او نه دې د ولاړېدلو په وخت کې په خپلو لاسو سره پر ځمکه تكيه كوي بلكې په لاسو سره د زنګنو نيولو په

مرسته دي ولاړ سي، او كه بېله عذره تر دويمي سجدې وروسته كېښني (يعني داستراحت جلسه وكړي) يا دواړه لاسونه پر ځمكه ولګوي او د لاسو په مرسته ودرېږي، نو هيڅ حرج نسته لېكن دا خلاف اولیٰ او مكروه تنزيهي دي، خو كه ديو عذر په وجه وي مثلاً د بوډا والي يا د ډېر چاغوالي يا د داسي بل عذر په وجه وي چي له دويمې ځنځه سمدستي او جست ولاړېدل هغه ته مشكل وي. نو اول دي څه ګړی كېښني بيا دي په كراره ولاړ سي همدا "جلسهٔ استراحت" ده. لېكن روغ سړي ته سملستي ولاړېدل پكار دي. (شفاء الارواح ص: ۱۷۶، مراقی الفلاح ص: ۱۵۴)

﴿۲۰۸﴾ وَ الرَّكْعَةُ الثَّانِيَةُ كَالْأُوْلٰى او دويم ركعت د اول ركعت په څېر دی إِلَّا أَنَّهٗ لَا يُثَنِّيْ وَلَا يَتَعَوَّذُ خو دا چي ثناء دي نه وايي او نه دي اعوذ بالله... وايي (په دويم ركعت كي).

**تشريح:** فرمايي چي دويم ركعت دي هم بالكل هغسي اداء كړي څرنګه چي يې اول ركعت اداء كړی دی، خو ثناء او أعوذ بالله دي نه وايي، بلكي تر ولاړېدلو وروسته دي اولاً بسم الله وايي. تر دې وروسته دي الحمد شريف او قرائت وكړي، تر دې وروسته دي هغسي ركوع، قومه، سجده، جلسه او دويمه سجده وكړي لكه څرنګه چي يې په اول ركعت كي كړي وه.

## د رفع اليدين بيان

﴿۲۰۹﴾ وَلَا يُسَنُّ رَفْعُ الْيَدَيْنِ إِلَّا عِنْدَ افْتِتَاحِ كُلِّ صَلٰوةٍ او سنت نه دي د دواړو لاسونو پورته كول (۱) مګر د هر لمانځه د شروع كولو په وخت كي وَعِنْدَ تَكْبِيْرِ الْقُنُوْتِ فِي الْوِتْرِ (۲) او په وترو كي د قنوت (دعاءِ قنوت) د تكبير په وخت كي وَتَكْبِيْرَاتِ الزَّوَائِدِ فِي الْعِيْدَيْنِ (۳) او په اخترونو كي د تكبيراتِ زوائدو په وخت كي وَحِيْنَ يَرَى الْكَعْبَةَ (۴) او څه وخت چي كعبه ويني وَحِيْنَ يَسْتَلِمُ الْحَجَرَ الْأَسْوَدَ (۵) او څه وخت چي حجرِ اسود مسه كوي (مچوي) وَحِيْنَ يَقُوْمُ عَلَى الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ (۶) او څه وخت چي پر صفا و مروه درېږي وَعِنْدَ الْوُقُوْفِ بِعَرَفَةَ وَ مُزْدَلِفَةَ (۷، ۸) او په عرفات او مزدلفه كي د وقوف كولو (دريدلو) په وخت كي وَ بَعْدَ رَمْيِ الْجَمْرَةِ الْأُوْلٰى وَ الْوُسْطٰى (۹، ۱۰) او د اول ځلي او دويم ځلي (اول او دويم شيطان) تر ويشتلو وروسته وَعِنْدَ التَّسْبِيْحِ عَقِبَ الصَّلَوَاتِ (۱۱) او

ترلمنځونو وروسته د تسبيح په وخت کي (يعني له تسبيح څخه تر فارغېدلو وروسته د دعاء لپاره).

**تشريح**: دلته يوولس (۱۱) ځايونه ذکر سوي دي چي په هغوی کي لاسونه پورته کول سنت دي او له دې (۱۱) څخه بغير بل ځای لاسونه پورته کول سنت نه دي، خو د امام شافعي رَحِمَهُ الله او داسي نورو په نېز رکوع ته د تللو په وخت کي او له رکوع څخه د سر پورته کولو په وخت کي هم لاسونه پورته کول سنت دي (همدارنګه سجدې ته د تللو په وخت کي او بل رکعت ته د راپورته کېدلو په وخت کي هم رفع اليدين کول سنت دي) او د احنافو په نېز سنت نه دي، په حاشيه کي د امام اوزاعي رَحِمَهُ الله او د امام صاحب رَحِمَهُ الله يو حکايت ذکر سوی دی کوم چي د رکوع د رفع اليدين د نا ترجيح والي په هکله پوره تفصيل پکښي روايت سوی دی، لهذا د هغه مطالعه کول ارين دي. لنډه دا چي په يوولسو (۱۱) ځايو کي لاسونه پورته کول سنت دي: ① اول دا چي کله د لمانځه تکبيرِ تحريمه ووېل سي. په هغه وخت کي دواړه لاسونه پورته کول سنت دي، برابره ده فرض لمونځ وي او که واجب. سنت وي او که نفل، اداء وي او که قضاء وي، ② د وترو په درېيم رکعت کي له دعاء قنوت څخه مخکي د تکبير لپاره لاسونه پورته کول سنت دي، ③ د اخترونو په لمانځه کي د تکبيراتِ زوائدو په وخت کي لاسونه پورته کول سنت دي، ④ کله چي مسجدِ حرام ته داخل سي او پر کعبه شريفه يې نظر پرېوځي، نو په دې وخت کي لاسونه پورته کول سنت دي، لېکن دلته لاسونه پورته کول د دعاء لپاره دي، لهذا څرنګه چي په دعاء کي لاسونه پورته کوي، همداسي به يې دلته هم پورته کوي. ⑤ کله چي حجرِ اسود مچ کړي، نو په دې وخت کي دي دواړه لاسونه داسي پورته کړي چي د ورغوو په شا سره د حجر اسود استقبال وکړي (او صاحب د انوار الايضاح د دې تشريح داسي کړې ده چي مسجد حرام ته د داخلېدونکي اول کار طواف دی او د طواف شروع دي له حجر اسود څخه وکړي، د حجر اسود په مقابل کي دي ودرېږي، سينه او مخ دي د حجر اسود وطرف ته کړي او د تکبيرِ تحريمه په څېر دي دواړه لاسونه پورته کړي او په تکبير ويلو سره دي طواف شروع کړي. دا سنت دي)، ⑥ او له طواف وغيره څخه تر فارغېدلو وروسته چي کله سعي بين الصفا والمروة کوي، نو په الله اکبر ويلو سره دي دواړه لاسونه پورته کړي او سعي دي شروع کړي او په آخر کي دي د قبلې وطرف ته متوجه سي او له الله ﷻ څخه دي په دعاء کي خپل مرادونه وغواړي. ⑦ په عرفات کي د وقوف په وخت کي دي مخ پر قبله دواړه لاسونه پورته کړي او الله اکبر دي ووايي. دا هم سنت دي. ⑧ همدارنګه په مزدلفه کي په وقوف کي هم داسي کول سنت دي. ⑨ په منیٰ کي د جمرة الاولیٰ له رَمْيِ څخه وروسته دي څه توقف وکړي او د الله تعريف دي بيان کړي او لاسونه دي پورته کړي، الله اکبر دي ووايي. دا سنت دي. ⑩ همداسي دي د جمرة الوسطیٰ له رَمْيِ څخه وروسته هم وکړي. ⑪ همدارنګه تر لمنځونو وروسته د دعاء کولو په وخت

کې دواړه لاسونه پورته کول سنت دي، يعني تر کومو لمنځونو وروسته چې سنتونه نسته، لکه د ماسپښين، ماښام او ماز يګر لمنځونه، له هغوی څخه وروسته دي اولاً تسبحات ووايي، بيا دې لاس پورته کړي او دعاء دې وغواړي او تر کومو لمنځونو وروسته چې سنتونه سته، په هغوی کې دې د سلام ګرځولو سره سملستي مختصراً لاس پورته کړي او دعاء دې وکړي، بيا دې سنتونه وغيره وکړي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

﴿۲۱۰﴾ وَإِذَا فَرَغَ الرَّجُلُ مِنْ سَجْدَتَيِ الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ او کله چې فارغ سي سړی د دويم رکعت له دواړو سجدو څخه اِفْتَرَشَ رِجْلَهُ الْيُسْرَىٰ وَجَلَسَ عَلَيْهَا نو خپل چپه پښه دې هواره کړي (وغوړوي) او پر هغه دې کښيني وَنَصَبَ يُمْنَاهُ وَوَجَّهَ أَصَابِعَهَا نَحْوَ الْقِبْلَةِ او خپل راسته پښه دې ودروي او د هغه ګوتي دې د قبلې وطرف ته مخامخ کړي (مخ پر قبله دې يې وپېچي) وَوَضَعَ يَدَيْهِ عَلَىٰ فَخِذَيْهِ او خپل دواړه لاسونه دې پر دواړو ورنو کښېږدي وَبَسَطَ أَصَابِعَهُ او خپل ګوتي دې وغوړوي (يعني خپل ګوتي دې خلاصي ارتي اوساتي) وَالْمَرْأَةُ تَتَوَرَّكُ او ښځه به تورک کوي (يعني دواړي پښې به راسته طرف ته باسي او پر چپه کوناټي به کښيني).

لغات: ﴿افترش﴾ د افتعال له بابه د واحد مذکر غائب ماضي صيغه ده: هوارول، غوړول. ﴿تتورك﴾ د تفعل له بابه د واحد مؤنث غائب مضارع صيغه ده: پر کوناټو کښېنستل او پښې يوه طرف ته ايستل.

تشريح: فرمايي چې کله د دويم رکعت له دويمي سجدې څخه سر راپورته کړي، نو قعده (ناسته) دې وکړي په دې طريقه چې چپه پښه دې هواره کړي او پر هغه دې کښيني او راسته پښه دې ودروي او ګوتي دې يې د قبلې وطرف ته کړي او دواړه لاسونه دې پر دواړو ورنو کښېږدي او ګوتي دې يې خلاصي وساتي (يا په بله ړنا پر خپل طبعي حالت دې يې پرېږدي چې نه پوره سره مښتي وي او نه پوره غوړول سوي وي) او د لاسو د ګوتو سرونه دې زنګنو ته نږدې او د قبلې وطرف ته وي او په ګوتو سره دې زنګونان نه نيسي، همدا اصح ده، که څه هم نيول يې جائز دي، خو نه نيول يې افضل دي: ځکه د نيولو په وخت کې د ګوتو سرونه مخ پر قبله نه پاتېږي، بلکې د ځمکې وطرف ته ګرځي. او ښځه به تورک کوي يعني دواړه پښې به راسته طرف ته باسي او پر چپه طرف به کښيني.

## د تشهد بيان

﴿۲۱۱﴾ وَقَرَأَ تَشَهُّدَ ابْنِ مَسْعُودٍ ﷺ او د ابن مسعود ﷺ والا تشهد دې ووايي وَأَشَارَ بِالْمُسَبِّحَةِ فِي الشَّهَادَةِ او د شهادت په ګوته سره دې (په التحيات کې) اشاره وکړي د کلمة

شهادت (أشهد ان لا إله...) ويلو په وخت کي يَرْفَعُهَا عِنْدَ النَّفْيِ وَيَضَعُهَا عِنْدَ الْإِثْبَاتِ (په داسي توګه) چي د نفي (لا إله ويلو) په وخت کي دي ګوته پورته کړي او د اثبات (إلا الله ويلو) په وخت کي ګوته کښېږدي (کښته کړي).

**تشريح**: تشهد په حديثو کي په مختلفو الفاظو سره نقل سوی دی، په هغوی کي دري قسمه تشهد زيات مشهور دی، په را روان عبارت کي چي تشهد ذکر سوی دی، هغه د ابن مسعود ﷛ تشهد دی. د احنافو او حنابله وو په نېز همدا تشهد تر ټولو افضل دی، تفصيل به يې څه وروسته ذکر سي.

﴿ ۲۱۲ ﴾ وَلَا يَزِيدُ عَلَى التَّشَهُّدِ فِي الْقُعُودِ الْأَوَّلِ او زياتوب دي نه کوي پر تشهد په اوله ناسته کي.

**تشريح**: مسئله دا ده چي په اوله ناسته کي دي له تشهد ويلو څخه وروسته سملستي دريم رکعت لپاره ولاړېږي، هيڅ تأخير دي نه کوي، او که د فرضي لمانځه په اوله ناسته کي له تشهد څخه وروسته درود شريف ويل شروع کړي، نو راجح قول دا دی چي که تر "على محمد" پوري (يعني صرف اللهم صل على محمد... پوري) ووايي، نو سجدهٔ سهو واجبېږي. (شامي ج:۱، ص:۶۹۴)

او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د امام حسن په روايت کي نقل سوي دي چي که يو حرف يې هم زيات کړی، نو سجدهٔ سهو بانديې لازمه ده او ځيني وايي چي زياتره علماؤ همدغه قول غوره کړی دی.

ليکن صاحب د کبيري رَحِمَهُ الله وايي چي زياتره علماء پر اول قول دي او هغه قول اولیٰ او صحيح دی. (فتح المصلي)

## د تشهد (التحيات) الفاظ

﴿ ۲۱۳ ﴾ وَهُوَ او هغه (د عبدالله بن مسعود ﷛ تشهد) دا دی اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ ټوله قولي عبادتونه (عبادات قوليه) خاص الله ﷻ لره دي وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ او ټوله فعلي عبادتونه او ټوله مالي عبادتونه (خاص الله ﷻ لره دي) اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ سلام دي وي (له جانبه څخه د رب تعالیٰ) پر تا اې نبي ﷺ او د الله ﷻ رحمت او د هغه برکتونه اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللهِ الصَّالِحِيْنَ سلام دي وي پر موږ او د الله تعالیٰ پر نېکو بندګانو أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ

زه ګواهي (شاهدي) ورکوم چې له الله ﷻ څخه بغیر بل هیڅ معبود (دعبادت لائق) نشته وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ او ګواهي ورکوم چې محمد ﷺ دالله ﷻ بنده او دهغه رسول دی.

**تشریح:** فرمايي چې دابن مسعود رضی الله عنه تشهد دادی: «اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللهِ الصَّالِحِيْنَ أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ».

**دالتحيات لغوي څېړنه:** التَّحِيَّات جمع د "تَحِيَّةٌ" ده، د "تَحِيَّةٌ" اصل معنیٰ ده: "ستړي مه شې، هرکلی او سلام کول"، څرنګه چې به عربو د خپل ملاقات او سلام کولو په وخت کې د ستړي مه شې په توګه دا دعاء کول "حَيَّاكَ اللهُ" (الله دې ژوندی لره!)، نو ځکه د عربو سلام، ملاقات او ستړي مه شې په "تَحِيَّة" سره ونومل سوه، لکه څرنګه چې زموږ سلام او ملاقات ته "ستړی مه سې" ویل کیږي، ځکه چې موږ هم د خپل ملاقات پر مهال په همدې الفاظو سره دعاء کوو (لکه ستړی مه سې! جوړ پخیر)، نو د "تَحِيَّةٌ" اصل معنیٰ ده: "ستړي مه شې"، څرنګه چې د هر قوم لپاره یوه ستړي مه شې او د ملاقات پر وخت د دعاء یوه جمله وي، نو د سپېڅلي اسلام "تَحِيَه" (اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ) دی، او دلته له "التَّحِيَّات" څخه مراد ټوله ثناګاني او قولي عبادتونه دي لکه لمونځ، اذکار او داسې نور.

الصَّلَوَات جمع د صَلوٰةٌ ده، له دې څخه یوازې لمونځ مراد نه دی، بلکې ټوله بدني عبادتونه ځنې مراد دي، لکه روژه، حج، جهاد او داسې نور. الطَّيِّبَات جمع د طَيِّبَةٌ ده، پاک او غوره شي ته ویل کیږي، او له دې څخه ټوله مالي عبادتونه مراد دي، لکه زکاة، سرمایه او داسې نور.

**دالتحيات أصل او تفصيلي ژباړه:** دالتحیات اصل دادی چې کله رسول الله ﷺ د معراج په شپه لوړوم آسمان ته ورسېدی، نو الله ﷻ ته یې د تحیه ورکولو اراده وکړه لکه څرنګه چې باچاهانو ته د ملاقات پر وخت ته تحیه ورکول کیږي، نو لوی څښتن ﷻ نبي کریم ﷺ ته د دې کلمو الهام وکړی چې داسې ووایه: «اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ» (ټوله ثناګاني او قولي عبادتونه او ټوله بدني عبادتونه او ټوله مالي عبادتونه الله ﷻ لره دي)، کله چې رسول الله ﷺ دالله ﷻ په حضور کې د تحیې په توګه دا درې کلمې ووېلې، نو الله ﷻ یې هم په جواب کې دا درې کلمې ووېلې: «اَلسَّلَامُ

عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَ رَحْمَةُ اللهِ وَ بَرَكَاتُهُ » (اې ازموږه نبي! پر تا دي سلام وي د الله تعالىٰ له جانبه او پر تا دي د الله تعالىٰ له جانبه رحمت او بركتونه وي). يعني "اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ" يې د "التَّحِيَّات" په مقابل كي ووايي چي دا به د قيامت تر ورځي د اسلام او مسلمانانو تحيه وي، بلكي په جنت كي به هم په دې سره مسلمانانو ته تحيه وركول كيږي، او "رَحْمَةُ اللهِ" د "الصَّلَوَات" مقابل دی كوم چي د "صَلٰوة" اصلي معنیٰ ده، او د بدني عباداتو سره د الله ﷻ رحمت لازم دی، او "بَـرَكَات" د "الطَّيِّبَات" مقابل دی، كوم چي نما او كثرت ته وايي، او د مال او سرمايې سره مناسب دي.

ځرنګه چي نبي كريم ﷺ رَحْمَةٌ لِلْعٰلَمِيْن، أَجْوَدُ الخَلْق وأَكْرَمُهُم دی، نو ځكه نبي كريم ﷺ دا فيض او د الله ﷻ ستر احسان عام كړی ټولو انبياؤ عَلَيْهِمُ السَّلَام ته، او د ټوله مخلوق صالحانو ته هغه كه له ملائكو ځخه وي او كه له انس او جن ځخه وي، نو داسي يې ووېل: «اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَ عَلٰى عِبَادِ اللهِ الصَّالِحِيْن »، (سلام دي وي پر مؤمنانو او د خداى ﷻ پر هغه بندګانو چي نېكان وي). مطلب دا چي اې الله ﷻ! ستا له جانبه سلامتي صرف پر ما نه، بلكي ستا پر نورو نېكو بندګانو دي هم وي.

كله چي نبي كريم ﷺ دغه احسانيه كلمې ووېلې، نو فرښتو د جبرئيل عليه السلام په وحي سره ياد الله ﷻ په الهام سره داسي ووېل: « أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَ رَسُوْلُه »، (موږ ګواهي وركوو چي الله ﷻ يو دی، او ګواهي وركوو چي محمد ﷺ د الله ﷻ بنده او رسول دی).

عِبَادِ اللهِ الصَّالِحِيْن: عبدِ صالح (نېک بنده) په شريعت كي هر هغه بنده ته وايي چي د الله ﷻ د ټولو حقونو او د هغه د مخلوق د ټولو حقونو پر ځای كونكي وي.

**يادونه**: كوم التحيات چي پورته ذكر سول، دا د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه التحيات ده او ټولو صحاح سته وو رانقل كړې ده او امام ترمذي رَحِمَهُ الله يې په آخر كي ويلي دي چي "له نبي ﷺ ځخه د التحيات په هكله تر ټولو صحيح قول د ابن مسعود رضي الله عنه دی"، او پر همدغه د زياتره صحابه وو او تابعينو عمل دی.

﴿۲۱۴﴾ وَقَرَأَ الْفَاتِحَةَ فِيمَا بَعْدَ الْأُولَيَيْنِ او (بيا) دي سورة الفاتحه ووايي له اولو دوو رکعتونو څخه وروسته والا رکعتونو کي.

**تشريح:** او بيا دي په آخري رکعتونو کي سورة الفاتحه (الحمد شريف) ووايي (او مخکي په ﴿۳۶۳﴾ نمبر مسئله کي تېر سوه چي د فرضي لمانځه له اولو دوو رکعتونو څخه په نورو رکعتونو کي سورة الفاتحه ويل سنت دي. واجب او لازم نه دي).

﴿۲۱۵﴾ ثُمَّ جَلَسَ وَقَرَأَ التَّشَهُّدَ بيا دي (له آخري رکعت کولو څخه وروسته) کښېني او تشهد دي ووايي ثُمَّ صَلَّى عَلَى النَّبِيِّ ﷺ بيا دي په نبي ﷺ باندي درود شريف ووايي ثُمَّ دَعَا بِمَا يُشْبِهُ الْقُرْآنَ وَالسُّنَّةَ بيا دي (تر درود شريف وروسته) دعاء وکړي په داسي الفاظو (کلماتو) سره کوم چي د قرآن او حديثو (د کلماتو) مشابه وي.

**تشريح:** فرمايي چي د څلورو رکعتو له پوره کولو څخه وروسته دي د قعدهٔ اخيره لپاره کښېني او پوره "التحيات" دي ووايي يعني تشهد او تر هغه وروسته درود ابراهيمي او يو مأثوره دعاء دي ووايي.

﴿۲۱۶﴾ ثُمَّ يُسَلِّمُ يَمِينًا وَيَسَارًا بيا دي سلام وګرځوي راسته طرف ته او (بيا) چپه طرف ته فَيَقُولُ: اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ نو ودي وايي "السلام عليكم ورحمة الله" (سلام دي وي پر تاسو او د الله رحمت) نَاوِيًا مَنْ مَعَهُ په داسي حال کي چي نيت کونکی وي د هغه چا کوم چي د ده سره دي كَمَا تَقَدَّمَ لکه مخکي چي تېر سوه.

**تشريح:** د لمونځ پر ختمېدو دي اولاً راسته طرف ته بيا چپه طرف ته مخ وګرځوي "السلام عليکم ورحمة الله" دي ووايي، او د سلام ګرځولو په وخت کي دي راسته او چپه طرف ته په لمانځه کي د شريکو خلکو، فرشتو او نېکو جناتو ټولو باندي د سلام کولو نيت وکړي، چي تفصيل يې د "فصل في سننها" په آخر کي تېر سو.



# بَابُ الإِمَامَةِ

(دا) فصل د امامت (په بيان کي) دی

**تشريح**: د "امامت" معنیٰ ده: سردار کېدل. په لمانځه کي يو کس د ټوله جماعت امام يعني سردار وي او ټوله اقتداء کونکي يعني مقتديان د هغه تابعداري کوي او د مقتدي لمونځ د امام د لمانځه سره متعلق کېږي، اوس مصنف رَحِمَهُ الله په دې باب کي د دغه امامت احکام او تفصيلات بيانوي.

## د امامت مرتبه

﴿۲۱۷﴾ هِيَ أَفْضَلُ مِنَ الأَذَانِ امامت له اذان څخه افضل دی.

**تشريح**: د احنافو په نېز امامت کول له اذان کولو څخه افضل دي (يعني ثواب يې زيات دی)؛ ځکه له نبي کريم ﷺ او له خلفاء راشدينو څخه پر امامت همېشتوب ثابت دی. (شفاء الارواح)

## د جماعت حکم او ارزښت

﴿۲۱۸﴾ وَالصَّلاةُ بِالْجَمَاعَةِ سُنَّةٌ لِلرِّجَالِ الأَحْرَارِ بِلَاعُذْرٍ او لمونځ په جماعت سره سنت (مؤكده) دی د آزادو خلکو لپاره چي (هغوی لره) هيڅ عذر نه وي.

**لغات**: «أحرار» جمع د حُرٌّ ده: آزاد.

**تشريح**: اسلام يو اجتماعي مذهب دی. په همدې وجه د اسلام ډېر عبادتونه په اجتماعي توګه اداء کول کېږي. له هغوی څخه يو د جماعت لمونځ دی. کوم چي د اُمت پر آزادو خلکو سنت مؤکده دی چي واجب ته نژدی دی. په حديثو کي د جماعت د لمانځه ډېر ټينګار او فضيلتونه وارد سوي دي. نبي کريم ﷺ فرمايي: چي د جماعت لمونځ د يوازي لمونځ کولو په مقابله کي اوويشت چنده زيات فضيلت لري. (بخاري شريف)

همدارنګه د جماعت په پرېښودلو باندي وعيد وارد سوی دی. نبي کريم ﷺ فرمايي: زما زړه غواړي چي يو څو ځوانانو ته ووايم چي بوټي (لرګي) جمع کړي او بيا زه هغه خلکو ته ورسم کوم چي بېله څه عذره په کورو کي لمنځونه کوي او د هغوی کورو ته اُور واچوم. (مسلم شريف)

لهذا په هر مسلمان سړي باندي ضروري ده چي په مسجد کي د جماعت د لمانځه اهتمام وکړي او په دې باره کي قطعاً سستي او غفلت پرېږدي.

بلاعذر: يعني د جماعت د لمانځه تأکيد هغه وخت دی کله چي څه عذر نه وي او که عذر وي. نو بيا شرعاً د جماعت پرېښوولو ګنجايش سته.

## د امامت شرطونه

(۲۱۹) وَشُرُوطُ صِحَّةِ الإِمَامَةِ لِلرِّجَالِ الأَصِحَّاءِ سِتَّةُ أَشْيَاءَ او د روغو (جوړو) سړيو لپاره د امامت صحيح کېدلو شرطونه شپږ شيان دي (يا په بله وينا داچي د روغو خلکو د امام جوړېدلو لپاره شپږ شيان شرط دي اچي په امام کي به وي) الإِسْلَامُ وَالْبُلُوغُ وَالْعَقْلُ وَالذُّكُورَةُ ① مسلمان والی ② بالغ والی ③ عاقل والی ④او نارينه والی وَالْقِرَاءَةُ ⑤ او قرائت (يعني پر قرائت به قدرت لري اقرآن شريف به لوستلای سي) وَالسَّلَامَةُ مِنَ الأَعْذَارِ ⑥ او له عذرونو څخه خوندي کېدل (چي صحيح سلامت به وي) كَالرُّعَافِ (عذرونه) لکه له پزي څخه وينه جاري کېدل (چي د پزي وينه يې نه بنديږي) وَالْفَأْفَأَةِ او فأفأه کېدل (يعني په خبرو کي يې فاء زياته راځي امره خبره چي کوي نو اول يې فاء له خولې څخه روځي ا) وَالتَّمْتَمَةِ او (بل عذر) تمتمه کېدل (چي په خبرو کي يې تاء او ميم زيات راځي امر وخت يې تم. تم ځي ا) وَاللَّثْغِ او (بل عذر) تر ژبی کېدل (چي ژبه يې له يوه حرف څخه وبل حرف ته اوړي. مثلاً سين په ثاء سره بدلوي او داسي نور) وَفَقْدِ شَرْطٍ او (بل عذر دلمانځه له شرطونو څخه) د يوه شرط نيستوالی كَطَهَارَةٍ وَسَتْرِ عَوْرَةٍ لکه پاکي او د عورت پټوالی.

لغات: (الأصحاء) جمع د صَحِيْحٌ ده لکه څرنګه چي أَحِبَّاء جمع د حَبِيْبٌ ده: روغ رمټ. (رعاف) د فتح او نصر له بابه مصدر دی: پزه ويني کېدل، له پزي څخه وينه روانېدل. هغه وينه چي له پزي څخه ناروغی په وجه راوځي. د داسي کس امامت صحيح نه دی. (الفأفأة) د فَعْلَلَةٌ د باب مصدر دی: له خولې څخه "فاء" زياته وتل. چي د يو لفظ او حرف د اداء کولو په وخت کي د مشقت په وجه اول د "ف" غونډي آواز راوځي بيا اصل لفظ اداء کوي. د داسي کس هم امامت صحيح نه دی.

(التمتمة)هم د فَعْلَلَةٌ د باب مصدر دی: په داسي توګه خبره کول چي په هغه کي "ت" او "ميم" زيات راوځي. يعني په خبرو کي يې د "ت" او "م" د راګرځولو عادت وي. يا له پاسني تالو څخه د

آواز زيات وتل او خبري داسي تيزي كول چي نه فهمول كيږي، ﴿اللثغ﴾ د سمع د باب مصدر دی: تړی كېدل، تر ژبی كېدل، داسې كېدل چي په صحيح توګه د حروفو پر اداء كولو قدرت نه وي. مثلاً د "سين" پر ځاى پر ژبه "ثاء" جاري كېدل، او د "راء" پر ځاى پر ژبه "غين يا لام" جاري كېدل او داسي نور. داسي كس هم امام نه سي جوړېدلای. ﴿فقد شرط﴾ يعني بل عذر دلمانځه د شرطونو د يو د شرط نه موجود نه بېدل دي مثلاً طهارت او عورت پټول. يعني د امامت له (۶) شرائطو څخه چي كوم دا شرط دی چي له عذرونو څخه سالم كېدل، نو له هغه عذرونو څخه دا هم عذر دي چي امام پاک نه وي يعني معذوره يا د ستر په اندازه جامه نه لري، لهذا كه له دغه عذرونو څخه يو عذر وي، نو (نامعذوره خلكو ته) د داسي كس امامت (لمونځ وركول) نه صحيح كيږي.

**تشريح**: دروغو (نامعذوره) خلكو د امامت (لمونځ وركولو) لپاره فقهاؤ شپږ شرطونه ذكر كړي دي:

① مسلمان كېدل، ② بالغ كېدل، ③ عقل مند كېدل، ④ نر كېدل (سړی كېدل)، ⑤ په قرائت باندي قادر كېدل، ⑥ له عذر څخه سلامتيا، لكه د پزي وينه، تُړی والی، د باد و تلو يا د متيازو څڅېدلو مرض او له داسي نورو اعذارو څخه سالم كېدل. دلته د "بلوغ" په قيد سره نابالغ ووتی؛ ځكه د نابالغه كس لمونځ نفل دی او نفل كونكی فرض لمونځ نه سي وركولای (لهذا د نابالغ شا ته د بالغ لمونځ صحيح نه دی، هغه كه هر لمونځ وي او كه څه هم تراويح او نوافل وي؛ خو د بلخ د ائمه وو په نيز د نابالغ شا ته تراويح او نور نوافل صحيح دي. ليكن بنكاره دي وي چي د عمر په اعتبار سره پنځلس كاله د بلوغت عمر دی. ليكن كه د علامت په اعتبار سره تر دغه عمر مخكي بالغ سي، نو هم د هغه شا ته لمونځ صحيح دی)، او د "عقل" په قيد سره غير عاقل ووتی: ځكه د مجنون امامت صحيح نه دی او د "نارينه والي" په قيد سره ښځه ووتله (لهذا ښځه د نارينه وو امامه نه سي جوړېدلای. هغه كه هر لمونځ وي. ليكن د ښځو امامه جوړېدلای سي. خو دا مكروه تحريمي دي) او د "سلامتيا" په قيد سره معذورين ووتل. يعني امام به په څه عذر مبتلا نه وي مطلب دا چي داسي مرض به ورته لاحق نه وي چي په هغه سره معذوره شمېرل كيږي چي په لغاتو كي د ځينو وضاحت وسو (خو معذوره كس د خپل غوندي معذوره كسانو امامت كولای سي)، همدارنګه په كوم امام كي چي د لمانځه له شرطونو څخه يو شرط موجود نه وي، د هغه شا ته د داسي كس لمونځ نه كيږي چي په هغه كي د لمانځه ټول شرطونه موجود وي، مثلاً د طهارت (اودس او غسل) كونكي لمونځ په غير طاهر (يعني په معذوره) كس پسي يا د جامه اغوستونكي لمونځ په لڅ (برند) كس پسي نه صحيح كيږي. (شفاء الارواح، انوار الايضاح)

## د اقتداء شرطونه

﴿۲۲۰﴾ وَشُرُوطُ صِحَّةِ الْاِقْتِدَاءِ أَرْبَعَةَ عَشَرَ شَيْئًا او د قتداء د صحيح كېدلو شرطونه څوارلس شيان دي نِيَّةُ الْمُقْتَدِيْ الْمُتَابَعَةَ مُقَارَنَةً لِتَحْرِيْمَتِهِ (۱) د مقتدي نيت كول د

امام د تابعداری (یعني دامام داقتداء نیت کول) په داسي حال کي چي هغه (دمتابعت نیت) د ده د تکبیر تحریمه سره یو ځای وي (یعني داقتداء صحیح کېدلو یو شرط دادی چي مقتدي به د خپل تکبیر تحریمه په وخت کي دامام د متابعت نیت کړی وي).

**تشریح:** په امام پسي داقتداء د صحیح کېدلو لپاره څوارلس (۱۴) شرطونه ضروري دي: ① اول شرط دادی چي مقتدی به د امام د متابعت "اقتداء" (یعني په هغه پسي دلمونځ کولو) نیت کوي مثلاً داسي نیت کول چي زه په دغه امام پسي نیت کوم یا د دغه امام په اقتداء کي لمونځ کوم. په دې توګه چي داقتداء نیت د تکبیر تحریمه سره یو ځای وي یا تر تکبیرِ تحریمه داسي مخکي وي چي د نیت او تکبیرِ تحریمه په مینځ کي څه نیت ماتونکی فعل نه وي چي د هغه تفصیل دلمانځه په شرطونو کي تېر سو، خو د جمعې او داخترونو په لمنځو کي داقتداء نیت ضروري نه دی؛ ځکه دا لمنځونه د جماعت سره مخصوص دي. (شفاء الارواح بحوالة عمدة الفقه)

## د امامت نیت

﴿۲۲۱﴾ وَنِيَّةُ الرَّجُلِ الْإِمَامَةَ شَرْطٌ لِصِحَّةِ اِقْتِدَاءِ النِّسَاءِ بِهٖ (۲) او د سړي نیت کول (د ښځو) د امامت شرط دي د ښځو داقتداء صحیح کېدو لپاره.

**تشریح:** ② د دویم شرط حاصل دادی چي که امام سړی (نارینه) وي او د هغه شا ته ښځي هم په لمانځه کي شرکت کوي (یا په بله وینا ښځي هم لمونځ پسي کوي)، نو د امام سړي لپاره ضروري ده چي د ښځو د امامت نیت هم وکړي، که چیري امام د ښځو د امامت نیت نه وي کړی، نو د ښځو اقتداء نه صحیح کیږي، خو د نارینه امام لپاره د سړیانو د امامت نیت کول یا د ښځینه امام لپاره د ښځو د امامت کول شرط نه دي، لېکن څرنګه چي بغیر له نیته ثواب نه حاصلیږي، نو ځکه نیت کول افضل دي.(شفاء الارواح)

## د اقتداء نور شرطونه

﴿۲۲۲﴾ وَتَقَدُّمُ الْإِمَامِ بِعَقِبِهٖ عَنِ الْمَأْمُوْمِ (۳) او د امام په خپل پوندي سره مخکي کېدل (یعني د امام پونده مخکي کېدل) له مقتدي څخه.

**لغات:** العَقِب﴾ او العَقْب: پونده، جمع: أَعْقَاب.

**تشریح:** ③ داقتداء صحیح کېدلو لپاره دریم شرط دادی چي د مقتدي قدم به د امام له قدم څخه مخکي نه وي او په دې کي اعتبار پوندي لره دي، یعني د پښو پوندي به یې د امام له پوندو څخه مخکي نه وي. لهذا که د مقتدي پوندي د امام له پوندو څخه مخکي وي. نو د مقتدي اقتداء نه صحیح کیږي. او که د مقتدي پوندي شاته وي، خو د مقتدي تنه (قد) دومره اوږد وي چي په

سجده کې د مقتدي سر د امام له سره څخه مخکې کیږي (یا مثلاً د مقتدي پښې غټې وي او د امام پښې کوچنۍ وي وي او د مقتدي پوندي د امام تر پوندو شاته وي، خو نوره پښه یې د امام له پښې څخه مخکې وي). نو اقتداء یې صحیح کیږي؛ ځکه اعتبار پوندو لره دی او هغه تر امام شاته دي. (طحطاوي على مراقي الفلاح. شفاء الارواح)

﴿۴۲۳﴾ وَأَنْ لَّا يَكُوْنَ أَدْنٰى حَالًا مِنَ الْمَأْمُوْمِ (۴) او دا چې نه به وي امام ادنیٰ (کمتر) د حالت په اعتبار سره له مقتدي څخه (یا په بله وینا چې د امام حالت به د مقتدي له حالت څخه کمتر نه وي. یعني امام به د مقتدي له لمونځ څخه د کمې درجې لمونځ کونکی نه وي).

**تشریح:** (۴) څلورم شرط دا دی چې د امام لمونځ به د مقتدي د لمانځه څخه د کمې درجې نه وي. نو د فرض کونکي لمونځ په نفل کونکي پسې نه صحیح کیږي؛ ځکه د امام حالت ادنیٰ دی او د مقتدي حالت اعلیٰ دی.

﴿۴۲۴﴾ وَأَنْ لَّا يَكُوْنَ الْإِمَامُ مُصَلِّيًا فَرْضًا غَيْرَ فَرْضِهٖ (۵) او دا چې نه به وي امام داسې فرض لمونځ کونکی کوم چې د مقتدي له فرضو څخه بغیر (بل فرض) وي (یعني د دواړو لمونځ به یو وي).

**لغات:** فرضه: د ضمیر مرجع المأموم (مقتدی) دی.

**تشریح:** (۵) پنځم شرط دا دی چې د امام او مقتدي لمونځ به یو وي، داسې به نه وي چې امام د ماپښین لمونځ کوي او مقتدی د مازیګر د لمانځه نیت پسې وکړي او داسې نور.

﴿۴۲۵﴾ وَأَنْ لَّا يَكُوْنَ الْإِمَامُ مُقِيْمًا لِمُسَافِرٍ بَعْدَ الْوَقْتِ فِيْ رُبَاعِيَّةٍ وَلَا مَسْبُوْقًا (۶) او دا چې نه به وي د مسافر امام مقیم له وخت تېرېدلو څخه وروسته په څلور رکعتیز لمانځه کې او نه به (امام) مسبوق وي. (یعني په څلور رکعتیز قضائي لمانځه کې به مقیم کس د مسافر امام نه وي. او نه به مسبوق وي).

**لغات:** ﴿مسبوق﴾ هغه کس چې اول رکعت ځنې تېر سوی وي، هغه ته مسبوق وايي. نور بیا که دوه رکعته ځنې تیر سوي وي او که درې یا څلور سره.

**تشریح:** (۶) د اقتداء د صحیح کېدو شپږم شرط دا دی چې په څلور رکعتیز لمانځه کې (مثلاً ماپښین، مازیګر او ماخوستن په لمنځونو کې) د وخت له وتلو څخه وروسته د مسافر کس امام به مقیم نه وي. یعني د وخت له تېرېدلو څخه وروسته په څلور رکعتیز لمنځونو کې د مسافر لپاره په مقیم امام پسې لمونځ کول جائز نه دي، مثلاً له یو مسافر څخه د ماپښین لمونځ قضاء سي. نو د هغه اقتداء په

یو داسې امام پسې جائز نه ده کوم چې مقیم وي. خو که دا مسافر په یو مسافر امام پسې په همدې لمانځه کې اقتداء وکړي، نو جائز ده.

بعد وقتٍ: یعني له وخت تېرېدلو څخه وروسته دا د مسافر اقتداء په مقیم پسې جائز نه ده. خو په وخت کې دننه (یعني د خپل وخت په لمانځه کې) جائز ده چې مسافر په مقیم پسې اقتداء وکړي او په دې صورت کې به مسافر د خپل امام په متابعت کې څلور رکعتونه پوره کوي.

دلته د "رباعیة" (څلور رکعتیز) قید لګول سوی دی، لهذا کوم لمنځونه چې څلور رکعتیز نه وي لکه د سهار او ماښام لمنځونه، نو په هغوی کې د مسافر اقتداء په مقیم پسې په هر حالت کې جائز ده، برابره ده په وخت کې دننه وي یا د وخت له وتلو څخه وروسته وي.

ولا مسبوقًا: دا اقتداء د صحیح کېدو لپاره دا هم شرط دی چې په کوم چا پسې اقتداء کېږي یعني امام، هغه به مسبوق نه وي، لهذا که یو مسبوق کس خپل پاته لمونځ پوره کوي، نو په هغه پسې د اقتداء نیت کول نه صحیح کېږي (ځکه کله چې هغه خپل لمونځ پوره کوي، نو په دې وخت کې هم هغه یو قسم د خپل امام شاته دی او مقتدي دی، نو ځکه په هغه پسې د بل چا لمونځ صحیح نه دی). (شفاء الارواح، ثمرة النجاح)

| |
|---|
| ﴿٣٢٦﴾ وَأَنْ لَّا يَفْصِلَ بَيْنَ الْإِمَامِ وَالْمَأْمُوْمِ صَفٌّ مِنَ النِّسَاءِ (٧) او دا چې فاصل (حائل) به نه وي د امام او مقتدي تر مینځ د ښځو صف. |

تشریح: ⑦ اووم شرط دا دی چې د امام او نارینه مقتدیانو تر مینځ به د ښځو پوره صف حائل نه وي، کنې د هغه نارینه مقتدیانو لمونځ نه صحیح کېږي (له پوره صف څخه مراد تر درېو زیاتې ښځې دي. او که صرف درې ښځې وي، نو صرف له هغه درېو خلکو څخه کوم چې بالکل د دې ښځو شاته دي د نورو لمونځ نه فاسدېږي. په هر صف کې د هغه درېو خلکو لمونځ فاسدېږي کوم چې بالکل د ښځو شا ته راځي. همدا حکم د دوو ښځو او یوې ښځې دی). (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

| |
|---|
| ﴿٣٢٧﴾ وَأَنْ لَّا يَفْصِلَ نَهْرٌ يَمُرُّ فِيْهِ الزَّوْرَقُ (٨) او دا چې فاصل به نه وي (د امام او مقتدي تر مینځ) داسې نهر (ویاله) چې په هغه کې کوچنۍ کښتۍ تېرېدلای سي. |

لغات: ﴿الزورق﴾ یو قسم کوچنۍ کښتۍ ده.

تشریح: ⑧ د اقتداء د صحیح کېدو اتم شرط دا دی چې د امام او مقتدیانو تر مینځ به داسې نهر (ویاله) حائل نه وي چې په هغه کې کوچنۍ کښتۍ تېرېدلای سي (یا په بله ویناداسې نهر چې له پل وغیره څخه بغیر پر هغه اوښتل ممکن نه وي). لهذا که په مینځ کې داسې نهر حائل وي یعني امام د نهر یوې خوا ته وي او مقتدي د نهر بلې خوا ته وي، نو اقتداء نه صحیح کېږي.

همدا حکم د مسجد د حوض دی، مثلاً د مسجد په صحن (غولي) کي حوض دی، نو د حوض شاته والا حصه کي اقتداء نه صحیح کیږي، خو که د حوض شا و خوا ته صفونه متصل ولاړ وي، نو د شاتنیو خلکو اقتداء هم صحیح کیږي.

او که نهر دومره کوچنی وي چي په هغه کي کوچنۍ کښتۍ هم نه سي تېرېدلای. نو هغه د اقتداء لپاره مانع نه دی (لهذا که د امام او مقتدیانو تر مینځ کوچنی لښتی وي، نو اقتداء یې صحیح کیږي). (شفاء الارواح)

**یادونه**: مصنف رَحِمَهُ الله د کوچني نهر او لوی نهر تر مینځ داسي فرق کړی دی چي که نهر داسي وي چي په هغه کي کوچنۍ کښتۍ تېرېدلای سي، نو هغه د لوی نهر په درجه کي دی، کنې د کوچني نهر په درجه کي دی او له اقتداء څخه مانع نه دی. (طحطاوي ص: ۱۵۹)

﴿۲۲۸﴾ وَلَا طَرِيقٌ تَمُرُّ فِيهِ الْعَجَلَةُ (۹) او نه داسي لاره (به فاصل وي) چي په هغه کي ټانګه تېرېدلای سي.

**لغات**: ﴿عجلة﴾ د دې لفظ څو معناوي نقل سوي دي چي له هغوی څخه دوې دا دي: ① تیر (اربه)، ② ټانګه.

**تشریح**: ⑨ د اقتداء د صحیح کېدو لپاره نهم شرط دا دی چي د امام او مقتدي تر مینځ به داسي لاره حائل نه وي چي په هغه کي ټانګه تېرېدلا سی (چي د هغه اندازه د دوو صفونو برابر ده)، لهذا که دومره پراخه (دوو صفونو په اندازه) لاره وي، نو اقتداء یې نه صحیح کیږي (خو که په دې خالي ځای کي درې کسان ودرېږي، نو بالاتفاق ټوله صفونه متصل کیږي او د شاتنیو خلکو اقتداء صحیح کیږي، همدا حکم د نورو صفونو دی. لهذا که اول صف د امام شاته متصل ولاړ وي چي په مینځ کي یې لاره نه وي، لېکن د اول او دویم صف په مینځ کي دومره لاره وي چي په هغه کي ټانګه تېرېدلای سي یعني د دوو صفونو په اندازه لاره، نو د اول صف والا لمونځ خو صحیح کیږي، لېکن د دویم صف والا لمونځ فاسدیږي، او که د دوو صفونو له اندازې څخه کمه لاره وي، نو د اقتداء لپاره مانع نه دي. دلته دا خبره یاد ساتل پکار دي چي عام مسجدونه که ډېر غټ نه وي، نو د مکان واحد حکم لري او په هغوی کي د خالي ځای حائل والي لره اعتبار نه سته او هغه د اقتداء مانع نه دی. که څه هم د دوو یا زیاتو صفونو په اندازه وي. لهذا که امام په محراب کي وي او یو سړی د مسجد په یو طرف کي اقتداء وکړي او په مینځ کي دوه صفه یا له دې څخه زیاته خالي فاصله وي، نو هم اقتداء جائز ده، خو بېله ضرورته داسي کول مکروه دي. او د مسجد د فناء هم دغه حکم دی. او فناء د مسجد هغه صحن او اطرافو ته وایي کوم چي د مسجد سره متصل وي او په مینځ کي یې لاره نه وي). (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

﴿۲۲۹﴾ وَلَا حَائِطٌ يَشْتَبِهُ مَعَهُ الْعِلْمُ بِانْتِقَالَاتِ الْإِمَامِ (۱۰) او نه داسي دېوال (به فاصل وي) چي مشتبه کیږي د هغه (په وجود) سره علم (خبرېدل) د امام په انتقالاتو (یعني چي د هغه په وجه د امام نقل و حرکت امثلا رکوع او سجدې ته د تللو حالت ا مشتبه کیږي) فَإِنْ لَمْ يَشْتَبِهْ لِسَمَاعٍ أَوْ رُؤْيَةٍ

(لیکن) که نه مشتبه کیږي د آواز اوریدلو یا لیدلو په وجه صَحَّ الْإِقْتِدَاءُ فِي الصَّحِيْحِ نو اقتداء صحیح کیږي د صحیح قول مطابق.

**تشریح:** ⑩ لسم شرط دا دی چې د امام او مقتدي تر مینځ به داسې دېوال او پرده حائل نه وي چې د هغه په وجه د امام نقل او حرکت مثلاً رکوع، قومه او سجده ورته مشتبه سي او سم نه ورته معلومیږي، لهذا که مقتدي ته د امام د انتقالاتو علم نه وي، برابره ده د یو شي د حائل کېدلو په وجه وي، یا په یو بله وجه وي، نو اقتداء نه صحیح کیږي، او که د امام نقل او حرکت، له یوه رکن څخه بل رکن ته تلل مقتدي ته معلومیږي، برابره ده د امام یا د مخامخ نورو مقتدیانو په لیدلو سره وي. یا د مکبّر د تکبیر په اوریدلو سره وي، نو اقتداء یې صحیح کیږي، که څه هم دېوال وغیره په مینځ کي حائل وي، خلاصه دا ده چې د اقتداء د صحیح کېدلو لپاره ضروري ده چې د امام حالت به پر مقتدي نه مشتبه کیږي. (شفاء الارواح)

﴿۲۳۰﴾ وَأَنْ لَّا يَكُوْنَ الْإِمَامُ رَاكِبًا وَالْمُقْتَدِيْ رَاجِلًا (۱۱) او دا چې نه به وي امام سپور او مقتدي پیاده أَوْ رَاكِبًا غَيْرَ دَابَّةِ إِمَامِهِ (۱۲) یا (نه به وي) مقتدي سپور د خپل امام له سپارلي څخه بغیر په بله سپارلي باندي.

**تشریح:** ⑪ یوولسم شرط دا دی چې د امام او مقتدي ځای به حقیقتاً یا حکماً متحد وي، لهذا که امام سپور وي او مقتدي پیاده (په پښو) وي، نو اقتداء یې نه صحیح کیږي.

⑫ دوولسم شرط دا دی چې که امام سپوري وي، نو د امام او مقتدي سپارلي به سره جلا نه وي، لهذا که امام پر یوه سپارلي سپوري وي او مقتدي پر بله سپارلي سپور وي. نو اقتداء یې نه صحیح کیږي، او که پر یوه سپارلي سره سپاره وي، نو اقتداء یې صحیح ده.

﴿۲۳۱﴾ وَأَنْ لَّا يَكُوْنَ فِيْ سَفِيْنَةٍ وَالْإِمَامُ فِيْ أُخْرٰى غَيْرِ مُقْتَرِنَةٍ بِهَا (۱۳) او دا چې نه به وي مقتدي په یوه کښتۍ کي او امام په بله کښتۍ کي کوم چې د مقتدي د کښتۍ سره متصله (لګېدلې) نه وي.

**لغات:** ﴿مقترنة﴾ د افتعال له بابه د فاعل صیغه ده: متصل، جوخت.

**تشریح:** ⑬ دیارلسم شرط دا دی چې که امام په کښتۍ کي وي نو د امام او مقتدي کښتۍ به سره جلا نه وي، لهذا که امام یوه په کښتۍ کي وي او مقتدي په بله کښتۍ کي وي. نو اقتداء یې نه صحیح کیږي.

غیرمقترنة: لهذا که د مقتدي کښتی د امام د کښتی سره متصله یعني تړل سوې وي، نو اقتداء یې صحیح کېږي.

﴿ ۳۲۲ ﴾ وَ أَنْ لَّا يَعْلَمَ الْمُقْتَدِیْ مِنْ حَالِ إِمَامِهٖ مُفْسِدًا فِیْ زَعْمِ الْمَأْمُوْمِ (۱۴) او دا چي مقتدي به نه پېژني د امام له حالت څخه یو داسي څه کوم چي د لمانځه فاسدونکی وي د مقتدي په گومان کي (یعني د خپل امام له حال څخه به څه داسي شی ته ور معلوم نه وي کوم چي د مقتدي په خیال کي مُفسِد وي) كَخُرُوْجِ دَمٍ أَوْ قَیْءٍ لَمْ يُعِدْ بَعْدَهٗ وُضُوْءَهٗ لکه وینه وتل یا قي کېدل (قی وهل) چي تر هغه وروسته امام خپل اودس نه وي راگرځولی.

**تشریح:** (۱۴) څوارلسم شرط دا دی چي مقتدی به د څه داسي شي په باره کي علم نه لري کوم چي د مقتدي د گومان او مذهب مطابق لمونځ فاسدوي، په لنډه توگه دا چي د مقتدي د مسلک مطابق د امام لمونځ صحیح کېدل شرط دي، مثلاً که امام شافعيُ المذهبه وي، نو په هغه پسي د حنفي کس لمونځ صحیح کېږي په دې شرط کله چي مقتدي ته په امام کي داسي شی معلوم نه سي چي په هغه سره د حنفي مذهب مطابق لمونځ فاسدیږي، لهذا که دا مقتدی د شافعيُ المذهبه امام د بدن له یو حصې څخه وینه را وتونکې ووینې او هغه تر دې وروسته له اودس تازه کولو څخه بغیر لمونځ شروع کړي، نو اوس د حنفي کس لمونځ په هغه پسي نه صحیح کېږي؛ ځکه مقتدي ته په خپل امام کي داسي شی معلوم سو چي په هغه سره په حنفي مذهب کي اودس ماتیږي او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په هغه سره اودس نه ماتیږي (او داسي نور مثالونه). (شفاء الارواح)

## د متیمّم اقتداء

﴿ ۳۲۳ ﴾ وَصَحَّ اِقْتِدَاءُ مُتَوَضِّیءٍ بِمُتَيَمِّمٍ او صحیح ده د اودس کونکي اقتداء په تیمم کونکي پسي.

**تشریح:** که امام په تیمّم سره لمونځ کوي او مقتدي اودس کړی وي او په هغه پسي اقتداء وکړي، نو اقتداء صحیح ده. دا مذهب د امام صاحب او امام ابو یوسف رَحِمَهُمَا الله دی. د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز اقتداء صحیح نه ده. (مراقی الفلاح ص:۱۶۱)

## د مسح کونکي اقتداء

﴿ ۳۲۴ ﴾ وَغَاسِلٍ بِمَاسِحٍ او د (پښو) پرېولونکي (اقتداء) په مسح کونکي پسي (کوم چي پر موزو مسح کړې وي).

**تشریح:** کوم چا چي پر پښو مسح کړې وي برابره ده پر موزو او جرموقينو يې مسح کړې وي. يا يې پر پټۍ (جبيره) مسح کړې وي. په هغه پسي د پښو پرېولونکي اقتداء صحيح ده: ځکه مسح کول او پرېولل ديوې درجې طهارت دی. لهذا د مسح کونکي طهارت د پرېولونکي په شان باقي دی.

## د ناست کس اقتداء

﴿۴۳۵﴾ وَقَائِمٍ بِقَاعِدٍ وَبِأَحْدَبَ او دولاړ کس (اقتداء) په ناست کس او بوغي (ملا کروپ) کس پسي.

**تشریح:** همدارنګه ولاړ کس په ناست کس پسي اقتداء کولای سي. خو دامام محمد رحمه الله په نيز ناجائز ده: ځکه په دې صورت کي د مقتدي حالت دامام له حالت څخه قوي دی. ليکن جمهورو علماؤ دغه قياس دهغه صريح نص په وجه پرې اينی دی کوم چي په بخاري او مسلم کي موجود دی چي نبي کريم ﷺ په خپل آخر عمر کي په ناسته لمونځ ورکړی او خلکو په ولاړي اقتداء پسي وکړه.

همدارنګه بوغی کس يعني چي هغه پر ملا دومره بوغ وي چي د رکوع کيفيت ته رسېدلی وي: په هغه پسي هم دولاړ کس اقتداء صحيح ده. (مراقی الفلاح ص:۱۶۱)

## د اشاره کونکي اقتداء

﴿۴۳۶﴾ وَمُؤْمٍ بِمِثْلِهِ او داشاره کونکي (اقتداء) دهغه په شان (اشاره کونکي) پسي.

**تشریح:** اشاره کونکی کس په خپل غوندي اشاره کونکي پسي لمونځ کولای سي: ځکه په دې صورت کي د دواړو حالت سره برابر دی او د اقتداء د صحيح کېدو لپاره د حالت برابري هم کافي ده. ليکن کوم څوک چي اشاره نه کوي او بغير له اشارې پوره رکوع او سجده کوي، دهغه اقتداء په اشاره کونکي پسي صحيح نه ده: ځکه دلته د مقتدي حالت دامام له حالت څخه د لوړي درجې دی. (مراقی الفلاح ص:۱۶۱)

## د جنابت په حالت کي امامت

﴿۴۳۷﴾ وَمُتَنَفِّلٍ بِمُفْتَرِضٍ او د نفل کونکي (اقتداء) په فرض کونکي پسي.

**تشریح:** همدارنګه د نفل کونکي اقتداء په فرض کونکي پسي صحيح ده: ځکه د نفلي لمانځه په مقابله کي فرضي لمونځ قوي دی او ضعيف د قوي تابع کيږي. نه دا چي قوي د ضعيف تابع کيږي. لهذا نفلي لمونځ به د فرضي لمانځه په متابعت کي صحيح کيږي. ليکن د دې برعکس نه سي کېدلای. (مراقی الفلاح ص:۱۶۱)

﴿۴۳۸﴾ وَإِنْ ظَهَرَ بُطْلَانُ صَلٰوةِ إِمَامِهٖ او که چیري ښکاره سي د خپل امام د لمانځه باطلوالی (یعني مقتدي ته معلومه سي چي د امام لمونځ باطل سو) أَعَادَ نو را ودي ګرځوي (خپل لمونځ) وَيَلْزَمُ الْإِمَامَ إِعْلَامُ الْقَوْمِ بِإِعَادَةِ صَلٰوتِهِمْ بِالْقَدْرِ الْمُمْكِنِ فِي الْمُخْتَارِ او لازم دي پر امام د خلکو خبرول په راګرځولو د هغوی د خپل لمانځه، څومره چي ممکنه وي د مختار قول مطابق (یعني د امام په وس کي چي څومره مقتدیانو ته خبر ورکول ممکن وي، هغوی ټولو ته دي اطلاع ورکړي چي خپل لمنځونه راوګرځوئ!).

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي که د امام لمونځ په یو وجه فاسد سي، نو د ټولو مقتدیانو لمونځ فاسدیږي، برابره ده دا فساد په لمانځه کي دننه معلوم سي، یا د لمانځه تر ختمېدو وروسته معلوم سي، او که د امام لمونځ په یو وجه فاسد سي او مقتدیانو ته معلوم نه سي، نو پر امام ضروري ده چي خپلو مقتدیانو ته حتی الامکان اطلاع ورکړي، د دې لپاره چي هغوی خپل لمنځونه راوګرځوي، برابره ده په ذریعه د قاصد (استازي) وي یا په ذریعه د خط او پیغام وي کله چي مقتدیان تللي وي؛ د "فی المختار" په قول سره یې غیرِ مختار قول ایستلی دی او هغه دا دی چي که مقتدیان متعین نه وي. نو پر امام اطلاع ورکول ضروري نه دي. (حاشیه)



# فَصْلٌ فِيْ مُسْقِطَاتِ الْجَمَاعَةِ

(دا) فصل (د جماعت ساقطونکو شیانو په بیان کي) دی

## د کومو عذرونو په وجه د جماعت پرېښوول جائز دي؟

﴿۴۲۹﴾ يَسْقُطُ حُضُوْرُ الْجَمَاعَةِ بِوَاحِدٍ مِنْ ثَمَانِيَةَ عَشَرَ شَيْئًا ساقطیږي حاضرېدل وجماعت ته په یوه شي سره له اتلسو (۱۸) شیانو څخه مَطَرٌ (۱) باران.

**تشریح:** د ټولو امامانو په نیز څه اعذار سته چي د هغوی په وجه جماعت پرېښوول جائز دي، او باران له هغه عذرونو څخه یو عذر دی.

پاته سوه دا چي څومره باران عذر دی؟، دا خبره دمبتلیٰ به کس رایې ته پرېښوول سوې ده: ځکه د خلکو احوال مختلف وي د شپې او ورځې په اعتبار سره، همدارنګه د سړک د پوخ والي او کچه والي او د برق (بجلی) د موجود والي او نشتوالي او د صحت او عمر په اعتبار سره، لهذا که د چا خیال دا وي چي په دې باران کي زما لپاره مسجد ته رسېدل مشکل دي، نو هغه په کور کي لمونځ کولای سي، او که مسجد ته په تګ کي څه خاص مشکل نه وي، نو بیا په جماعت سره لمونځ کول ضروري دي.

﴿۴۳۰﴾ وَبَرْدٌ (۲) او (سخت) یخ.

**تشریح:** که سخت یخ وي او مسجد ته تلل تاواني وي، نو د جماعت د پرېښوولو ګنجایش سته، لېکن افضل همدا ده چي په جماعت سره لمونځ اداء کړي.

خو که سخته ګرمي وي نو څه به کوي؟ په دې هکله علامه شامي رَحِمَهُ الله فرمایي چي مورږ علماؤ دا خبره نه ده ذکر کړې، شاید د دې وجه دا وي چي ګرمي عموماً د ماپښین په لمانځه کي وي او د ماپښین لمونځ د ګرمۍ په موسم (دوبي) کي ځنډول سنت دي (چي په هغه وخت کي ګرمي څه کمزورې سوې وي).

﴿۴۴۱﴾ وَخَوْفٌ (۳) او ډېره.

**تشريح:** يعني که مسجد ته د تللو په وخت کي د يو دښمن يا د يو ظالم سره د مخامخ کېدلو ډېره وي، يا پر خپل مال د غله ډېره وي، يا د درنده ډېره وي، نو په دې سره هم جماعت ساقطيږي. همدا حکم د قانوني ممانعت هم دی چي که په يو ښار او يو ځای کي له يو وجهي څخه په دباندي وتلو باندي بنديز لګېدلی وي، نو په داسي صورت کي د خپل ځان حفاظت کول ضروري دي او د جماعت پرېښوولو اجازه سته. (طحطاوي على مراقي الفلاح ص: ۱۶۲)

﴿۴۴۲﴾ وَظُلْمَةٌ (۴) او تياره (تاريکه).

**تشريح:** که سخته تياره وي چي د مسجد وطرف ته تلونکي لاره نه ښکاريږي، نو جماعت ساقطيږي او هغه ته حاضرېدل ضروري نه دي.

﴿۴۴۳﴾ وَحَبْسٌ (۵) او قيد والی (بنديتوب).

**لغات:** ﴿حبس﴾ بندول (قيدول)، منع کول، راګرځول.

**تشريح:** که د حکومت يا د بل چا له طرفه څوک راګرځول سوی وي، مثلاً د قرض مالک خپل مقروض (پوروړی) نيولی او راګرځولی وي، نو له هغه مقروض څخه جماعت ساقطيږي، همداسي که مسجد ته دو‌ر تللو په صورت کي د قرض د مالک سره د مخامخ کېدلو او له هغه څخه د تکليف رسېدلو يا د هغه د نيولو ډېره وي په دې شرط چي مقروض پر قرض اداء کولو قادر نه وي، نو جماعت ساقطيږي او که قادر وي او نه يې اداء کوي، نو ظالم ګڼل کيږي او هغه ته د جماعت پرېښوولو اجازه نسته.

﴿۴۴۴﴾ وَعَمىً (۶) او ړوند والی.

**تشريح:** کوم څوک چي ړوند وي او مسجد ته تلل مشکل وي، نو له هغه څخه هم جماعت ساقطيږي او مسجد ته حاضرېدل پر هغه ضروري نه دي، که څه هم داسي څوک وي چي هغه تر لاس نيسي او جماعت ته يې بيايي. (شفاء الارواح)

﴿۴۴۵﴾ وَفَلَجٌ (۷) او فالج کېدل (ابلج وهل).

**لغات:** ﴿فلج﴾ فالج، ابلج، معلوم مرض کوم چي د بدن په يو حصه او يو طرف کي پيدا سي او د هغه طرف حس او حرکت ورختم کړي.

**تشريح:** يعني که څوک فالج وهلی وي، له هغه څخه هم جماعت ساقطيږي.

﴿۴۴۶﴾ وَقَطْعُ یَدٍ وَرِجْلٍ (۸) او لاس او پښه پرېکېدل.

**تشریح**: که د چا یو لاس او یوه پښه پرې سوې وي، نو دا هم د جماعت پرېښوولو لپاره عذر دی، خو صرف یو لاس پرېکېدل عذر نه دی، او صرف یوه پښه پرېکېدل هم عذر دی. (شفاء الارواح)

﴿۴۴۷﴾ وَسَقَامٌ (۹) او مریض کېدل (ناروغي).

**لغات**: ﴿سَقَام﴾ ناروغي، مرض (مرضي)، سَقِمَ یَسْقَمُ سَقْمًا (باب سمع): ناروغه کېدل، مریض کېدل.

**تشریح**: کوم څوک چې په یو سخت مرض مبتلا وي، نو هغه ته هم د جماعت پرېښوولو گنجایش سته.

﴿۴۴۸﴾ وَإِقْعَادٌ (۱۰) او شوټ کېدل (شوټوالی له تګ څخه عاجزه کېدل).

**تشریح**: ﴿إقعاد﴾ د افعال د باب مصدر دی، د دې باب له معنا وو څخه یوه معنیٰ ده: په داسې مرض مبتلا کېدل چې سړی کښېنوي یعني له تګ څخه یې وباسي (پښې یې کار پرېږدي). په "قعاد" مرض مبتلا کېدل، "قعاد" کښېنونکی مرض ته وايي چې سړی له تللو څخه وباسي (یا په بله وینا شوټ کېدل). (معجم الوسیط)

**تشریح**: مسئله دا ده چې که څوک په داسې مرض مبتلا وي چې له تګ څخه عاجزه وي (یا په بله وینا پر کوناتو ناست وي)، مثلاً د یو چا دواړې پښې یا یوه پښه یې شله (بې حسه) وي، نو له هغه څخه هم جماعت ساقطیږي.

﴿۴۴۹﴾ وَوَحْلٌ (۱۱) او چوکړ (ختې).

**لغات**: ﴿الوَحْل﴾ (د واو او حاء په فتحه سره): نرۍ ختې، چوکړ.

**تشریح**: یعني که د مسجده په لاره کې ډېرې ختې او چوکړ وي، نو هم جماعت ساقطیږي، لېکن ترڅو چې ممکنه وي، په جماعت کې شاملېدل غوره دي. (عمدة الفقه)

﴿۴۵۰﴾ وَزَمَانَةٌ (۱۲) او شل کېدل (یا دائمي مرض) وَشَیْخُوخَةٌ (۱۳) او بوډا توب (سپین ږیرتوب).

**لغات**: ﴿زمانة﴾ د دې لفظ دوې معناوې نقل سوې دي: ① دائمي مرض (له ډېر وخت څخه موجود مرض او آفت). ② پښې یا لاسونه بې حسه کېدل (چې حرکت نه کوي)، زَمِنَ یَزْمَنُ زَمَنًا وزُمْنَةً و زَمَانَةً: دائمي مریض کېدل، معذور او شل کېدل.

**تشریح**: که څوک د زیات وخت مریض کېدلو په وجه شل سوی وي، یا سخت کمزوري سوی وي چي د هغه په وجه بغیر له مشقته څخه نه سي تللای، نو هغه هم د جماعت پرېښوولو لپاره معذور دی او جماعت څني ساقط دی، همدارنګه که څوک ډېر بوډا وي چي له تللو څخه عاجزه وي او مسجد ته په تللو کي یې مشقت او تکلیف وي، نو له هغه څخه هم جماعت ساقطیږي. (شفاء الارواح)

﴿۲۵۴﴾ وَتَكْرَارُ فِقْهٍ بِجَمَاعَةٍ تَفُوْتُهٗ (۱۴)او د فقهي تکرار د داسي جماعت (وکړو) سره کوم چي له ده څخه فوت کیږي (یعني دا ېره وي چي هغوی به یې د لاسه ووځي، ولاړ به سي).

**لغات**: بجماعة: په دې کي "ب" د "مع" په معنیٰ سره ده، تفوته د "تفوت" ضمیر و جماعة ته راجع دی او د "ة" ضمیر و سړي ته راجع دی.

**تشریح**: که د فقهي مجلس او د فقهي کتاب تکرار شروع وي او یو څوک هغه ته ناست وي یعني په زړه کړه او ښوونه کي مشغول وي او دا اندېښنه یې وي چي که په جماعت کي شریک سي، نو هغه تکرار کونکي ملګري کوم چي د ده سره په تکرار کي شریک دي، هغوی به فوت او چیري ولاړ سي. نو په داسي صورت کي که بېله قصده جماعت پاته سي، نو هغه معذوره دی او د جماعت پرېښوولو ګنجایش ورلره سته، لېکن د دې عادت جوړول او هر ځل د جماعت په وخت کي په تکرار بوختېدل ممنوع دي. (طحطاوي)

**یادونه**: صاحب د "شفاء الارواح" لیکلي دي: نن سبا چي په مدرسو او جامعو کي کوم تکرار کیږي، هغه د دې مصداق نه سي کېدلای؛ ځکه د ملګرو د فوتېدلو خطره نسته، ځکه عموماً طالبان چیري نه ځي، دا خو هلته دي کله چي مثلاً د علماؤ یا طالبانو یوه غونډه او قافله را ورسیږي او یو څوک د هغو سره د یو ضروري مسئلې په هکله تحقیق کول غواړي، یا هغوی یو تحقیقي مقاله وړاندي کوي، نو پر داسي موقع د طالب علم لپاره د جماعت پرېښوولو ګنجایش سته؛ ځکه که هغه جماعت ته ولاړ سي، نو د علماؤ یا طالبانو قافله به ولاړه سي، بیا نه ده معلومه چي کله به ورته نصیب سي، والله أعلم(شفاء الارواح)، همدارنګه د کتابونو په مطالعه مشغولېدل هم عذر دی کله چي یې دا عادت نه وي (یعني که په ضروري مطالعې د زیات مشغولیت په خاطر کله نا کله بېله قصده جماعت پاته سي، نو د دې ګنجایش هم سته). (طحطاوي بحوالة شفاء الارواح)

﴿۲۵۳﴾ وَحُضُوْرُ طَعَامٍ تَتُوْقُهُ نَفْسُهُ (۱۵) او د خوراک (ډوډۍ) حاضرېدل چې هغه ته د نفس شوق (خواهش) کېږي.

**لغات:** ﴿تَتُوْقُهُ﴾ د نصر له بابه د واحد مؤنث غائب فعل مضارع معروف صیغه ده، تَاقَ يَتُوْقُ تَوْقًا و تُوْقَانًا: شوق لرل (شوق کېدل)، خواهش مند کېدل، غوښتنه کول.

**تشریح:** که داسې صورت پېښ سي چې د عینِ جماعت په وخت کې ډوډۍ تیاره او حاضره سي یا تیارېدلو ته نژدې وي او سړی زیات وږی وي او نفس د هغه وطرف ته راغب وي، نو په داسې صورت کې هم د جماعت پرېښوولو اجازه سته؛ ځکه که د سختې لوږې په حالت کې لمونځ کوي، نو په لمانځه کې به یې توجه د ډوډۍ وطرف ته وي، لهٰذا دا هم عذر شمېرل سوی دی.

﴿۲۵۴﴾ وَإِرَادَةُ سَفَرٍ (۱۶) او د سفر اراده کول.

**تشریح:** یعني که څوک د سفر اراده لري او هغه ته دا بېره وي چې په جماعت سره د لمونځ کولو په صورت کې به ډېر ناوخته سي او قافله به ولاړه سي، یا مثلاً په اوسنې وخت کې د رېل ګاډۍ (اور ګاډي) یا د طیارې (جهاز) د روانېدلو وخت نژدې وي، نو په دې صورت کې هم جماعت ساقطېږي.

﴿۲۵۵﴾ وَقِيَامُهُ بِمَرِيْضٍ (۱۷) او د یو مریض سره د ده پاتېدل (چې د مریض د خدمت او کار لپاره د ده سره وي).

**تشریح:** یعني که یو څوک د مریض د خدمت او کار لپاره متعین وي او هغه ته دا بېره وي چې که له مریض څخه ولاړ سم او په جماعت سره لمونځ وکړم، نو مریض ته به تکلیف یا وحشت پېښ سي. نو له هغه څخه جماعت ساقطېږي.

﴿۲۵۶﴾ وَشِدَّةُ رِيْحٍ لَيْلًا لَا نَهَارًا (۱۸) او د باد سختېدل (تېز باد) د شپې، نه د ورځې.

**تشریح:** یعني که په شپه کې ډېر تېز باد چلېږي، نو هم جماعت ساقطېږي. خو د ورځې په وخت کې د تېز باد چلېدل د جماعت پرېښوولو لپاره عذر نه دی، بلکې په جماعت سره لمونځ کول ضروري دي.

۵۔ ۵۲۵ وَإِذَا انْقَطَعَ عَنِ الْجَمَاعَةِ لِعُذْرٍ مِّنْ أَعْذَارِهَا او كله چي سړى قطع سي له جماعت څخه (يعني شريک نه سي) د جماعت له هغو عذرونو څخه ديو عذر په وجه الْمُبِيْحَةِ لِلتَّخَلُّفِ كوم (عذرونه) چي مباح كونكي (روا كونكي) دي له جماعت څخه پاتېدلو (جماعت پرېښوولو) لره (يعني چي د هغوى په وجه له جماعت څخه پاتېدل او په جماعت كي شركت نه كول روا كېږي. نو كه شرک د داسي عذر په وجه پاته سي) يَحْصُلُ لَهُ ثَوَابُهَا نو حاصليږي هغه ته د جماعت ثواب.

**تشريح**: يعني كه يو چا له مخكيني مذكوره عذرونو څخه ديو عذر په وجه په جماعت كي شركت نه وكړى سو او د هغه دا قصد او نيت وو چي كه عذر نه واى نو خامخا به مي په جماعت سره لمونځ كړي واى. نو هغه ته د جماعت ثواب حاصليږي. لېكن له دې څخه مراد هغه عذرونه دي كوم چي په جماعت كي د حاضرېدو لپاره بالكل مانع وي، مثلاً فالج، زيات بوډا والى او داسي نور. لهذا كوم عذرونه چي بالكل مانع نه وي مثلاً باران، يخ او داسي نور. نو په دې صورتونو كي كه څه هم د جماعت پرېښوول جائز دي. خو بيا هم په جماعت سره لمونځ كول غوره دي، لهذا كه په جماعت كي شركت نه وكړي. نو د جماعت فضيلت نه ورته حاصليږي. (عمدة الفقه)



# فَصْلٌ فِي الأَحَقِّ بِالإِمَامَةِ وَتَرتِيبِ الصُّفُوفِ

(دا) فصل دامامت د زیات مستحق کېدلو او د صفونو د ترتیب په بیان کي دی

**تشریح:** په دې فصل کي دا بیانول کیږي چي د امام جوړېدلو څوک زیات حقدار دی او صفونو ته په ترتیب څنګه ورکول کیږي؟.

**د امامت زیات حقدار:** دامامت زیات حقدار هغه څوک دی چي په لمانځه او د لمانځه سره په اړوند مسئلو ښه خبر وي او ښه یې زده وي او قرآن کریم صحیح ویلای سي او د لویو ګناهونو (تیاترو) څخه پرهیز کوي. (عالمګیري ج:۱، ص:۸۳)

**د صفونو د ترتیب اهمیت:** د جماعت په لمانځه کي د صفونو سمول او سیده کول ضروري دي. نبي کریم ﷺ د دې ډېر تینګار کړی دی او تر هغوی ﷺ وروسته خلفاء راشدینو هم د صفونو د سمون ډېر اهتمام کړی دی. د حضرت عمر ﷛ د خلافت په دور کي چي کله په مسجد نبوي کي لمونځ ګزاران زیات سول او د صفونو د سمولو کارېوازي د امام په وس کي پاته نه سو. نو حضرت عمر ﷛ په مستقله توګه یو څو خلګو ته دا ذمه واري وسپارله، هغو به صفونه سیده کول. بیا چي کله به هغو د صفونو د سمولو اطلاع ورکړه، نو تر دې وروسته به حضرت عمر ﷛ لمونځ شروع کړی. لنهدا چي صفونه سیده کول ضروري دي او د صفونو د سیده کولو ذمه واري د امام ده، که د امام له بې توجهی څخه په صفونو کي خرابي او نخره پاته سي، نو د قیامت په ورځ به هغه مأخوذه کیږي. (انوار الایضاح)

**د صفونو د سیده کولو طریقه:** د صفونو د سمولو لو آسانه لاره دا ده چي په جماعت کي شریک تول لمونځ ګزاران خپلي پوندي د صف پر څنډه کښېږدي او هر یو خپلي اوږې د بل د اوږو سره برابري کړي او د پښو ګوتي مخ پر قبله وساتي، نو په دې توګه به د هر یوه بجلکي د بل د بجلکو په برابر کي رسي او خود بخوده به صفونه برابر او سیده روان سي.

**ضروري یادونه:** نن سبا د صفونو د ترتیب او برابرولو خصوصي بندوبست کېدل پکار دي؛ ځکه اوس عموماً د صفونو د ترتیب په باره کي لا پروایي کیږي، سره د دې چي په مسجد کي د هر صف لپاره جلا دړۍ او جلا ځای متعین سوی وي او په لږ څوندي توجه سره صفونه سیده کېدلای سي، لیکن بیا هم په دې معامله کي غفلت کیږي او خلګ مخ او شا ته بې ترتیبه ولاړ وي چي په دې توګه د صفونو په مینځ کي نخره (خلا) پاته وي او عادت دا دی چي که وروسته یو کس راسي او دغه نخره

دکول وغواړي. نو راسته او چپه طرف ته ولاړ خلک لږ ځکېدلو ته نه تیارېږي. دغه صورت حال د پیغمبر ﷺ د هدایاتو بالکل خلاف دی.

**د اول صف فضیلت:** په صفونو کې اول صف تر ټولو بهتر دی. رسول الله ﷺ د اول صف والا لپاره په خصوصي توګه د بخښنې دعاء کړې ده او فرمایلي یې دي چې د صف اول پر خلکو د الله تعالی رحمت نازلېږي او فرښتې د عفو لپاره د مغفرت دعاء کوي. (مشکوة شریف، حدیث نمبر: ۱۰۹۵)

نن سبا د اول صف په ترتیب کې هم ډېر غفلت کېږي، دیخ په زمانه کې د خلکو کوشش دا وي چې د مسجد په هغه طرف کې ودرېږي چېرې چې لمر وي، حال دا چې د مخ صفونه خالي پاته وي او د ګرمۍ په زمانه کې داسې ځای لټول کېږي چې هلته د باد پکې (پنکې) هوا زیاته راځي. قطع نظر له دې ځخه چې هغه اول صف وي او که شاتنی صف وي!. دغه طریقه قطعاً نامناسبه ده. ددې پر ځای زموږ کوشش دا کېدل پکار دي چې د مخ په صفونو کې په لمونځ کولو سره د زیات ثواب مستحقین وګرځو. پروردګار عالم دې موږ ټولو ته د عمل توفیق راکړي (آمین). (کتاب المسائل ص: ۳۹۹ - ۴۰۲)

## د امامت زیات مستحق درجه په درجه

﴿۴۵۸﴾ إِذَا لَمْ يَكُنْ بَيْنَ الْحَاضِرِيْنَ صَاحِبُ مَنْزِلٍ وَلَا وَظِيْفَةٍ وَلَا ذُوْ سُلْطَانٍ او کله چې نه وي په حاضرینو کې د کور خاوند او نه د وظیفې خاوند (تنخا والا امام) او نه د حکومت والا (دوخت باچا امیر) فَالْأَعْلَمُ أَحَقُّ بِالْإِمَامَةِ نو (په دوی کې) زیات علم والا د امامت زیات حقدار دی ثُمَّ الْأَقْرَأُ بیا (په دوی کې) زیات قاري ثُمَّ الْأَوْرَعُ بیا زیات پرهېزګاره.

**لغات:** ﴿صاحب منزل﴾ د کور خاوند، د کور مالک، مراد یې عام دی یعني برابره ده خپل کور یې وي او که په کرایه یا عارتاً یې اخیستی وي. ﴿وظیفة﴾ مراد تنخا، جمع: وظائف. او دلته تنخا والا امام مراد دی. ﴿أورع﴾ د فتح له بابه د اسم تفضیل صیغه ده: وَرَعَ يَرَعُ وَرْعًا وَرَعًا: له مشتبه شیانو ځخه ځان ساتل. پرهېز ګاره کېدل.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې امام خو به هماغه کس جوړول کېږي چې په هغه کې د امامت تر ټولو زیات اوصاف موجود وي. لېکن که په حاضرینو کې د اسلام باچا هم موجود وي. نو بیا هغه تر ټولو زیات د امامت مستحق دی. لېکن په حاشیه کې د "نهایة" په حواله سره لیکل سوي دي چې دا د هغه زمانې د باچا او حاکم خبره ده چې په هغه کې به حاکم غالباً عالم او نېک وو. او پاته سو زموږ

په زمانه کې زياتره حاکمان ظالمان، فاسقان او فاجران وي، نو ځکه په اوسنی زمانه کې به دا حکم نه وي.

تر دې وروسته به د کور خاوند یا د وظیفې (تنخا) خاوند (یعني محلې والا امام کوم چې په تنخا سر، تاکل سوی وي) پر نورو مخکې کول کیږي. که څه هم په حاضرینو کې له دوی څخه ښه عالم یا ښه قاري یا پرهیز گاره موجود وي، لیکن غوره دا ده چې د کور خاوند یا د محلې امام له دوی څخه یو مخکی کړي او کله چې له دوی څخه یو موجود نه وي. نو د امامت تر ټولو زیات حقدار هغه کس دی کوم چې أعلم وي. یعني کوم چې د لمانځه د صحت او فساد په مسائلو تر ټولو زیات خبر وي چې په کومو شیانو سره لمونځ فاسدیږي او په کومو شیانو سره صحیح کیږي. او د مسنون قرائت په اندازه د قرآن پر ویلو قادر وي، لهذا کوم کس چې د لمانځه په شرطونو، ارکانو، سنتو او د هغه په آدابو واقف وي که څه هم د نورو علومو سره زیات بلد نه وي، یا دا چې نور علوم بالکل نه پېژني او ظاهراً له گناهونو څخه ځان ساتي، نو هغه په دې باب کې أعلم دی. (حاشیه. عمدة الفقه بحوالۀ شفاء الارواح)

ثم الأقرأ: په دې کې دوه احتماله دي: ① یعني که په حاضرینو کې ټوله په علم کې سره برابر وي. نو په هغوی کې چې څوک قرآن شریف د قواعدو مطابق زیات صحیح وایي چې د وقف پر ځای وقف. دوصل پر ځای وصل، د تشدید پر ځای شد، د تخفیف پر تخفیف او د مد پر ځای مد او داسې نور کوي، نو هغه د امامت زیات حقدار دی، علامه ابن همام رحمه الله همدا اول احتمال اخیستی دی. ② او دویم احتمال دا دی چې که ټوله أعلم وي، نو له دوی څخه چې د کوم یوه زیات قرآن یاد وي. هغه زیات حقدار دی.

ثم الأورع: یعني که په حاضرینو کې هر یو أعلم او أقرأ وي، نو په هغوی کې چې څوک تر ټولو زیات پرهېزگاره وي، هغه زیات حقدار دی، د پرهېز مطلب دا دی چې په کوم څه کې صرف د حلال او حرام شبهه وي. نو له هغه څخه هم ځان ساتي. په ورع او تقوی کې فرق دا دی چې تقوی له محرماتو څخه پرهېز کولو ته وایي او ورع له شبهاتو څخه پرهېز کولو ته وایي. (حاشیه بحوالۀ شفاء الارواح)

متن ﴿ ثُمَّ الْأَسَنُّ بیا (په دوی کې) زیات عمر والا (زیات مشر) ثُمَّ الْأَحْسَنُ خُلُقًا بیا زیات ښه اخلاق والا (یعني هغه کس کوم چې د اخلاقو په اعتبار سره په دوی کې زیات ښه وي) ثُمَّ الْأَحْسَنُ وَجْهًا بیا زیات ښایسته مخ (صورت) والا ثُمَّ الْأَشْرَفُ نَسَبًا بیا زیات شریفه نسب والا ثُمَّ الْأَحْسَنُ صَوْتًا بیا زیات ښایسته (ښکلې) آواز والا ثُمَّ الْأَنْظَفُ ثَوْبًا بیا زیات پاکې جامې والا (یعني په ملک کې، هغه کس چې جامه یې زیاته پاکه وي).

**لغات**: ﴿أسن﴾ داسم تفضیل صیغه ده: زیات عمر والا. أَسَنَّ الرَّجُلُ: ډېر عمر والا کېدل. بوډا کېدل. ﴿أشرف﴾ د کَرُم له بابه داسم تفضیل صیغه ده. شَرُفَ يَشْرُفُ شَرَفًا وشَرَافَةً: لوړې مرتبې والا کېدل. د عزت خاوند کېدل.

**تشریح**: ثم الأسن: یعني که په پرهېزګارۍ کې هم ټول حاضرین سره برابر وي، نو بیا په دوی چې کوم په عمر کې مشر وي، هغه به امام جوړېږي. علامه طحطاوي رحمه الله فرمایي چې په عمر کې د زیاتوالي مطلب دا دی چې د چا زیاته زمانه د اسلام په حالت کې تېره سوې وي، هغه به مخکې کېږي، نو د دې قول مطابق هغه ځوان کوم چې له شروع څخه مسلمان وي پر هغه سپین ږیري مخکې کول کېږي کوم چې څو ورځې مخکې مسلمان سوی وي، او بعضې حضراتو په عمر کې زیاتوالي حقیقتاً په عمر کې مشروالي مراد کړی دی، نو د دې قول مطابق په مذکوره حاضرینو کې چې د کوم یوه زیات عمر وي، هغه به مخکې کول کېږي.

ثم الأحسن خلقًا: یعني که په مذکوره شیانو کې د جماعت خلک ټول سره برابر وي، نو بیا چې په دوی کې د کوم یوه ډېر ښه اخلاق وي چې د ښه اخلاقو په وجه خلک ور سره محبت کوي، نو هغه به مخکې کول کېږي؛ ځکه دا سې کس د جماعت د کثرت سبب دی.

ثم الأحسن وجهًا: یعني که ټول په اخلاق کې هم سره برابر وي، نو بیا چې کوم یو زیات ښکلی او ښایسته وي، هغه به مخکې کول کېږي، بعضو له دې څخه هغه کس مراد کړی دی کوم چې په کثرت سره تهجد کوي؛ ځکه د نورو خلکو په نسبت د تهجد کونکي پر مخ زیات نور او ښکلا راځي (لکه څرنګه چې د لوس وخت اسلامي سائنسپوهانو د دې سائنسي وجه هم بیان کړې ده. او په حدیث کې هم دې ته اشاره سوې ده چې په شپه کې د کوم چا لمونځونه زیات وي، نو د هغه مخ ښکلی کېږي)، او بعضې حضراتو ظاهري ښایست مراد کړی دی: ځکه د ښکلي امامت هم د جماعت د کثرت سبب وي. (طحطاوي)

**د لغړزني امامت**: لغړ زنی (أمرد) که ښایسته وي او دا بېره وي چې خلک به هغه ته د شهوت په نظر سره وګوري، نو د هغه امامت مکروه تنزیهي دی او غوره دا ده چې یو ږیري والا کس مستقل امام مقرر کړل سي. (شامي ج: ۲، ص: ۲۵۸)

ثم الأشرف نسبًا: یعني که ټول خلک په ښکلا کې هم سره برابر وي، نو بیا به هغه یو مخکې کول کېږي کوم چې د خاندان په لحاظ سره زیات شریف وي، مثلاً سید به پر نورو خلکو مخکې کول کېږي: ځکه سید خاندان ته د نبي کریم ﷺ د نسبت په وجه یو خاص اعزاز او شرافت حاصل دی.

ثم الأحسن صوتاً الخ: او که په مذکوره صفاتو کي هم ټوله سره برابر وي، نو بیا به ښه آواز والا مخکي کول کیږي.

او بیا به هغه یو مخکي کول کیږي چي د هغه کپړې (جامې) له خیرو ښخه زیاتي صفا وي. بعضي حضراتو د دې معنیٰ دا بیان کړې ده چي کوم چا تر ټولو غوره کپړه اغوستې وي، هغه به مخکي کول کیږي. (طحطاوي)

﴿۲۶۰﴾ فَإِنِ اسْتَوَوْا بیا که (په مذکوره اوصافو) کي ټوله سره برابر سي يُقْرَعُ نو قرعه (ایسکه اسکا) به اچول کیږي أَوِ الْخِيَارُ لِلْقَوْمِ یا اختیار قوم لره دی فَإِنِ اخْتَلَفُوْا بیا که دوی (دامام په اختیارولو کي) اختلاف وکړي فَالْعِبْرَةُ بِمَا اخْتَارَهُ الْأَكْثَرُ نو اعتبار هغه کس لره دی چي اکثرو یې اختیار (خوښ) کړي وَإِنْ قَدَّمُوْا غَيْرَ الْأَوْلٰى او که دوی غیر مستحق کس مخ ته کړي فَقَدْ أَسَاءُوْا نو دوی بد وکړه.

لغات: ﴿يقرع﴾ د افعال له بابه د واحد غائب مضارع مجهول صیغه ده، مصدر إِقْرَاعٌ: قرعه اندازي کول، قرعه کشي کول (پچه اچونه)، د ډېرو خلکو په نومانو کي د یوه نوم را ایستلو طریقه. ﴿أساءوا﴾ د افعال له بابه د جمع مذکر غائب ماضي معروف صیغه ده، مصدر إِسَاءَةٌ: بد کول، غلطي کول.

تشریح: فرمایي چي که په مذکوره ټولو اوصافو کي سره برابر وي، نو قرعه اندازي به کول کیږي، د کوم یوه نوم چي را ووځي، هغه به امام جوړول کیږي، یا خلکو ته اختیار دی چي کوم یو یې خوښ کړي، هغه دي امام جوړ کړي، او که پر یوه هم اتفاق را نه سي، نو بیا چي د کوم یوه په باره کي د اکثرو مقتدیانو رایه وي چي هغه دي منتخب کړی سي، نو هغه به امام جوړول کیږي.

او که د اختلاف یا غیرِ اختلاف په صورت کي خلکو یو غیرِ حقدار کس د امامت لپاره مخکي کړی، نو ډېر بد یې وکړه، خو لمونځ یې کیږي. (انوار الایضاح)

## د غلام امامت

﴿۲۶۱﴾ وَكُرِهَ إِمَامَةُ الْعَبْدِ او مکروه دی امامت د غلام.

تشریح: غلامان زیاتره ناخبره (جاهله) او بې تهذیبه وي او همېشه د مالک په خدمت کي د مشغولتیا په وجه د ښه ویلو او زده کولو موقع ورته حاصله نه وي، نو ځکه د دوی امامت مکروه تنزیهي دی:

لېکن که یو غلام د علم او تقویٰ خاوند وي، نو بېله کراهته یې امامت صحیح دی. (مراقی الفلاح مع الطحطاوي ص: ۱۶۴، شفاء الارواح)

## د نا بینا امامت

﴿۲۶۲﴾ وَالْأَعْمٰى او (امامت) د نابینا.

**تشریح**: کوم نابینا (ړوند) کس چې احتیاط کونکی وي چې له نجاست څخه د بچ کېدلو پوره اهتمام کوي، نو د هغه امامت بېله کراهته صحیح دی، کنې مکروهِ تنزیهي دی.

## د صحرایي امامت

﴿۲۶۳﴾ وَالْأَعْرَابِيِّ او (امامت) د صحرایي (دښتي).

**تشریح**: کوچي او د صحراء اوسېدونکی هم د امامت لپاره مخکې کول مکروه دي: ځکه په دوی کې هم د جهالت غلبه وي، لېکن که د علم خاوند وي، نو بیا بېله کراهته یې امامت صحیح دی.

## د حرامي (ارموني) امامت

﴿۲۶۴﴾ وَوَلَدِ الزِّنَا الْجَاهِلِ او (مکروه دی امامت) د حرامي (کله) چې (دا مذکوره هر کس) جاهل وي.

**تشریح**: د حرامي کس امامت هم مکروه تنزیهي دی: ځکه د هغه پلار نه وي چې هغه ته یې تربیه او تعلیم ورکړی وي، لېکن که هغه د علم خاوند وي، نو بیا هیڅ حرج نشته.

**یادونه**: دلته د "الجاهل" قید له "العبد" څخه واخله تر "ولد الزنا" پورې د ټولو سره متعلق دی او مطلب یې دا دی چې د مذکوره کسانو امامت هغه وخت مکروه دی کله چې دوی جاهله، د علم خاوندانه وي او که وي، نو بیا هیڅ کراهت نشته. (مراقی الفلاح مع الطحطاوي ص: ۱۶۵)

## د فاسق امامت

﴿۲۶۵﴾ وَالْفَاسِقِ او (مکروه دی امامت) د فاسق.

**تشریح**: فاسق کس امام جوړول او په هغه پسې لمونځ کول مکروه تحریمي دي، د هغه په اقتداء کې به لمونځ نه کول کېږي.

یادونه: فاسق هغه کس ته وایي کوم چې علی الاعلان د ګناه کبیره ارتکاب کوي. لکه سود خور کس، چغل خوره، زناکاره، ریاکاره، ډیره خرېونکی، یا ږیره کونډۍ کونکی (چې له یوه موټ څخه یې یاته کوچنۍ کوي) او داسې نور. د دغه ګناهونو مرتکب امام جوړول او لمونځ پسې کول مکروه دي. که نه هم هغه په علم کې له نورو مقتدیانو څخه زیات وي؛ ځکه په امام جوړولو کې د هغه تعظیم کیږي، حالانکې پر مقتدیانو د هغه اهانت ضروري دی. (طحطاوي عمدة الفقه بحوالة شفاء الارواح)

## د بدعتي امامت

۲٦٦ ﴿وَالْمُبْتَدِعِ﴾ او (امامت) د بدعتي.

لغات: ﴿مبتدع﴾ د افتعال له بابه د فاعل صیغه ده: ، مصدر اِبْتِدَاعٌ: ایجادول. له ځانه جوړول. نوې خبره پیدا کول.

تشریح: د بدعتي کس امامت هم مکروه تحریمي دی، او له بدعتي څخه مراد هغه کس دی کوم چې د دین کې له خپل ځانه نوې خبرې پیدا کوي، نو په هغه پسې لمونځ کول مکروه تحریمي دي کله چې د هغه بدعت دومره نه وي چې په هغه سره د دین له ضروریاتو څخه د یوه انکار لازمیږي. خو که د هغه بدعت د کفر حد ته رسېدلی وي، نو په دې سره خو هغه کافر کیږي او په هغه پسې ګرد سره لمونځ نه کیږي.

یادونه: دلته دا خبره یاد ساتل پکار دي چې که د یو مسجد امام فاسق یا بدعتي وي. نو که بل ځای د جماعت لمونځ پیدا کیږي، نو په هغه پسې دې اقتداء نه کوي، او که داسې هیڅ صورت نه وي مثلاً بل مسجد نه وي، یا وي، خو هلته هم امام فاسق یا بدعتي وي لکه په بهرنیو هیوادونو کې چې زیاتره داسې صورت پېښیږي، نو په داسې صورت کې په هغو پسې لمونځ کول له یوازې لمونځ کولو څخه اولی دي، لهذا غوره همدا ده چې یوازې لمونځ نه وکړی سي. (شفاء الارواح بتصرف)

## اوږد لمونځ کول

۲٦۷ ﴿وَتَطْوِیْلُ الصَّلٰوةِ﴾ او (مکروه دي) لمونځ اوږدول (په جماعت کې).

تشریح: یعني خلکو ته اوږد لمونځ ورکول مکروه دي: ځکه په جماعت کې ضعیفه. بوډاګان او ضرورت مند تول قسم خلک وي، نو د ټولو په رعایت کولو سره لمونځ ورکول پکار دي. او د سنت

قرائت چي کومه اندازه بیان سوې ده (چي دهغه تفصيل په ﴿۳۵۴﴾ نمبر مسئله کي تېر سو). دهغه مقدار مطابق سپک قرائت کول پکار دي، او د دې مطلب دا نه دی چي د ضعيفو خلکو په رعايت کي به له سنت قرات څخه کم قرائت کول کېږي، يا د رکوع او سجدې سنت طريقه به پرېښوول کيږي، بلکي مطلب يې دا دی چي له سنت مقدار څخه به زياتوب نه کول کيږي. (انوار الایضاح. شفاء الارواح)

## د لڅو خلکو او د ښځو د جماعت حکم

﴿۲۶۸﴾ وَجَمَاعَةُ الْعُرَاةِ وَالنِّسَاءِ او (مکروه دی) جماعت د لڅو کسانو او د ښځو فَإِنْ فَعَلْنَ بيا که ښځي (جماعت) وکړي يَقِفُ الْإِمَامُ وَسْطَهُنَّ كَالْعُرَاةِ نو درېږي به امام د ښځو په مېنځ کي، د لڅو کسانو (د جماعت) په څېر.

**لغات:** ﴿العاري﴾ د سمع له بابه اسم فاعل دی: لڅ، بربنډ.

**تشريح:** فرمايي چي د لڅو خلکو لپاره په جماعت سره لمونځ کول مکروه تحريمي دي، همدارنګه يوازي د ښځو لپاره په جماعت سره لمونځ کول هم مکروه تحريمي دي، بيا که د کراهت باوجود ښځي جماعت کوي، نو د ښځو امامه به د ښځو په مېنځ کي درېږي، د سرېو په څېر به مخ ته نه درېږي، لکه څرنګه چي لڅ کسان که لمونځ کوي، نو د هغو لپار همدا حکم دی چي امام به د دوی په مېنځ کي درېږي، مخ ته به يې نه درېږي.

## د يوه مقتدي حکم

﴿۲۶۹﴾ وَيَقِفُ الْوَاحِدُ عَنْ يَمِيْنِ الْإِمَامِ او درېږي به يو کس (يو مقتدی) د امام راسته طرف ته وَالْأَكْثَرُ خَلْفَهُ او (درېږي به. له يوه څخه) زيات د امام شاته.

**تشريح:** يعني که د امام سره صرف يو کس وي، نو هغه به د امام راسته طرف ته درېږي او که د امام سره دوه يا تر دې زيات مقتديان وي، نو هغوی به د امام شا ته درېږي، لهذا که تنها يو کس د امام چپ طرف ته، يا د امام شا ته ودرېږي، نو سخت مکروه تنزيهي دي (يعني له مکروه تحريمي څخه څه کم)؛ ځکه په دې کي د سنت مخالفت دی. (شفاء الارواح)



**مسئله**: که چیري تنها یوه ښځه مقتدیه وي، نو هغه به د امام بالکل شا ته درېږي، دیوه سړي په څېر به دامام څنګ ته نه درېږي، همدارنګه که خاوند او ښځه په کور کي په جماعت سره لمونځ کوي، نو ښځه به شا ته درېږي، د امام سره به نه درېږي. (در مختار ج: ۲، ص: ۳۰۷)

## د صفونو ترتیب

﴿۲۸۰﴾ وَيَصُفُّ الرِّجَالُ ثُمَّ الصِّبْيَانُ او صف به جوړوي (اول) سړیان بیا کوچنیان ثُمَّ الْخُنَاثَىٰ ثُمَّ النِّسَاءُ بیا نرښځیان بیا ښځي.

**تشریح**: په دې عبارت کي د صفونو ترتیب بیانوي چي دامام شا ته به مقتدیان په کوم ترتیب سره درېږي؟، فرمایي چي د امام شا ته به تر ټولو مخکي سړیان درېږي، بیا د هغو شا ته به کوچنیان او بیا نرښځیان درېږي (له خنثیٰ څخه مرد خنثیٰ مشکل دی یعني چي په هغه کي د نارینه او ښځینه دواړو علامت وي. یا په بله وینا ذکر او فرج دواړه لري. یا له دواړو څخه یو علامت پکښي نه وي. لېکن که یو علامت پکښي غالب وي. نو د غلب علامت په اعتبار سره به هغه نارینه یا ښځینه شمېرل کېږي)، او د نرښځیانو شا ته به ښځي درېږي. هسي خو جماعت ته د ښځو حاضرېدل مکروه دي، خو بیا هم که هغوی جماعت ته حاضري سي، نو تر ټولو په آخر صف کي به درېږي.



## فَصْلٌ فِيْمَا يَفْعَلُهُ الْمُقْتَدِيْ بَعْدَ فَرَاغِ إِمَامِهٖ مِنْ وَاجِبٍ وَغَيْرِهٖ

(دا) فصل دهغو شیانو په بیان کې دی چې کوي به یې مقتدی د خپل امام له فارغېدلو څخه وروسته او له هغوی څخه بغیر نور شیان (چې مقتدی به یې نه کوي)

**تشريح:** په مذکوره عنوان کې د "غيره" عطف پر "مايفعلهُ" دی. يعني هغه کارونه چې مقتدی به يې کوي او هغه چې نه به يې کوي مثلاً که امام مخکې تر دې سر پورته کړي چې تر اوسه مقتدي درې واره تسبيح نه وي ويلې. نو مقتد به تسبيح پرېږدي او د امام اتباع به کوي، د همدې په شان اُمور په دغه فصل کې بيان سوي دي.

## د مقتدي له فارغېدلو څخه مخکې د امام سلام ګرځول

(۲۷۱) وَلَوْ سَلَّمَ الْإِمَامُ قَبْلَ فَرَاغِ الْمُقْتَدِيْ مِنَ التَّشَهُّدِ او که امام سلام وګرځوي د مقتدي له تشهد څخه تر فارغېدلو مخکې يُتِمُّهٗ نو مقتدی به تشهد پوره کوي.

**تشريح:** يعني په قعدهٔ اخيره (آخره ناسته) کې که تر اوسه مقتدي تشهد پوره کړی نه وي او تر هغه مخکې امام سلام وګرځوي، نو په داسې صورت کې دي مقتدی د امام متابعت نه کوي بلکې خپل تشهد دي پوره کړي او بيا دي سلام وګرځوي؛ ځکه تشهد واجب دی او پاته سو درود او دعاء سنت دي. او که مقتدی خپل تشهد پوره نه کړي، بلکې د امام سره سلام وګرځوي، نو هم جائز دي، لېکن صحيح دا ده چې دالمونځ د کراهتِ تحريمه سره صحيح کېږي.

او که مقتدی له امام څخه مخکې فارغ سي، نو خاموش دي کښېني او د امام سره دي يو ځای سلام وګرځوي. همدا حکم د قعدهٔ اولیٰ دی چې که په هغه کې امام د مقتدي له تشهد پوره کېدلو څخه مخکې درېيم رکعت ته ولاړ سي، نو مقتدی دي خپل تشهد پوره کړي بيا دي ولاړ سي. لېکن که له تشهد پوره کولو څخه بغير ولاړ سي، نو هم جائز دي. (حاشيه. عمدة الفقه. مراقی الفلاح)

## د مقتدي له تسبيح پوره کېدلو څخه مخکې د امام سر پورته کول

﴿۴۲۲﴾ وَلَوْ رَفَعَ الْإِمَامُ رَأْسَهُ قَبْلَ تَسْبِيحِ الْمُقْتَدِيْ ثَلَاثًا فِي الرُّكُوعِ أَوِ السُّجُوْدِ او که پورته کړي امام خپل سر د مقتدي له درې واره تسبيح ويلو څخه مخکې په رکوع يا سجده کې يُتَابِعُهُ نو مقتدي به د امام متابعت کوي.

**تشريح:** مسئله دا ده چې که مقتدي تر اوسه د رکوع يا سجدې تسبيح پوره کړې نه وي چې امام له رکوع يا سجدې څخه سر پورته کړي، نو مقتدي دي د امام متابعت وکړي او تسبيحات دي پرېږدي. پر همدې قول فتویٰ ده. که څه هم بعضې حضرات فرمايي چې تسبيحات دي پوره کړي. (مراقی الفلاح ص: ۱۶۰)

## که امام په هېره درې سجدې کړي يا په آخره ناسته کې ولاړ سي؟

﴿۴۲۳﴾ وَلَوْ زَادَ الْإِمَامُ سَجْدَةً او که زياته کړي امام يوه سجده أَوْ قَامَ بَعْدَ الْقُعُوْدِ الْأَخِيْرِ سَاهِيًا يا ولاړ سي له آخري ناستې څخه وروسته په هېره لَا يَتْبَعُهُ الْمُؤْتَمُّ نو اتباع به نه کوي مقتدي د هغه وَإِنْ قَيَّدَهَا او که امام مقيد کړي هغه (زائد) رکعت (په سجده سره. يعني د زائد رکعت لپاره سجده وکړي) سَلَّمَ وَحْدَهُ نو مقتدي دي يوازې سلام وګرځوي.

**تشريح:** يعني که امام په يو رکعت کې په هېره دوو سجدو پر ځای درې سجدې وکړي. يا په قعدهٔ اخيره کې په هېره ولاړ سي، مثلاً په څلور رکعتيز لمانځه کې تر آخري ناستې وروسته د پنځم رکعت لپاره ولاړ سي، نو په دې دواړو صورتونو کې حکم دا دی چې مقتدي دي د امام اتباع نه کوي په دې اضافي شيانو کې، بلکې انتظار دې وکړي. که امام د زائد پنځم رکعت له سجدې څخه مخکې را وګرځي، نو مقتدي دي هم د هغه سره يو ځای پاته سي تر سلام ګرځولو پورې او د هغه سره دې سجدهٔ سهو هم وکړي، او که امام د زائد پنځم رکعت لپاره سجده وکړي. نو مقتدي دي تنها سلام وګرځوي.

## که امام آخره ناسته پرېږدي؟

﴿۴۲۴﴾ وَإِنْ قَامَ الْإِمَامُ قَبْلَ الْقُعُوْدِ الْأَخِيْرِ سَاهِيًا او که امام ولاړ سي له آخري ناستې څخه مخکې په هېره اِنْتَظَرَهُ الْمَأْمُوْمُ نو مقتدي دي د هغه انتظار وکړي فَإِنْ سَلَّمَ الْمُقْتَدِيْ

قَبْلَ أَنْ يُقَيِّدَ إِمَامُهُ الزَّائِدَ ةَ بِسَجْدَةٍ بیا که مقتدی سلام وګرځوي مخکې تر دې چې امام خپل زائد رکعت په سجده سره مقید کړي فَسَدَ فَرْضُهُ نو د مقتدي فرض فاسدیږي.

**تشریح:** مسئله دا ده چې که امام آخره ناسته نه وکړي، بلکې په هېره ولاړ سي، نو په دې صورت کې دي هم مقتدی د امام متابعت نه کوي یعنې نه دي ولاړیږي، بلکې په ناسته دي انتظار وکړي. که د پنځم رکعت له سجدې څخه مخکې امام راوګرځي، نو مقتدی دي د هغه متابعت وکړي. لېکن که مقتدی د امام د پنځم رکعت له سجده کولو څخه مخکې سلام وګرځوي، نو د مقتدي لمونځ فاسدیږي: ځکه قعدهٔ اخیره فرض ده، لکه څرنګه چې د پنځم رکعت په سجده کولو سره د امام او مقتدي دواړو لمونځ فاسدیږي.

﴿۳۷۵﴾ وَ كُرِهَ سَلَامُ الْمُقْتَدِيْ بَعْدَ تَشَهُّدِ الْإِمَامِ قَبْلَ سَلَامِهِ او مکروه دي د مقتدي (لپاره) سلام ګرځول د امام له تشهد ویلو څخه وروسته مخکې د امام تر سلام ګرځولو.

**تشریح:** مسئله دا ده چې که امام په آخره ناسته کې تشهد پوره کړی وي (درود او دعاء یې شروع کړې وي) او تر اوسه هغه سلام نه وي ګرځولی دی چې مقتدی تر هغه مخکې سلام وګرځوي. نو دا مکروه تحریمي دي، خو لمونځ یې صحیح کیږي. (مراقی الفلاح مع الطحطاوي ص: ۱۶۹، ۱۷۰)



# فَصْلٌ فِي الْأَذْكَارِ الْوَارِدَةِ بَعْدَ الْفَرْضِ

(دا) فصل په (بيان د) هغه اذکارو کي دی کوم چي تر فرضو وروسته وارد سوي دي

﴿۴۷۶﴾ اَلْقِيَامُ إِلَى السُّنَّةِ مُتَّصِلًا بِالْفَرْضِ مَسْنُونٌ له فرضو (فرضي لمانځه) څخه وروسته متصلاً د سنتو لپاره ولاړېدل سنت دي وَعَنْ شَمْسِ الْأَئِمَّةِ الْحَلْوَانِي: لَا بَأْسَ بِقِرَاءَةِ الْأَوْرَادِ بَيْنَ الْفَرِيضَةِ وَالسُّنَّةِ او له شمس الائمه حلواني رحمه الله څخه نقل سوي دي: چي څه پروا نسته د وظيفو (اورادو) په ويلو کي د فرضو او سنتو تر مينځ.

**لغات:** ﴿لا بأس﴾ لا د نفي جنس ده، لا بأس به دفيه: په دې کي څه حرج او پروا نسته. شيءٌ لا بأس به: داسي شی چي هيڅ پروا پکښې نه وي، نا قابلِ اعتراض شی.

**تشريح:** تر فرضي لمانځه وروسته بېله څه ځنډه متصلاً د سنتو لپاره ولاړېدل سنت دي، يعني تر لمانځه وروسته دي په اوږده دعاء او وظائفو کي نه مشغوله کيږي، او پاته سوه مختصره دعاء کول د دې منافي نه دي، لکه "اللّٰهم أنت السلام ومنك السلام تبارکت يا ذا الجلال والإکرام"، "اللهم أعني على ذكرك وشكرك وحُسن عبادتك" او "لا إله إلا الله وحده لا شريک له له الملك وله الحمد وهو على كل شيء قدير" او داسي نور، دغه مختصره دعاگاني د متصلاً سنت لپاره منافي نه دي. بلکي په اوږدو دعاگانو مشغولېدل چي په هغه سره په سنتو کي تأخير راسي، له هغه څخه ځان ساتل ضروري دي ځکه په زيات تأخير سره د سنتونو ثواب کميږي.

او شمس الائمه حلواني رحمه الله فرمايي چي د فرضو او سنتو په مينځ کي اوراد او وظايف کول څه حرج نه لري. لېکن دا بنه نه ده بلکي اولیٰ دا ده چي کوم وظايف له فرض لمنځونو څخه وروسته منقول دي مثلاً درې واره استغفار، آيت الكرسي، او الباقيات الصالحات ۳۳ واره سبحان الله، ۳۳ واره الحمد لله او ۳۴ واره الله أكبر او يو وار لا إله إلا الله وحده لا شريك له له الملك وله الحمد وهو على كل شيء قدير، دا دې تر سنتو وروسته وايي.

تر کومو لمنځونو وروسته چې سنت نسته لکه د سهار او مازیګر لمونځ، په هغوی کې دي تر سلام وروسته متصلاً الباقیات الصالحات وایي، بیا دي دعاء غواړي. او په دې کې دي اجتماعي هیئت ضروري نه ګڼل کیږي، بلکې د چا چې څه ضرورت وي، هغه دي ولاړ سي او د چا چې زړه وغواړي له امام څخه مخکې دي دعاء شروع کړي او پر هغه دي څه نکیر نه کول کیږي. خو په مدرسه کې د طالبانو د تربیت په خاطر هغوی د دې پابند ګرځول صحیح دي، چې د دې معمولاتو اهمیت د هغو په ذهن کې کښېني... (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

## تر فرض لمانځه وروسته نوافل بل ځای کول

﴿...﴾ وَيُسْتَحَبُّ لِلْإِمَامِ بَعْدَ سَلَامِهِ أَنْ يَتَحَوَّلَ إِلَى يَسَارِهِ لِتَطَوُّعٍ بَعْدَ الْفَرْضِ او مستحب دي د امام لپاره تر سلام ګرځولو وروسته چې واوړي خپل چپه طرف ته د نفلو (سنتو) لپاره له فرضو څخه وروسته (یعني د امام لپاره مستحب دي چې له سلام ګرځولو څخه وروسته د سنتو او نوافلو د اداء کولو لپاره خپل چپه طرف ته ایسته سي).

**لغات:** ﴿يتحول﴾ د تفعل د باب مضارع ده: اوښتل، له یوه ځایه بل ځای ته منتقل کېدل.

﴿تطوع﴾ غیرِ واجب عمل، نفلي عبادت، تَطَوَّعَ يَتَطَوَّعُ تَطَوُّعًا: نفل کول یعني غیرِ مفروضه او غیرِ واجب عبادت کول. کوم چې سنتو وغیره ټولو لره شاملیږي.

**تشریح:** امام چې په کوم ځای کې فرض لمونځ ورکړی وي، له هغه ځایه لیرې کېدل، خپل چپه اړخ ته اوښتل او پر بل ځای سنت او نفل اداء کول مستحب او افضل دي، د دې لپاره چې وروسته راتلونکی لمونځ ګزار د فرضي لمانځه په ګومان سره د امام اقتداء نه وکړي. همدارنګه مقتدیانو لره هم مستحب دي چې پر کوم ځای یې فرضي لمونځ اداء کړی وي، له هغه ځایه دي څه لیرې سي، بل ځای دي سنت او نفل وکړي، لېکن که چیرې شا ته یا مخ ته ځای نه وي، یا نور خلک (مسبوقین) د خپل پاته لمانځه په راګرځولو مشغوله سي، نو د هغو له مخ څخه یا د هغو پر اوړو شا ته اوښتل صحیح نه دي، یا لکه څرنګه چې نن سبا په مدرسو کې طالبان تر فرضي لمانځه وروسته شا ته څغلي او شور جوړوي، نو د انتظام په خاطر دي طالبان پر هغه ځای د سنت اداء کولو پابند وګرځول سي چیرې چې یې فرض اداء کړي وي. نو په داسې صورت کې زما په خیال پر هغه ځای د سنتو او نفلو په اداء کولو کې زیات عافیت دی. والله سبحانه وتعالی أعلم، واستغفر الله العظیم. (انوار الایضاح، مؤلف، حضرت مولانا سید احمد قاسمي صاحب)

## تر فرضي لمانځه وروسته مخ را اړول

﴿۳۴۸﴾ وَأَنْ يَّسْتَقْبِلَ بَعْدَهُ النَّاسَ او (مستحب دي) دا چي مخامخ سي امام تر فرضو وروسته د خلکو وطرف ته (یعني چي له فرضي لمانځه څخه وروسته د خلکو وطرف ته مخ را واړوي).

﴿۳۴۹﴾ وَيَسْتَغْفِرُوْنَ اللهَ او خلک (مقتدیان) دي له الله ﷻ څخه مغفرت وغواړي (استغفار دي ووایي) وَيَقْرَؤُوْنَ آيَةَ الْكُرْسِيِّ وَالْمُعَوِّذَاتِ او آیت کرسي او معوذات (سورة الفلق، سورة الناس) دي ووایي وَيُسَبِّحُوْنَ اللهَ ثَلَاثًا وَّثَلَاثِيْنَ او درو دېرش (۳۳) واره دي سبحان الله ووایي وَيَحْمَدُوْنَهٗ كَذٰلِكَ وَيُكَبِّرُوْنَهٗ كَذٰلِكَ او همدومره (۳۳ واره) دي الحمدلله ووایي او همدومره دي الله اکبر ووایي ثُمَّ يَقُوْلُوْنَ: لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ بیا دي ووایي: "لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وحدهٗ...الخ" (چي د هغه ترجمه ده: نشته له الله ﷻ سوا هیڅ معبود د عبادت لائق، هغه یک تنها دی. هیڅ شریک ورلره نشته. بادشاهي احکومت او تعریفونه هغه لره دي او هغه پر هر څه قدرت لرونکی دی) ثُمَّ يَدْعُوْنَ لِأَنْفُسِهِمْ وَلِلْمُسْلِمِيْنَ رَافِعِيْ أَيْدِيْهِمْ بیا دي دعاء وکړي د خپلو ځانو او مسلمانانو لپاره په داسي حال کي چي لاسونه یې پورته کړي وي ثُمَّ يَمْسَحُوْنَ بِهَا وُجُوْهَهُمْ فِيْ آخِرِهٖ بیا دي تېر کړي (وګرځوي) خپل لاسونه پر خپلو مخانو (د دعاء) په آخر کي.

**تشریح:** یعني تر کومو لمنځونو وروسته چي سنت نشته لکه د سهار او مازیګر لمونځ. نو په هغوی کي دي امام د خلکو وطرف ته خپل مخ راوګرځوي. یا راسته طرف ته دي وګرځي. او مذکوره وظائف (کوم چي په راروان عبارت کي ذکر سوي دي) د امام او مقتدي دواړو لپاره ویل مستحب دي. تر هغه وروسته دي دعاء وغواړي. د دعاء په وخت کي دي دواړه لاسونه تر سینې پوري پورته کړي (په داسي توګه چي د ګوتو څه حصه د مخ په برابري کي راسي. او د دواړو لاسو تر مینځ شلور ګوتي فاصل ساتل پکار دي او دعاء بنه په توجه سره خوښتل پکار دي امراقي الفلاح). امام دي د مقتدیانو لپاره هم دعاء وغواړي او مقتدیان برابره ده خپله دعاء غواړي یا که د امام دعاء اوري نو آمین دي وایي او له دعاء څخه وروسته دي دواړه لاسونه پر مخ تېر کړي. (شفاء الارواح بحواله عمدة الفقه)

## د مختلفو ذکرونو بــيان

ويـستغفرون الله إلخ: په دې عبارت کې تر لمانځه وروسته څو ذکرونه نقل سوي دي، د هغوی يادول پکار دي او تر فرضي لمنځونو وروسته د هغوی ويل پکار دي:

**اول ذکر:** له حضرت ثوبان رضي الله عنه څخه روايت دی چې کله به رسول الله ﷺ له لمانځه څخه فارغ سو او د کور وطرف ته به يې اراده وکړه، نو اول به يې درې واره "استغفر الله" وويله، بيا به يې "اللهم أنت السلام" وويله، بيا به ولاړی. (مسلم شريف ج:۱، ص:۲۱۸)

**دويم ذکر:** د نبي کريم ﷺ فرمان دی چې کوم څوک آية الکرسي ووايي، هغه جنت ته له داخلېدلو څخه هيڅ شی نه سي منع کولای ما سواله مرګ څخه. چې مرګ پُل دی، پر هغه تېرېدل خو لازمي دي جنت ته د تللو لپاره.

**درېيم ذکر:** حضرت عقبه رضي الله عنه فرمايي چې ما ته نبي کريم ﷺ وفرمايل: تر هر فرض لمانځه وروسته چې کوم څوک ۳۳ وار سبحان الله، ۳۳ واره الحمد لله، ۳۳ واره الله أکبر وويله چې دا ۹۹ سوه او د ۱۰۰ د پوره کولو لپاره يې څلورمه کلمه وويله، نو د هغه خطاګانې بخښل کيږي که څه هم د سمندر د ځګ په څېر زياتي وي.

څرنګه چې تر لمانځه وروسته د دعاء د قبلېدلو موقع ده، نو ځکه د خپل ځان او ټولو مسلمانانو لپاره دي دعاء وکړي، او د لاس پورته کولو طريقه په مخکني عبارت کې ذکر سوه.



# بَابُ مَا يُفْسِدُ الصَّلَاةَ

(دا) باب د هغو شیانو (په بیان کې) دی کوم چې لمونځ فاسدوي

**تشریح:** په دې باب کې هغه شیان بیانوي چې په هغوی سره لمونځ فاسدیږي (ماتیږي) او د لمانځه را ګرځول لازمیږي، په عباداتو کې د فاسد او باطل د معنیٰ ترمینځ هیڅ فرق نشته. کومه معنیٰ چې د فاسد ده، هاغه د باطل ده، خو په معاملاتو کې د فاسد او باطل په معنیٰ کې فرق دی چې تفصیل یې پر خپل ځای واضح کړی سوی دی.

| |
|---|
| وَهُوَ ثَمَانِيَةٌ وَسِتُّونَ شَيْئًا او هغه (کوم چې لمونځ فاسدوي) اته شپېته (۶۸) شیان دي. |

## په لمانځه کې خبرې کول

| |
|---|
| ﴿۴۸۰﴾ اَلْكَلِمَةُ وَلَوْ سَهْوًا أَوْ خَطَأً (۱) خبره کول که څه هم په هېره یا په غلطي سره وي. |

**تشریح:** که په لمانځه کې دننه یو خارجي کلمه له ژبې څخه ووځي، برابره ده په هېري سره وي او که په غلطي سره وي (یعني اراده خو یې د قرائت یا ذکر وي، لیکن په غلطي سره بله کلمه اداء کړي مثلاً د یاَیها الناس پر ځای یازیدووایي) او برابره ده هغه کلمه معنیٰ لري او که بې معنیٰ (مهمله) کلمه وي، په هر صورت کې لمونځ فاسدیږي، په دې شرط چې دا کلام د قعدهٔ اخیره له تشهد څخه مخکې تر خوله وتلی وي.

## په لمانځه کې په انساني کلام سره دعاء غوښتل

| |
|---|
| ﴿۴۸۱﴾ وَالدُّعَاءُ بِمَا يُشْبِهُ كَلَامَنَا (۲) او دعاء کول په داسې الفاظو سره کوم چې مشابه وي زموږ د خبرو سره. |

**تشریح:** د لمانځه په دوران کې داسې دعاء وېل کوم چې د بندګانو د کلام سره مشابه وي یعنې له بندګانو څخه د هغه غوښتل ناممکن نه وي. نو په هغه سره لمونځ فاسدیږي. د دې تفصیل دا دی چې کومه دعاء چې په قرآن یا حدیث کې راغلې وي، د هغه په وېلو سره لمونځ نه فاسدیږي. مثلاً "ربنا ظلمنا انفسنا الخ" او داسې نور. او کومه دعاء چې په قرآن یا حدیث کې نه وي راغلې. نو کتل کیږي به چې که هغه داسې دعاء وي چې له بندګانو څخه د هغه غوښتل ناممکن وي. نو په هغه سره هم

لمونځ نه فاسديږي. مثلاً مغفرت يا عافيت يا رزق غوښتل يعني داسي ويل "اللّهم اغفرلي"، "اللّهم عافني"، "اللّهم ارزقني" يا دا دعاء د نورو لپاره وکړي، نو بيا هم لمونځ نه فاسديږي. مثلاً داسي ووايي "اللّهم اغفر لعمّي"، "اللّهم اغفرلأمّي" يا "اللّهم ارزقني الحج"، دغه ټوله داسي شيان دي چي له بندګانو څخه د دوی طلب کول ناممکن دي، خو که د رزق سره مال او داسي نور دنياوي شيان هم ذکر کړي، نو لمونځ فاسديږي؛ ځکه چي دا د رزق اسباب دي چي له بندګانو څخه د هغوی غوښتل نا ممکن نه دي، مثلاً: "اللّهم ارزقني مالاً" ووايي. او که هغه داسي دعاء وي چي له بندګانو څخه يې غوښتل ناممکن نه وي، نو په هغه سره لمونځ فاسديږي. مثلاً داسي ويل: "اللّهم أطعمني" يا "اللّهم اقض ديني" يا "اللّهم زوّجني فلانة" او داسي نور، نو لمونځ فاسديږي. (عمدة الفقه)

## په لمانځه کي سلام اچول

﴿۳۸۲﴾ وَالسَّلَامُ بِنِيَّةِ التَّحِيَّةِ وَلَوْ سَاهِيًا (۳) او سلام کول په نيت سره د سلام اچولو (چي يو انسان ته سلام ووايي) که څه هم په هېره وي.

**اللغات:** ﴿التحية﴾ سلام اچول (سلام کول)، يو چا ته داسي ويل: پر تا دي سلامتيا وي.

**تشريح:** يعني که لمونځ ګزار يو چا ته د سلام کولو په نيت سره "السلام عليکم" ووايي، نو که څه هم دا په هېره وي، لمونځ يې فاسديږي.

**يادونه:** بنية التحية: دا قيد يې ځکه لګولی دی چي که څوک له لمانځه څخه د وتلو په نيت سلام وکړي يعني په دې نيت سره "السلام عليکم" ووايي چي له لمانځه څخه ووځم، نو دا که په آخره ناسته (قعدهٔ اخيره) کي له تشهد څخه وروسته وکړي، نو لمونځ نه فاسديږي او که مخکي يې وکړي، نو لمونځ يې فاسديږي.

## په لمانځه کي د سلام جواب ورکول

﴿۳۸۳﴾ وَرَدُّ السَّلَامِ بِلِسَانِهِ (۴) او د سلام جواب ورکول په ژبي سره.

**تشريح:** که د لمانځه په دوران کي د يو چا د سلام جواب ورکړي، برابره ده عمداً وي او که سهواً وي، په دواړو صورتونو کي لمونځ فاسديږي.

## په لمانځه کي مصافحه کول

﴿۲۸۴﴾ أَوْ بِالْمُصَافَحَةِ (۵) یا (د سلام جواب ورکول) په مصافحه سره.

**تشریح:** همدارنګه که د سلام د جواب ورکولو په نیت سره مصافحه وکړي، نو هم لمونځ فاسدیږي؛ ځکه چي مصافحه هم د کلام کولو په درجه کي ده.

## په لمانځه کي عملِ کثیر کول

﴿۲۸۵﴾ وَالْعَمَلُ الْكَثِيْرُ (۶) او زیات عمل (زیاته لاسوهنه).

**تشریح:** که د لمانځه په دوران کي داسي حرکت وکړي چي لیدونکی دا ګومان وکړي چي دا کس د لمانځه په حالت کي نه دی (همدې ته عمل کثیر وایي) مثلاً په لمانځه کي جست وغورځیږي، یا خولۍ (توپۍ) لیري کړي او په دواړو لاسونو سره سر وګروي، نو لمونځ یې فاسدیږي، او که معمولي حرکت وکړي، مثلاً په یوه لاس سره سره وګروي، یا لمن سیده کړي، یا مثلاً په یوه لاس سره موبایل راوکاږي او بټن یې بنده کړي، نو لمونځ یې نه فاسدیږي، خو کله چي یو قلیل عمل په یوه رکن کي درې واره وکړل سي، نو هغه هم د کثیر په حکم سره ګرځي او په هغه سره لمونځ فاسدیږي. لهذا که په یوه رکن کي درې واره لاس پورته کړي او سر وګروي، نو په دې سره لمونځ فاسدیږي. (مراقی الفلاح مع الطحطاوی ص: ۱۷۷، حلبي کبیر ص: ۴۴۲، عمدة الفقه)

## په لمانځه کي سینه له قبلې څخه اړول

﴿۲۸۶﴾ وَتَحْوِيْلُ الصَّدْرِ عَنِ الْقِبْلَةِ (۷) او د سینې اړول له قبلې څخه.

**لغات:** ﴿صدر﴾ سینه، جمع: صُدُوْر.

**تشریح:** که د لمانځه په دوران کي بېله عذره خپله سینه په پوره توګه له قبلې څخه واړوي (یعني سینه پوره د شمال وطرف ته یا د جنوب وطرف ته سي)، نو لمونځ یې فاسدیږي او که په هېره بېله عذره د لمونځ ګزار سینه واړوي، نو په دې کي تفصیل دا دی چي که بېرته سمدستي مخ سیده کړي، نو لمونځ یې نه فاسدیږي، او که د یوه رکن یعني د دریو تسبیحاتو د ویلو په اندازه یې سینه اوښتې وي، نو لمونځ فاسدیږي، لېکن دوه حالتونه له دې څخه مستثنیٰ دي: یو دا چي د لمانځه په دوران کي بې اودسي واقع سي او سړی د طهارت لپاره ولاړ سي، دویم دا چي په صلاة الخوف کي حرکت وکړي، نو دغه دوه حالتونه د لمانځه فاسدونکي نه دي. (مراقی الفلاح ص: ۱۷۷)

## د لمانځه په دوران کې یو شی خوړل

﴿۲۸۷﴾ وَ أَكْلُ شَيْءٍ مِنْ خَارِجِ فَمِهِ (۸) او یو شی خوړل له خپلې خولې څخه دباندې (یعنې چې لمونځ ګزار له دباندې څخه یو شی وخوري) وَلَوْ قَلَّ که څه هم هغه شی لږ وي.

**لغات:** ﴿قلَّ﴾ د ضرب له بابه د ماضي صیغه ده، مصدر: قِلَّةٌ: کمېدل، لږېدل (لږ کېدل).

**تشریح:** د لمانځه په دوران کې که یو شی وخوري، نو لمونځ یې فاسدېږي، برابره ده عمداً وي او که په هېره وي، لږ وي او که ډېر دي، تر دې چې که له دباندې څخه یوه کونجته په خوله کې واچوي او هغه تېره کړي، نو هم یې لمونځ فاسدېږي.

## په غاښو کې بند شی خوړل

﴿۲۸۸﴾ وَأَكْلُ مَا بَيْنَ أَسْنَانِهِ وَهُوَ قَدْرُ الْحِمَّصَةِ (۹) او هغه شی خوړل کوم چې د ده د غاښو په مینځ کې وي او هغه د نخود په اندازه وي.

**لغات:** ﴿الحِمَّصَة﴾ او الحِمِّصَة د "مُشدد میم" په فتحه او کسره سره: یو نخود، جمع: الحِمَّص.

**تشریح:** که د غاښو په مینځ کې یو شی بند پاته سوی وي او هغه د نخود په اندازه وي، نو د لمانځه په دوران کې د هغه په تېرولو سره لمونځ فاسدېږي، خو که هغه د نخود له مقدار څخه کم وي نو لمونځ نه فاسدېږي خو مکروه کیږي، او که هغه د نخود له مقدار څخه کم وي خو دومره کلک وي چې په غاښو سره وژول سي او بیا تېر کړی سي، نو لمونځ فاسدېږي، او که یو معمولي شی وي کوم چې د ناړو (لاړو) سره تېر سي، نو لمونځ نه فاسدېږي. (مراقی الفلاح، شفاء الارواح)

## د لمانځه په دوران کې یو شی چیښل

﴿۲۸۹﴾ وَ شُرْبُهُ (۱۰) او د لمونځ ګزار چیښل (یعني داوبو وغیره په چیښلو سره هم لمونځ فاسدېږي).

**تشریح:** په لمانځه کې د یو شي چیښل هم لمونځ فاسدوي، تر دې چې که څوک د لمانځه په دوران کې د آسمان وطرف ته مخ کړي او د باران یو څاڅکی یې خولې ته ولوېږي او نس ته ورسیږي، نو لمونځ فاسدېږي.

## بېله عذره ټوخل او غاړه تازه کول

﴿۲۹۰﴾ وَالتَّنَحْنُحُ بِلَا عُذْرٍ (۱۱) او بېله عذره غاړه تازه کول (چي له هغه څخه داح اح يا داسي بل حرف آواز پيدا سي).

**لغات:** ﴿التنحنح﴾ د تَفَعْلُل د باب مصدر دی: د دې لفظ دوې معناوي نقل سوي دي: ① د اح اح يعني د ټوخي غوندي آواز کول (ټوخل اټوخېدل)، ② غاړه تازه کول. (معجم لغة الفقهاء)

**تشريح:** که څوک په لمانځه کي بېله عذره وټوخي يا غاړه تازه وکړي او له هغه څخه دېو حرف آواز پيدا سي، مثلاً اُح ووايي، نو لمونځ يې فاسديږي، خو که د بلغم او ګروړيي د راتللو په وجه قرائت کول مشکل سي او د غاړي د صفا کولو لپاره غاړه تازه کړي، يا د آواز د ښه کولو لپاره غاړه تازه کړي، يا چا ته بې اختياره ټوخي راسي او داسي نور، نو په لمانځه کي هيڅ خرابي نه راځي.

## په لمانځه کي اُف، اُف کول يا پوکل

﴿۲۹۱﴾ وَالتَّأْفِيْفُ (۱۲) او اُف اُف کول.

**تشريح:** که په لمانځه کي د افسوس وغيره په وجه د اُف، يا تف، يا پُو آواز له خولې څخه ووځي. نو لمونځ يې فاسديږي.

## په لمانځه کي زګېروی کول يا آه وغيره کول

﴿۲۹۲﴾ وَالْأَنِيْنُ وَالتَّأَوُّهُ (۱۳) او زګېروی کول (۱۴) او آه، آه (يا اوه، اوه) کول.

**لغات:** ﴿أنين﴾ د ضرب د باب مصدر دی، اَنَّ يَئِنُّ اَنًا وَاَنِيْنًا: زګېروی کول، اه اه کول. ﴿تَأَوَّهَ﴾ د تفعل ماضي ده: اوه اوه يا آه آه کول، دردمند کېدل.

**تشريح:** ، که لمونځ ګزار د مصيبت يا درد په وجه آه، آه، يا اوه، اوه، يا اُف وکړي، يا د مصيبت او درد په وجه وژاړي او له هغه څخه دوه حروف يا تر دې زيات حروف پيدا سي، نو لمونځ يې فاسديږي.

## په لمانځه کي ژړل

﴿۲۹۳﴾ وَارْتِفَاعُ بُكَائِهٖ مِنْ وَجَعٍ (۱۵) او د لمونځ ګزار د ژړا آواز پورته کېدل له درد څخه (د درد په وجه) أَوْ مُصِيْبَةٍ (۱۶) يا (د ژړا آواز پورته کېدل) له مصيبت څخه لَا مِنْ ذِكْرِ جَنَّةٍ أَوْ نَارٍ نه د جنت يا دوږخ له ياده څخه.

**لغات:** ﴿وجع﴾ درد، خوږ، رنځ، ناروغي، جمع: أَوْجَاع.

**تشريح:** په لمانځه کي د څه تکليف په وجه يا د غم او مصيبت په وجه قصداً ژړل لمونځ فاسدوي. خو که د سخت تکليف په وجه بې اختياره آواز ووځي، يا د جنت او جهنم له ياده څخه وژاړي يا آه يا اوه وکړي، نو لمونځ يې نه فاسديږي (لدلالتها على الخشوع).

## په "يرحمک الله" سره د جواب ورکولو حکم

﴿۲۹۴﴾ وَتَشْمِيتُ عَاطِسٍ بِيَرْحَمُكَ اللهُ (۱۷) او (همدارنګه لمونځ فاسدوي) جواب ورکول (او دعاء کول) نوږي کونکي (نوږونکي) ته په (لفظ د) يرحمک الله سره (چي الله ﷻ دي پر تا رحم وکړي).

**تشريح:** که چا ته نوږي (انتروسی) راسي او لمونځ ګزار په لمانځه کي دنه هغه ته "يرحمک الله" ووايي، نو لمونځ يې فاسديږي، او که لمونځ ګزار دا د خپل ځان لپاره ووايي، نو لمونځ يې نه فاسديږي، همدارنګه که سامع يا نوږی کونکی "الحمد لله" ووايي، نو لمونځ يې نه فاسديږي. (طحطاوي)

**يادونه:** دلته په دې عبارت "تشميت عاطِس" کي د مصدر اضافت د خپل مفعول وطرف ته دی "أي خطابُ المصلّي العاطسَ"، او په تشميت کي دوه لغات نقل سوي دي: اول په شين سره او دويم په سين سره، خو په شين سره افصح دی. (طحطاوي على مراقي الفلاح)

## د پوښتني يا د بد خبر يا تعجب والا خبر په جواب کي د ذکر کلمات ويل

﴿۲۹۵﴾ وَجَوَابُ مُسْتَفْهِمٍ (۱۸) او جواب ورکول و هغه کس ته کوم چي پوښتنه کونکی وي عَنْ نِدٍّ د الله تعالیٰ د شريک په هکله (يعني چي له لمونځ ګزار څخه پوښتنه وکړي چي آيا الله لره شريک سته او که نه؟) بِلَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ په لا إله إلا الله سره (جواب ورکول. يعني چي لمونځ ګزار هغه ته په لا إله إلا الله سره جواب ورکړي، نو لمونځ يې فاسديږي) وَخَبَرِ سُوْءٍ بِالْاِسْتِرْجَاعِ (۱۹) او (جواب ورکول) د بد خبر په إنا لله وإنا إليه راجعون سره وَسَارٍّ بِالْحَمْدِ لِلّٰهِ (۲۰) او (جواب ورکول) د ښه خبر په الحمد لله سره وَعَجَبٍ بِلَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ أَوْ سُبْحَانَ اللهِ (۲۱) او (جواب ورکول) د تعجب ناکه خبر په لا إله إلا الله يا سبحان الله سره.

لغات: ﴿مستفهِم﴾ د استفعال له بابه اسم فاعل دی: (له بل څاڅخه) د فهم طلب کونکی (یا په بله وینا له
بل څاڅخه دیو شي پوښتونکی)، ﴿نِدٌّ﴾ همسر، نظیر، مثل، جمع: أنداد، ومنه قوله تعالیٰ "فلا تجعلوا
لله أندادًا"، ﴿استرجاع﴾ د استفعال د باب مصدر دی: د دې لفظ له معناوو څخه یوه معنیٰ ده: إنا لله
وإنا إلیه راجعون ویل.

تشریح: که د لمانځه په دوران کې له لمونځ گزار څخه یو چا (مثلا مشرک) پوښتنه وکړه چې آیا الله
تعالیٰ لره شریک سته. نو لمونځ گزار د هغه په جواب کې "لا إله إلا الله" وویله. نو لمونځ یې
فاسدیږي.

خبر سؤ بالاسترجاع: یعني که لمونځ گزار یو بد خبر واوري مثلاً دیو چا د مرګ خبر واوري او په
لمانځه کې دننه "إنا لله وإنا إلیه راجعون" ووایي، نو لمونځ یې فاسدیږي.

سارّ بالحمد لله: یعني که لمونځ گزار د خوښۍ خبر واوري مثلاً څوک د ځوی د پیدایښت زیری
ورکړي چې ځوی دې پیدا سو او لمونځ گزار په لمانځه کې "الحمد لله" ووایي، نو لمونځ یې
فاسدیږي.

تعجب إلخ: همدارنګه که په لمانځه کې د تعجب خبره واوري او د هغه په جواب کې "لا إله إلا الله"
ووایي، یا "سبحان الله" ووایي، نو هم یې لمونځ فاسدیږي.

## د قرآن آیت وغیره د جواب پر ځای استعمالول

﴿۲۹۶﴾ وَكُلُّ شَيْءٍ قُصِدَ بِهِ الْجَوَابُ كَيَا يَحْيٰى خُذِ الْكِتَابَ (۲۲) او هر داسې
شی (وینا) چې په هغه سره د جواب ورکولو اراده سوې وي، لکه يَا يَحْيٰى خُذِ الْكِتَابَ (اې یحیی!
واخله کتاب).

تشریح: د عبارت حاصل دا دی چې په لمانځه کې په کوم شي سره هم د جواب ورکولو قصد وسي،
نو په هغه سره لمونځ فاسدیږي، مثلاً د "یحیی" په نامه یو چا له لمونځ گزار څخه دیو کتاب غوښتنه
وکړه او لمونځ گزار په جواب کې دا آیت ووایی "یا یحیٰی خذ الکتاب" (اې یحیی: کتاب واخله)، یا
مثلاً یو چا وخوني (کمرې) ته د راتللو اجازه وغوښتله، او لمونځ گزار دا آیت ووایی "ادخلوها

بسلامٍ آمنین" او داسې نور، نو دغه که څه هم قرآني آیتونه دي خو د جواب او خبرو پر ځای استعمال سوي دي، نو ځکه په دې سره لمونځ فاسدیږي.

## تیمم کونکي لمونځ گزار ته اوبه حاصلبدل

﴿۲۹۷﴾ وَ رُؤْيَةُ مُتَيَمِّمٍ مَاءً (۲۳) او د تیمم کونکي اوبه لیدل (چې تیمم وهونکی د لمانځه په دوران کي اوبه ووېني).

**تشریح**: که یو چا د اوبو د نشتوالي په وجه، یا د یو عذر په وجه په تیمم سره لمونځ شروع کړی وي، که چیري هغه د لمانځه په دوران کي اوبه ووېني او د هغوی په استعمالولو باندي قادر وي، یا هغه عذر یې ختم سي، نو لمونځ یې فاسدیږي. (مراقی الفلاح ص: ۱۷۸، ۱۷۹، کتاب المسائل ص: ۳٦۳)

## د لمانځه په دوران کي د مسحي موده پوره کېدل یا موزه ختل

﴿۲۹۸﴾ وَتَمَامُ مُدَّةِ مَاسِحِ الْخُفِّ (۲۴) او موده ختمېدل پر موزو د مسح کونکي کس وَ نَزْعُهُ (۲۵) او د موزې ختل.

**تشریح**: که د لمانځه په دوران کي د موزو او جرموقینو د مسح موده پوره سي، یا په معمولي حرکت سره یوه موزه وخېږي، نو لمونځ فاسدیږي، په دې شرط چې هلته اوبه ترلاسه کیږي او د تیمم د جواز څه عذر موجود نه وي. (مراقی الفلاح ص، ۱۷۹، در مختار ج، ۲، ص، ۳٦۱)

## امي کس ته د لمانځه په دوران کي یو آیت یادېدل

﴿۲۹۹﴾ وَتَعَلُّمُ الْأُمِّيِّ آيَةً (۲٦) او د امي یو آیت زده کول (چې امي کس د لمانځه په دوران کي یو آیت زده کړي).

**تشریح**: امي هغه کس دی چې د قرآن شریف یو آیت یې هم زده او یاد نه وي، د داسې کس لپاره جائز دي چې تر څو سورتونه یاد نه کړي، نو هسې بغیر له څه ویلو دي نیت تړي او د لمانځه په تصور سره دي درېږي او د قرائت په اندازه له درېدلو څخه وروسته دي رکوع، سجده وغیره کوي، لېکن پر هغه قرآن زده کول او سورة الفاتحه او نور سورتونه یادول ضروري دي، کنې د لا پروایي کولو په صورت کي گنهکاره کیږي، کله چې یو آیت هم زده کړي، نو هغه دې په لمانځه کي وایي.

**مسئله**: یا ده چې کله داسې کس ته د لمانځه په دوران کي یو آیت زده سي برابره ده له یو چا څخه د اورېدلو په وجه وي، یا هېر سوی آیت ورته یاد سي، نو په دې سره د هغه لمونځ فاسدیږي. (البحر الرائق ج ۱، ص، ۳۰۷، مراقی الفلاح ص، ۱۷۹)

## په لمانځه لمونځ کونکي ته جامه حاصلېدل

﴿۵۰۰﴾ وَوِجْدَانُ الْعَارِیْ سَاتِرًا (۲۷) او دلغ کس عورت پټونکې کپړه پیدا کول (چې لغ کس دلمانځه په دوران کې داسي شی او کپړه ووینې چې هغه د ده عورت پټولای سي).

**لغات:** ﴿ساتر﴾ د نصر له بابه اسم فاعل دی: پټونکی.

**تشریح:** که یو څوک د جامې د نشتوالي په وجه په لڅه لمونځ شروع کړي او بیا د لمانځه په دوران کې هغه ته د عورت پټولو په اندازه کپړه یا داسې بل شی حاصل سي، نو د هغه لمونځ فاسدیږي. اوس به هغه کپړه اغوندي او له سره به لمونځ کوي. (کتاب المسائل ص: ۳۶۳، مراقی الفلاح ص: ۱۷۹)

## په رکوع او سجده باندي قادر کېدل

﴿۵۰۱﴾ وَقُدْرَةُ الْمُوْمِیْ عَلَى الرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ (۲۸) او په اشاره سره د لمونځ کونکي کس په رکوع او سجده باندي قادر کېدل.

**لغات:** ﴿مؤمی﴾ د افعال له بابه اسم فاعل دی: اشاره کونکی.

**تشریح:** که یو څوک د مرض یا کمزورۍ په وجه په اشاره سره رکوع او سجده کوي. بیا هغه د لمانځه په دوران کې په رکوع او سجده کولو باندي قادر سي، نو د هغه لمونځ فاسدیږي، اوس به له نوي سره لمونځ کوي. (طحطاوي ص: ۱۷۹)

## صاحب الترتیب ته قضاء سوی لمونځ یادېدل

﴿۵۰۲﴾ وَتَذَكُّرُ فَائِتَةٍ لِذِیْ تَرْتِیْبٍ (۲۹) او صاحبِ ترتیب کس ته یو فوت سوی (قضائي) لمونځ یادېدل.

**لغات:** ﴿فائتة﴾ فوت سوی لمونځ، پاته سوی لمونځ (کوم چې په خپل وخت کې نه وي اداء سوی)، جمع: فوائت.

**تشریح:** که یو څوک صاحبُ الترتیب وي، یعني د هغه پر ذمه له مخکې څخه قضایي لمونځ نه وي ارنا ببره له هغه څخه یو لمونځ قضاء سي خو هغه نه را وګرځوي او په هېره د وقتي لمانځه نیت وتړي (یعني د هغه وخت خپل لمونځ شروع کړي)، بیا د لمانځه په دوران کې ورته یاده سي چې پر ما خو د تېر لمانځه قضاء هم سته، نو د هغه لمونځ فاسدیږي، اوس به اول قضایي لمونځ اداء کوي. تر دې لا وروسته به وقتي لمونځ اداء کوي. خو دا فساد موقوف دی، یعني که چیري د آینده پنځو لمنځونو په وخت کې دننه هغه دا قضایي لمونځ نه را وګرځوي (بلکې د پنځو لمنځونو تر وخت تېرېدلو وروسته یې را وګرځوي)، نو په دې منځ کې سوي لمنځونه ټول له صحیح کیږي، او که د پنځو لمنځونو په وخت

کې دننه هغه دا مخکينی قضايي لمونځ را وګرځوي، نو دغه سوي لمنځونه نفل ګرځي او هغه به بالترتيب ټوله لمونځونه اداء کوي. (مراقی الفلاح مع الطحطاوي ص: ۱۷۹، کتاب المسائل ص: ۳۶۴، بحوالة انوار الايضاح)

## نا اهل کس نائب جوړول

| |
|---|
| ﴿۵۰۲﴾ وَ اسْتِخْلَافُ مَنْ لَّا يَصْلُحُ إِمَامًا (۳۰) او داسي کس خپل خليفه (نائب) جوړول کوم چي دامام کېدلو صلاحيت نه لري. |

**لغات:** ﴿استخلاف﴾ داستفعال دباب مصدر دی: خپل خليفه (نائب) جوړول، قائم مقام جوړول، نائب ټاکل.

**تشريح:** اولاً تاسي په دې پوه سئ! چي که دلمانځه په دوران کي دامام اودس مات سي، نو هغه دي شاته ولاړ سي او يو بل کس دي پر خپل ځای ودروي، هغه کس ته خليفه او نائب ويل کيږي.

صورت د مسئلې دا دی چي که دلمانځه په دوران کي امام ته بې اودسي لاحق سي او هغه داسي کس خپل نائب جوړ کړي کوم چي دنورو مقتديانو لپاره نا اهل وي، مثلاً بالکل امي کس، يا معذوره، يا نابالغه، نو په دې سره د ټولو خلکو لمونځ فاسديږي او له نوي سره به لمونځ کول کيږي. (مراقی الفلاح ص: ۸۰ کتاب المسائل ص: ۳۶۵)

## د لمانځه په دوران کي وخت وتل

| |
|---|
| ﴿۵۰۳﴾ وَ طُلُوْعُ الشَّمْسِ فِي الْفَجْرِ (۳۱) او دسهار په لمانځه کي لمر راختل وَزَوَالُهَا فِي الْعِيْدَيْنِ (۳۲) او داخترونو په لمانځه کي دلمر زوال کېدل وَ دُخُوْلُ وَقْتِ الْعَصْرِ فِي الْجُمُعَةِ (۳۳) او دجمعې په لمانځه کي دمازيګر وخت داخلېدل. |

**تشريح:** که څوک دسهار لمونځ په داسي وخت کي شروع کړي چي لمر راختلو ته لږ وخت پاته وي او دلمانځه په دوران کي لمر راوخيږي، نو دهغه لمونځ فاسديږي.

همدارنګه که داختر لمونځ په داسي وخت کي شروع کړي چي لمر زوال ته نژدې وي او د لمانځه په دوران کي لمر زوال سي، نو لمونځ فاسديږي؛ ځکه داختر دلمانځه وخت تر زوال پوري دی.

همدارنګه که دجمعې لمونځ په داسي وخت کي شروع کړي چي دلمانځه په دوران کي د مازيګر وخت داخل سي، نو دجمعې لمونځ فاسديږي.

## د لمانځه په دوران کي زخم جوړېدل او پټۍ لوېدل

﴿۵۰۵﴾ وَسُقُوطُ الْجَبِيْرَةِ عَنْ بُرْءٍ (۳۴) او پټۍ ایله کېدل (د زخم) له جوړېدو څخه.

لغات: ﴿جبیرة﴾ پټۍ، په اصل کي هغه پلستر وغیره ته وایي کوم چي پر مات هډوکي لګول کېږي، جمع: جَبَائِر (معجم الوسیط، معجم لغة الفقهاء)، ﴿بُرْء﴾ د سمع او فتح له بابه مصدر دی: روغېدل (جوړېدل)، ښه کېدل، زخم یا مرض ختمېدل.

تشریح: که چا پر زخم پټۍ تړلې وي چي پر هغه یې مسح کړې وي او د لمانځه په دوران کي هغه زخم جوړ سي چي د هغه په وجه پټۍ ولوېږي، نو په دې سره لمونځ فاسدېږي، او که پټۍ ولوېږي خو زخم نه وي جوړ سوی، نو لمونځ نه فاسدېږي.

## د معذوره عذر ختمېدل

﴿۵۰۶﴾ وَزَوَالُ عُذْرِ الْمَعْذُوْرِ (۳۵) او د معذوره کس عذر ختمېدل.

تشریح: که یو څوک شرعاً معذوره وي او د لمانځه په دوران کي د هغه عذر ختم سي، نو د داسي کس حکم موقوف پاتېږي، په دې توګه چي که د هغه عذر د را روان لمانځه تر کامل وخته پوري ختم وي، نو د هغه لمونځ فاسدېږي، مثلاً یو کس د سلس بول په عذر مبتلا وي او هغه د ماپښین لمونځ شروع کړي او د لمانځه په دوران کي دا عذر ختم سي یعني د متیازو څاڅکي راتلل یې بند سي، نو اوس که دا عذر د مازیګر د لمانځه تر وخته پوري یعني تر لمر لوېدو پوري ختم (بند) وي، نو لمونځ یې فاسدېږي او له نوي سره به د هغه قضاء راوړي او که د را روان لمانځه په وخت کي دننه بیا هغه عذر را وګرځېږي، نو دې ته د عذر ختمېدل نه وایي او لمونځ یې نه فاسدېږي، بلکي هغه لمونځ به صحیح کېږي. (طحطاوي ۱۸۰ بتصرف)

## د لمانځه په دوران کي بې اودسه کېدل

﴿۵۰۷﴾ وَالْحَدَثُ عَمَدًا (۳۶) او بې اودسه کېدل قصداً (قصداً اودس ماتول).

تشریح: که د لمانځه په دوران کي څوک قصداً اودس مات کړي، یا جنابت ورته پېښ سي، نو لمونځ یې فاسدېږي، لېکن که خود بخوده ناڅاپه یې اودس مات سي، نو تر اودس کولو وروسته پر مخکینې لمانځه بناء کولای سي. (مراقي الفلاح ص: ۱۸۰)

﴿۵۰۸﴾ أَوْ بِصُنْعِ غَيْرِهِ (۳۷) يا د بل چا په فعل سره (بې اودسه کېدل).

**تشريح**: مثلاً يو څوک لمونځ گزار په تېره شي ووهي چي په هغه سره يې وربنه ووځي. نو لمونځ يې فاسديږي او له نوي سره لمونځ کول ضروري دي، پر مخکني لمانځه د بناء اجازه نسته.

## د لمانځه په دوران کي بې هوښه يا مجنون کېدل

﴿۵۰۹﴾ وَالْإِغْمَاءُ وَالْجُنُوْنُ (۳۸) او بې هوښه کېدل (۳۹) او لېوني کېدل.

**تشريح**: که څوک د لمانځه په دوران کي بې هوښه سي، يا يې دماغ کار پرېږدي او لېوني سي، نو په دې دواړو صورتونو کي هم لمونځ فاسديږي.

## د لمانځه په دوران کي جنابت يا احتلام پېښېدل

﴿۵۱۰﴾ وَالْجَنَابَةُ بِنَظَرٍ أَوِ احْتِلَامٍ (۴۰) او جنب کېدل د نظر (کتلو) په وجه (۴۱) يا (جنب کېدل) د احتلام (خوب ليدلو اشيطان خطا ايستلو) په وجه.

**تشريح**: که د لمانځه په دوران کي چا ته جنابت پېښ سي مثلاً پر يوه ښکلې ښځه يې نظر پرېوځي او انزال سي يا هسي بغير له نظره د يو ښځي په باره کي د فکر کولو په وجه انزال سي، يا په لمانځه کي د خوب جټکه باندي راسي او خوب داسي ډول وي چي په هغه سره لمونځ نه ماتيږي يعني له مسنونه هيئت څخه بدل نه وي بيا په خوب کي احتلام سي، نو په دې صورتونو کي يې هم لمونځ فاسديږي. (طحطاوی ص: ۱۸۰)

## ښځه د سړي راسته يا څېه طرف ته دريدل

﴿۵۱۱﴾ وَمُحَاذَاةُ الْمُشْتَهَاةِ لِمُصَلٍّ صَلٰوةً مُطْلَقَةً مُشْتَرَكَةً تَحْرِيْمَةً (۴۲) او د قابلِ شهوت ښځي برابري (يعني دارنه څنگ ته دريدل) په مطلق لمانځه کي (يعني په کامل لمانځه کي چي رکوع او سجده لري) کوم چي د تحريمه په اعتبار سره مشترک وي (يعني يو لمونځ وي) فِيْ مَكَانٍ مُتَّحِدٍ بِلَا حَائِلٍ په داسي ځای کي کوم چي متحد وي بغير له څه حائل څخه (يعني چي د سړي او ښځي په مينځ کي څه حائل او پرده نه وي) وَنَوَىٰ إِمَامَتَهَا او امام د هغه ښځي د امامت نيت (هم) کړی وي.

**لغات**: ﴿محاذاة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی، مقابل کېدل، په برابري (څنگ) کي راتلل، برابرېدل.

- ﴿المشتهاة﴾ د افتعال له بابه د واحد مؤنث اسم مفعول صيغه ده، د اشتهاء قابله ښځه چي د سړي اشتهاء ورته کېدلای سي، مرغوبه ښځه، مراد څني داسي ښځه ده چي د هغې په ليدلو سره د سړي

شهوت پور ته کیږي او د جماع شوق یې ور ته کیږي، قال صاحب المعجم: المرأة اللتي إذا رآها الرجال الذي یشتهي جماعها بقطع النظر عن عمرها، ولا یکون ذلك في أقل من تسع سنین في العادة. (معجم لغة الفقهاء)

**تشریح**: که د لمانځه په دوران کي یو ښځه د سړي (نارینه) راسته یا چپه طرف ته یا د سړي مخ ته برابر ودریږي او لاندیني شرطونه موجود سي، نو د سړي لمونځ فاسدیږي: ① هغه ښځه مشتهاة (د شهوت قابله) وي چي شهوت ور ته کېدلای سي، یا په بله وینا د جماع قابله وي که څه هم نابالغه وي. عمر لره اعتبار نسته بلکي د جسم جوړ لره اعتبار دی، لهذا که له (۹) کالو څخه د کم عمر وي لېکن د جماع قابله وي، نو بیا هم د سړي لمونځ فاسدیږي، او برابره ده هغه ښځه اوس مشتهاة وي یا مخکي مشتهاة یعني سپین سرې ښځه وي، ② د سړي پنډۍ، بجلکي یا د بدن هسي یو اندام د ښځي د یو اندام په برابرۍ کي راځي، ③ دغه اشتراک په مطلق (کامل) لمانځه کي وي یعني د جنازې د لمانځه دا حکم نه دی، ④ سړی او ښځه دواړه د یوه امام په قتداء کي لمونځ کوي، ⑤ د سړي او ښځي د لمانځه ځمکه د سطح په اعتبار سره برابره وي، یعني که په سطح کي د انسان د قد په اندازه فرق وي، نو د محاذات حکم نه سته (یعني که له دوی څخه یو دومره لوړ وي لکه د انسان قد چي محاذات نه راځي. یا مثلاً د مسجد پر چت ښځي وي او لاندي سړي وي، نو د سړیو لمونځ نه فاسدیږي؛ ځکه په دواړو کي اتحاد مکان نسته). ⑥ د دواړو په مینځ کي یو شی حائل نه وي مثلاً ستون (پایه، پیلر) یا داسي بل شی، یا د دواړو په مینځ کي د یو سړي په اندازه فاصله نه وي، ⑦ امام د هغه ښځي د امامت نیت هم کړی وي، ⑧ د سړي او ښځي محاذات کم از کم د یوه رکن (یعني د درېو تسبیحاتو د ویلو) په اندازه باقي پاته سوی وي. ⑨ سړي هغه ښځي ته د نه درېدلو اشاره نه وي کړي، که چیري اشاره یې ور ته کړې وي چي دلته مه درېږه! بیا هم ښځه د ده په برابري کي درېدلې وي، نو په دې صورت کي د سړي لمونځ نه فاسدیږي. بلکي د ښځي لمونځ فاسدیږي. (طحطاوي ص، ۱۸۰، ۱۸۱، کتاب المسائل ص، ۳۶۶)



## په مسجد حرام او مسجد نبوي کي به لمونځ گزار څنگه احتیاط کوي؟

**مسئله**: په مسجد نبوي (مدینه شریفه) کي خو د خلکو او ښځو د لمانځه ځایونه سره جلا دي. نو ځکه هلته د سړي او ښځي تر مینځ د اختلاط او محاذات مسئله اوس نه پېښیږي، لېکن په مسجد حرام (مکه شریفه) کي که څه هم د ښځو د لمانځه ځای جلا جوړ سوی دی، خو د طواف او حج د رش په زمانه کي هلته بعضي وخت ښځي او خلک د لمونځ کولو په دوران کي گډ وډ سره درېږي. نو ځکه په دې معامله کي د احتیاط ضرورت دی، ښځو ته پکار ده چي همېشه دي له خلکو څخه جلا لمونځونه کوي، که موقع نه وي، نو جماعت دي پرېږدي او وروسته دي خپل لمونځ جلا کوي او

خلکو ته ښکاره ده چې (١) د لمانځه له نیت ترلو څخه مخکې دې راسته طرف. چپه طرف او مخته گوري چې کومه ښځه خو به ولاړه نه وي. تر دې وروسته دې نیت تړي. (٢) که د لمانځه په اول کې ښځه نه وي او د لمانځه په دوران کې ښځه د لمونځ گزار په برابرۍ کې راسي. ودریږي. نو په لمانځه کې دې د ښځې د منع کولو کوشش وکړي، که هغه په اشاره سره منع سي. نو سمه ده او که منع نه سي. نو په اشاره کولو سره د سړي نمه واري پوره سوه، بیا که هغه ښځه په برابرۍ کې ودریږي لمونځ وکړي، نو د سړي لمونځ نه فاسدیږي، بلکې خپله د ښځې لمونځ فاسدیږي. (کتاب المسائل ص: ٣٦٧. شامي ج: ١. ص: ٥٣٩)

## د عورت ښکاره کېدلو یو صورت

﴿٥١٢﴾ وَ ظُهُوْرُ عَوْرَةِ مَنْ سَبَقَهُ الْحَدَثُ (٤٣) او د هغه کس عورت ښکاره کېدل چې هغه ته (په لمانځه کې) بې اودسیا پېښه سوې وي وَلَوِ اضْطُرَّ إِلَيْهِ که څه هم هغه دې (عورت ښکاره کېدلو) ته مجبوره وي كَكَشْفِ الْمَرْأَةِ ذِرَاعَهَا لِلْوُضُوْءِ لکه د ښځې د خپل لیڅې ښکاره کول د اودس لپاره (یعني چې ښځه د اودس کولو لپاره خپل لیڅې امتنا ښکاره کړي).

**لغات:** ﴿عورة﴾ د پټولو قابل اندامونه، ستر، جمع: عَوْرَات، ﴿اُضْطُرَّ﴾ د افتعال له بابه د واحد مذکر غائب ماضي مجهول صیغه ده، مصدر: اِضْطِرَارًا: مجبوره کېدل، محتاجه کېدل.

**تشریح:** که په لمانځه کې څوک بې اودسه سي مثلاً باد یې پرې سي، نو مسئله دا ده چې اودسه ته دې ولاړ سي، اودس دې وکړي او پر هاغه مخکینۍ لمانځه دې بناء وکړي یعني پر کوم ځای چې یې لمونځ پرې ایښی وو، له هاغه ځایه دې یې شروع او پوره کړي، اوس که دغه کس تر بې اودسیا وروسته اوداسه ته ولاړ سي او په اوداسه کې د هغه عورت ښکاره سي، یا یې هغه خپله ښکاره کړي، نو لمونځ یې فاسدیږي او بناء نه جائز کیږي. برابره ده د عورت ښکاره کول ضرورتاً (مجبوراً) وي او که بېله ضرورته وي، مثلاً د ښځې اودس مات سو او هغه اوداسه ته ولاړه او د اوداسه لپاره یې خپل لیڅې ښکاره کړې (کوم چې د ښځې په حق کې عورت دې او بغیر له ښکاره کولو یې پرېولل ممکن نه دي)، نو هم د هغې لمونځ فاسدیږي، لېکن د بعضو په نېز د مجبورۍ په حالت کې د عورت په ښکاره کېدو سره لمونځ نه فاسدیږي او بناء جائز کیږي او بغیر له مجبورۍ څخه د ښکاره کېدو په صورت کې لمونځ فاسدیږي او بناء نه جائز کیږي. همدا زیات صحیح او معتمد قول دی: ځکه د ښځې لپاره د بناء د جواز په هکله نص وارد سوی دی. (عمدة الفقه بحوالہ شفاء الارواح)

## تر بې اودسيا وروسته د اودس لپاره د تګ او راتګ په وخت کې قرائت کول

﴿٥١٣﴾ وَقِرَاءَتَهُ ذَاهِبًا أَوْ عَائِدًا لِلْوُضُوْءِ (۴۴) او د ده (يعني د بې اودسه کېدونکي لمونځ ګزار) قرائت کول په داسې حال کې چې د اوداسه لپاره تلونکی يا واپس راتلونکې وي (له اوداسه ځخه).

**لغات:** ﴿عائد﴾ د نصر له بابه فاعل دی: راګرځېدونکی، واپس راتلونکی.

**تشريح:** که د لمانځه په دوران کې ديو چا اودس مات سي، بيا هغه د اوداسه لپاره ولاړ سي. نو که چيري د تګ او راتګ په وخت کې هغه د قرآن شريف تلاوت وکړي. نو لمونځ يې فاسديږي. خو که تسبيح وغيره ووايي، نو نه فاسديږي؛ ځکه د قرآن قرائت د لمانځه يو رکن دی چې هغه د بې اودسيا په حالت کې د لمانځه په جريان کې اداء کول ممنوع او مفسد دي. (مراقی الفلاح مع الطحطاوي ص ١٨٢. کتاب المسائل ص: ٣٦٨)

## په لمانځه کې له اودس ماتېدو ځخه وروسته بې له عذره پر ځپل ځای درېدل

﴿٥١۴﴾ وَمَكْثُهُ قَدْرَ أَدَاءِ رُكْنٍ بَعْدَ سَبْقِ الْحَدَثِ مُسْتَيْقِظًا (۴۵) او د ده درېدل (ځنډ کول) ديوه رکن اداء کېدو په اندازه له بې اودسيا پېښېدو (بې اودسه کېدو) ځخه وروسته د وېښوالي په حالت کې.

**لغات:** ﴿مکث﴾ د نصر د باب مصدر دی: درېدل، ځنډ کول، وخت تېرول. درنګ کول.

﴿مستيقظ﴾ د استفعال له بابه فاعل دی، مصدر: اِسْتِيْقَاظ: ويښېدل. بيداره کېدل.

**تشريح:** که د لمانځه په دوران کې ديو چا اودس مات سي، بيا هغه ديوه رکن يعنې د درې وار سبحان الله ويل کېدو په اندازه هلته پاته سي، نو لمونځ يې فاسديږي. په داسې صورت کې سمدستي لمونځ موقوف کول او د اودس لپاره تلل ضروري دي. خو که يو عذر پېښ سي مثلاً ډېر رش وي او د وتلو موقع نه وي. يا داسې بل ځنډونکی عذر وي چې د هغه په وجه ديوه رکن په اندازه ځنډ وکړي. نو د ځنډ باوجود لمونځ باقي پاتېږي او بناء جائز کېږي. (مراقی الفلاح ص: ١٨٢. کتاب المسائل ص: ٣٦٩)

**مستيقظا:** په دې قيد سره د خوب حالت مستثنیٰ سوی دی. هغه دا چې که د لمانځه په دوران کې بيده سي او په دې دوران کې بې اودسه سي او په همدې حالت کې ديوه رکن په اندازه بيده پاته سي او بيا بيداره سي. نو که تر بيداريدو وروسته سمدستي ولاړ سي اودس او بناء وکړي. نو لمونځ يې صحيح کېږي (که څه هم په لمانځه کې د خوب په حالت کې ديوه رکن په اندازه يې درنګ کړی دی).

## د نږدې اوبو پر ځای لیرې اوبو ته تلل

﴿ ۵۱۵ ﴾ وَ مُجَاوَزَتُهُ مَاءً قَرِيبًا لِغَيْرِهِ (۴۶) او دده تېرېدل له نږدې اوبو څخه و نورو اوبو ته.

**لغات**: ﴿مجاوزة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: تېرېدل، تجاوز کول.

**تشریح**: که څوک د لمانځه په دوران کي بې اودسه سي او هلته نږدې د اودسه اوبه موجوده وي، خو لمونځ گزار د هغه اوبو پر ځای د لیري اوبو وطرف ته روان سي، نو حکم دا دی چي کله له هغه څخه د دوو صفونو په اندازه تېر سي، نو لمونځ يې فاسدېږي او بناء نه جائز کېږي، خو که يو عذر وي مثلاً دا يې هېر وي چي نږدې اوبه سته، یا د ځای د تنګوالي په وجه د اوبو ځای ته رسېدل مشکل وي، نو بیا په تجاوز کولو کي څه حرج نسته. (طحطاوي علی مراقی الفلاح ص: ۱۸۲، کتاب المسائل ص: ۳۶۹)

## د بې اودسیا په گومان سره له مسجد یا صفونو څخه وتل

﴿ ۵۱۶ ﴾ وَ خُرُوجُهُ مِنَ الْمَسْجِدِ بِظَنِّ الْحَدَثِ (۴۷) او دده (لمونځ گزار) وتل له مسجد څخه د بې اودسیا (بې اودسه کېدو) په گومان سره وَ مُجَاوَزَتُهُ الصُّفُوْفَ فِيْ غَيْرِهِ بِظَنِّهِ (۴۸) او دده تېرېدل له صفونو څخه په غیر مسجد (بل ځای) کي د بې اودسیا په گومان سره.

**لغات**: ﴿مجاوزة﴾ مخکي يې وضاحت وسو، غیره: د ضمیر مرجع مسجد دی، بظنه: د ضمیر مرجع حدث (بې اودسیا) ده.

**تشریح**: که د لمانځه په دوران کي د لمونځ گزار دا گومان سي چي غالباً اودس مي مات سو، مثلاً له پزي څخه يې اوبه راسي او لمونځ گزار دوني گومان پرې وکړي او په دې گومان له مسجد څخه دباندي ووځي، بیا ورته معلومه سي چي هغه خو اوبه وې، نو لمونځ يې فاسدېږي او له نوي سره به لمونځ کوي او که له مسجد څخه وتلی نه وي، نو بیا يې لمونځ نه فاسدېږي، بلکي پر هاغه لمانځه دي بناء وکړي.

ومجاوزته الصفوف إلخ: یعني که هغه له مسجد څخه بغیر په بل ځای مثلاً په یو خالي میدان کي لمونځ کوي او د بې اودسیا په گومان مخ وگرځوي او له آخري صف څخه دباندي ووځي، بیا ورته معلومه سي چي زه خو بې اودسه سوی نه یم، نو لمونځ يې فاسدېږي او که له آخري صف څخه نه ووځي، نو لمونځ يې نه فاسدېږي، بلکي پر هغه مخکیني لمانځه دي بناء وکړي. لنډه دا چي که مسجد وي نو له مسجد څخه وتل او که نه وي نو له آخري صف څخه وتل (او که تنهاوي نو د لمانځه له ای څخه وتل) بېله عذره د لمانځه فاسدونکي دي.

﴿۵۱۷﴾ وَانْصِرَافُهُ ظَانًّا أَنَّهُ غَيْرُ مُتَوَضِّئٍ (۴۹) او د ده ګرځېدل (ليرې كېدل دلمانځه له ځايه) په دې ګومان (خيال) سره چې دئ بې اودسه دی.

**لغات:** ﴿انصراف﴾ د انفعال د باب مصدر دی: ګرځېدل، مخ اړول.

**تشريح:** كه دلمانځه په دوران كې لمونځ ګزار ته دا ګومان سي چې ما خو بېله اودسه لمونځ شروع كړی دی، بيا هغه د اودس كولو لپاره مخ وګرځوي او له خپل ځايه ليرې سي او بيا ورته معلومه سي چې ما د اودسه په حالت كې لمونځ شروع كړی دی، نو لمونځ يې فاسديږي. كه څه هم له مسجد څخه وتلی نه وي (ځكه دلته مخ ګرځول او د لمانځه څخه وتل دلمانځه د پرېښودلو لپاره سوي دي).

## د مسح د مودې ختمېدل يا د نجاست په ګومان د لمانځه څخه وتل

﴿۵۱۸﴾ وَأَنَّ مُدَّةَ مَسْحِهِ انْقَضَتْ (۵۰) او (په دې ګومان سره مخ ګرځول) چې د ده د مسحې موده ختمه سوه أَوْ أَنَّ عَلَيْهِ فَائِتَةً (۵۱) يا (په دې ګومان سره مخ ګرځول) چې پر ده فوت سوی (قضائي) لمونځ سته أَوْ نَجَاسَةً (۵۲) يا (په دې ګومان سره... چې پر ده) نجاست دی وَإِنْ لَمْ يَخْرُجْ مِنَ الْمَسْجِدِ كه څه هم له مسجد څخه وتلی نه وي.

**لغات:** ﴿انقضت﴾ د انفعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: (وخت) تېرېدل، ختمېدل، پوره كېدل.

**تشريح:** كه دلمانځه په دوران كې لمونځ ګزار ته دا ګومان سي چې د مسح موده پوره سوه، يا د لمانځه په دوران كې صاحب الترتيب كس ته دا ګومان سي چې پر ما قضايي لمونځ سته، مثلاً د ماپښين په لمانځه كې يې دا ګومان سي چې ما د سهار لمونځ نه دی كړي، يا لمونځ ګزار پر خپله جامه يو داغ وويني او هغه نجاست وګڼي، او په دې صورتونو كې مخ وګرځوي يعني د لمانځه څخه لاړ شي او له خپل ځايه ليري سي، نو په دې ټولو صورتونو كې لمونځ فاسديږي او بناء نه صحيح كېږي، كه څه هم له مسجد څخه وتلی نه وي، نو ځكه له شروع څخه به لمونځ راګرځوي. (مراقي الفلاح ص: ۱۸۳)

## له خپل امام څخه بغیر بل چا ته فتحه ورکول

﴿٥١٩﴾ وَفَتْحُهُ عَلٰى غَيْرِ إِمَامِهِ (٥٣) او د ده (مقتدي) فتح ورکول له خپل امام څخه بغیر وبل چا ته.

**لغات:** ﴿فَتَحَ﴾ د مَنَعَ (فتح) د باب ماضي ده، د دې باب ډېرې معناوې دي: خلاصول، پرانیستل، شروع کول، کامیابېدل، فاتح کېدل، دلته ځنې مراد "فتحه ورکول" دي، یعني په کوم څه کې چې امام یا بل کس غلط سي، د هغه ښوونه کول (یادونه ورکول)، د فتحهٔ د ضمیر مرجع "مُصلّي" دی.

**تشریح:** مسئله دا ده چې د لمانځه په دوران کې د مقتدي لپاره خپل امام ته فتحه ورکول خو جائز دي، لېکن له خپل امام څخه بغیر وبل چا ته په فتحه ورکولو سره هم د مقتدي لمونځ فاسدېږي او هم د فتح اخیستونکي لمونځ فاسدېږي، برابره ده هغه (فتح اخیستونکی) منفرد وي او که غیرِ منفرد وي.



## له مقتدي څخه بغیر له بل چا څخه فتحه اخیستل

**مسئله:** که د امام په قرائت کې غلطي راسي او له مقتدیانو څخه بغیر بل څوک امام ته فتحه ورکړي او امام د هغه فتحه قبوله کړي، نو د امام او د هغه د مقتدیانو لمونځ فاسدېږي. (طحطاوي ص: ١٨٣. کتاب المسائل ص: ٣٧)

## د نوي لمانځه د شروع کولو په نیت سره تکبیر تحریمه ویل

﴿٥٢٠﴾ وَالتَّكْبِيْرُ بِنِيَّةِ الْإِنْتِقَالِ لِصَلٰوةٍ أُخْرٰى غَيْرِ صَلٰوتِهِ (٥٤) او تکبیر ویل په نیت سره د منتقل کېدو وبل لمانځه ته ماسوا له خپل لمانځه څخه (یعني له شروع کړي لمانځه څخه بغیر وبل لمانځه ته د منتقل کېدلو په نیت سره تکبیر ویل).

**تشریح:** که چا لمونځ شروع کړی وي او په لمونځ کولو لګیا وي، بیا د لمانځه په دوران کې اراده وکړي چې دا لمونځ به پرېږدم او بل به شروع کړم او په همدې نیت سره الله اکبر ووایي، نو د الله اکبر ویلو سره سمدستي د هغه لمونځ فاسدېږي، لېکن که صرف په زړه سره نیت وکړي او په ژبه سره الله اکبر نه ووایي، نو لمونځ یې نه فاسدېږي. (مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص: ١٨٣. کتاب المسائل ص: ٣٧١)

﴿۵۲۱﴾ إِذَا حَصَلَتْ هٰذِهِ الْمَذْكُورَاتُ قَبْلَ الْجُلُوسِ الْأَخِيرِ مِقْدَارَ التَّشَهُّدِ کله چي حاصل سي دا مذکوره شیان په آخره ناسته کي د تشهد په اندازه کښېنستلو څخه مخکي.

**تشريح:** يعني مخکي چي د لمانځه فاسدېدلو څومره صورتونه بيان سول. په هغوی سره هماغه وخت لمونځ فاسدېږي، کله چي په قعدۀ اخيره (آخره ناسته) کي د تشهد په اندازه کښېنستلی نه وي بلکي تر هغه مخکي دا صورتونه پېښ سوي وي، لهذا که په قعدۀ اخيره کي د تشهد په اندازه کښېنستلو څخه وروسته له مفسدات الصلاة څخه یو مفسد پېښ سي، نو د هغه لمونځ نه فاسدېږي (دا د صاحبينو رحمهما الله مسلک دی؛ ځکه د دوی په نېز له قعدۀ اخيره څخه وروسته د دې عوارضو پېښېدل داسي دي لکه تر سلام ګرځولو وروسته پېښېدل. او د امام صاحب رحمه الله په نېز له قعدۀ اخيره څخه وروسته د دې عوارضو پېښېدل داسي دي لکه د لمانځه په مېنځ کي پېښېدل. او څرنګه چي د لمانځه په مېنځ کي د هغوی په واقع کېدو سره لمونځ فاسدېږي. نو همداسي که تر قعدۀ اخيره وروسته دا عورض پېښ سي. نو هم لمونځ فاسدېږي (انوار الايضاح)

﴿۵۲۲﴾ وَيُفْسِدُهَا أَيْضًا مَدُّ الْهَمْزَةِ فِي التَّكْبِيرِ (۵۵) او په تکبير (الله اکبر) کي د همزې کشول هم لمونځ فاسدوي.

**تشريح:** يعني که په لمانځه کي دننه په تکبيرات انتقاليه وو کي د الله اکبر ويلو پر مهال د الله د لفظ همزه کش کړي او مد وکړي، نو لمونځ يې فاسدېږي، په دې هکله نور تفصيل په ﴿۳۸۹﴾ نمبر مسئله کي تېر سو.

## په لمانځه کي له قرآن شريف څخه قرائت کول

﴿۵۲۳﴾ وَقِرَاءَةُ مَا لَا يَحْفَظُهُ مِنْ مُصْحَفٍ (۵٦) او لوستل د هغه حصې کوم چي ده ته ياد نه وي له قرآن شريف څخه (دا هم لمونځ فاسدوي).

**تشريح:** که يو څوک د لمانځه په دوران کي قرآن شريف ته ګوري او له هغه څخه قرائت کوي. نو لمونځ يې فاسدېږي. په دې شرط چي هغه آيتونه يې ياد نه وي (ځکه چي دا عمل کثير دی او بل دا چي په دې کي په لمانځه کي دننه د تلقي او تعلم اړه کړي او صورت پېښېږي کوم چي ممنوع دی). او که هغه آيتونه (کوم ته چي ګوري) ورته ياد وي او قرآن شريف يې په لاس کي نه وي را اخيستی بلکي مخته يې پر تېبل يا داسي بل شي اېښی وي. نو لمونځ يې نه فاسدېږي. (انوار الايضاح. شفاء الارواح)

## د عورت د لڅوالي او د نجاست د موجود والي په حالت کې لمونځ کول

﴿۵۲۴﴾ وَأَدَاءُ رُكْنٍ أَوْ إِمْكَانُهُ مَعَ كَشْفِ الْعَوْرَةِ أَوْ مَعَ نَجَاسَةٍ مَانِعَةٍ (۵۷) او يو رکن اداء کول (۵۸) يا د يوه رکن اداء ممکن کېدل (يعني ديوه رکن اداء کېدو په اندازه وخت تېرېدل) د عورت د لڅوالي يا د مانع نجاست سره.

**تشريح**: که د لمونځ گزار عورت د اندام د څلورمې حصې په اندازه ښکاره سي (مثلاً د ښځې د غوږ څلورمه حصه ښکاره سي. يا داسې نور چې مخکې يې تفصيل تېر سو) او په همدې حالت کې يو رکن اداء کړي يا په همدې حالت کې د يوه رکن په اندازه وخت تېر سي يعني دومره وخت چې په هغه کې درې واره سبحان الله ويلای سي. نو لمونځ يې فاسديږي.

همدارنګه که پر لمونځ گزار داسې نجاست (مرداري) وي چې د هغه سره لمونځ نه صحيح کېږي برابره ده هغه نجاست غليظه وي او که خفيفه وي او په همدې حالت کې يو رکن اداء کړي يا د يوه رکن په اندازه د هغه نجاست سره وخت تېر کړي، نو لمونځ يې فاسديږي. او که پر بدن د نجاست لوېدلو سره لمونځ گزار سمدستي هغه ليرې کړي، يا سمدستي عورت پټ کړي، نو بيا يې لمونځ نه فاسديږي.

﴿۵۲۵﴾ وَمُسَابَقَةُ الْمُقْتَدِيْ بِرُكْنٍ لَمْ يُشَارِكْهُ فِيْهِ إِمَامُهُ (۵۹) او (همدارنګه لمونځ فاسدوي) د مقتدي وړاندېتوب کول (چې مقتدي مخکې والي وکړي) په يوه رکن کې چې په هغه کې د ده امام ور سره شريک نه سي (مثلاً مقتدي تر امام مخکې رکوع ته ولاړ سي او بيا د امام له رکوع کولو څخه مخکې سر راپورته کړي. او بيا دغه رکن (رکوع) د امام سره يا تر امام وروسته دوباره اداء نه کړي تر دې چې امام سلام وګرځوي. نو د مقتدي لمونځ فاسديږي. او که مقتدي په دې توګه مخکې رکوع وکړي چې د ده د رکوع په وخت کې امام هم رکوع ته ورسيږي، نو دغسې مسابقت خو مکروه دی. ليکن لمونځ يې نه فاسديږي وعلیٰ هذا فقس حال السجود).

**لغات**: ﴿مسابقة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: د يو شي وطرف ته وړاندېتوب کول. مخکې والي کول. ﴿لم يشارك﴾ د مفاعلې له بابه د جحد صيغه ده. مصدر: مشاركة: په يو شي کې د يو چا سره شريک کېدل. حصه داره کېدل.

**تشريح**: د عبارت وضاحت د ژباړې په ضمن کې وسو.

## د مسبوق لپاره په سجدهٔ سهو کې د امام پیروي کول

﴿۵۲۹﴾ وَمُتَابَعَةُ الْإِمَامِ فِيْ سُجُوْدِ السَّهْوِ لِلْمَسْبُوْقِ (۶۰) او (همدارنګه لمونځ فاسدوي) د امام تابعداري کول په سجدهٔ سهو کې د مسبوق مقتدي لپاره.

**لغات:** ﴿مسبوق﴾ مخکې یې وضاحت وسو چې له کوم مقتدي څخه اول رکعت تېر سوی وي هغه ته مسبوق وايي، نور بیا که دوه رکعته ځنې تېر سوي وي او که درې یا څلور سره ځنې تېر سوي وي (یعني صرف په قعدهٔ اخیره کې یې امام نیولی وي).

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې که مسبوق مقتدی په سجدهٔ سهو کې د خپل امام متابعت په داسې حال کې وکړي کله چې هغه له امام څخه جلا سوی وي، نو د هغه لمونځ فاسدیږي. مثلاً امام سلام وګرځوي او سجدهٔ سهو یې هېره وي او مسبوق د خپل پاته لمونځ د پوره کولو لپاره ولاړ سي او یو رکعت وکړي او د هغه سجده هم وکړي، په دې دوران کې امام ته سجدهٔ سهو په یاد سي چې ما خو هغه پرېښووله. نو امام سجدهٔ سهو وکړي او مسبوق هم د امام سره سجدهٔ سهو وکړي. نو په دې صورت کې د مسبوق لمونځ فاسدیږي. او که چیري مسبوق تر اوسه د رکعت سجده نه وي کړې او امام سجدهٔ سهو وکړي، نو پر هغه د خپل امام متابعت کول (یعني د امام سره یو ځای سجدهٔ سهو کول) ضروري دي، لېکن په دې صورت کې به مسبوق د امام سره سلام نه ګرځوي. لېکن که متابعت نه وکړي او په آخر کې سجدهٔ سهو وکړي، نو هم جائز دي او لمونځ یې نه فاسدیږي. (عمدة الفقه بحوالهٔ شفاء الارواح)

## قعدهٔ اخیره نه راګرځول

﴿۵۳۰﴾ وَعَدَمُ إِعَادَةِ الْجُلُوْسِ الْأَخِيْرِ بَعْدَ أَدَاءِ سَجْدَةٍ صُلْبِيَّةٍ تَذَكَّرَهَا بَعْدَ الْجُلُوْسِ (۶۱) او آخره ناسته نه راګرځول د اصلي سجدې له اداء کولو څخه وروسته چې هغه (سجده) ده ته تر (آخري) ناستې وروسته په یاد ورغلې وي (یعني په آخره ناسته کې د تشهد په اندازه جلوس څخه وروسته ده ته په یاد ورسي چې زما څخه د یو رکعت یوه سجده پاته سوې ده. نو هغه سجده یې را وګرځوله خو آخره ناسته یې بېرته نه راوګرځوله او له سجدې څخه وروسته یې سمدستي سلام وګرځوی. نو هم لمونځ فاسدیږي).

**لغات:** ﴿صُلبِيَّة﴾ اصلي سجده، د لمانځه خپله سجده (یا په بله وینا: د رکعت خپله سجده)، "صُلب" ته منسوب دی. "صُلب" ملا ته ویل کیږي کوم چې د انسان مینځ دی او د لمانځه خپله سجده هم د لمانځه په مینځ کې واقع کیږي. او بل سجدهٔ سهو ده کوم چې د لمانځه په آخر کې کیږي.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې که لمونځ ګزار قعدهٔ اخیره (آخره ناسته) وکړه. تر دې وروسته ده ته یاد سوه چې زما څخه خو د لمانځه یوه سجده پاته ده. نو هغه سجده یې را وګرځوله او بیا یې ناسته

نه وکړي يعني آخره ناسته يې نه راوګرځوله، بلکې سمدستي يې سلام وګرځوی، نو د هغه لمونځ فاسديږي.

## يو رکن د خوب په حالت کې اداء کول

﴿۵۲۸﴾ وَعَدَمُ إِعَادَةِ رُكْنٍ أَدَّاهُ نَائِمًا (۶۲) او هغه رکن نه راګرځول کوم چې يې د خوب په حالت کې اداء کړی وي.

**تشريح:** که لمونځ ګزار يو رکن د خوب په حالت کې اداء کړي او تر بيداريدو وروسته يې نه راوګرځوي (يا په بله وينا د وينوالي په حالت کې يې دوباره اداء نه کړي)، نو لمونځ يې فاسديږي. مثلاً دويمې سجدې ته د تللو په وخت کې خوب غلبه باندې وکړي او بيده سي او ټوله سجده د بيده والي په حالت کې اداء کړي او له سجدې څخه درا پورته کيدو په وخت کې بيداره (وينښ) سي. نو هغه دې دا دويمه سجده دوباره اداء کړي. لهذا که دوباره يې اداء نه کړي، نو لمونځ يې فاسديږي. او که رکن ته په وينښه داخل سي بيا په هغه کې بيده سي، نو هغه رکن شمېرل کيږي او نه به راګرځول کيږي. (عمدة الفقه بحوالة شفاء الارواح)

## له قعدهٔ اخيره څخه وروسته د امام عمداً اودس ماتول

﴿۵۲۹﴾ وَقَهْقَهَةُ إِمَامِ الْمَسْبُوقِ وَحَدَثُهُ الْعَمْدَ بَعْدَ الْجُلُوسِ الْأَخِيرِ (۶۳) او د مسبوق د امام په زوره خندل (۶۴) او (يا) د هغه قصداً اودس ماتول تر آخري ناستې وروسته.

**تشريح:** که په قعدهٔ اخيره (آخره ناسته) کې د تشهد په اندازه کښېنستلو څخه وروسته امام په زوره وخاندي يا امام قصداً ځان بې اودسه کړي، نو د هغه لمونځ خو کيږي. لېکن د مسبوق مقتدي لمونځ فاسديږي. خو پر امام واجب دي چې تر اودس کولو وروسته د واجب (سلام) د پرېښوولو په وجه دوباره په السلام عليکم سره لمونځ ختم کړي، چې د ترک الواجب له ګناه څخه بچ سي. (انوار الايضاح)

## په څلور رکعتيز يا درې رکعتيز لمانځه کې پر دويم رکعت سلام ګرځول

﴿۵۳۰﴾ وَالسَّلَامُ عَلَى رَأْسِ رَكْعَتَيْنِ فِي غَيْرِ الثُّنَائِيَّةِ ظَانًّا أَنَّهُ مُسَافِرٌ (۶۵) او سلام ګرځول د دوو رکعتو پر سر له دوه رکعتيز لمانځه څخه بغير (بل لمانځه) کې په دې ګومان سره چې هغه مسافر دی (يعني چې په درې رکعتيز يا څلور رکعتيز لمانځه کې لمونځ ګزار په دې ګومان سره پر دويم رکعت سلام وګرځوي چې زه مسافر يم) أَوْ أَنَّهَا الْجُمُعَةُ (۶۶) يا (په دې ګومان سره پر دويم رکعت سلام وګرځوي) چې دا د جمعې لمونځ دی أَوْ أَنَّهَا التَّرَاوِيحُ وَهِيَ الْعِشَاءُ (۶۷) يا چې دا تراويح دي حال دا چې هغه

دماخوستن لمونځ وي أَوْ كَانَ قَرِيْبَ عَهْدٍ بِالْإِسْلَامِ (۶۸) يا لمونځ گزار نژدې زمانې والا وي په اسلام راوړلو کې (يعني د اسلام راوړلو يې لږ زمانه کيږي) فَظَنَّ الْفَرْضَ رَكْعَتَيْنِ نو ده گومان کړی وي چې (ټوله) فرض دوه رکعته دي.

**لغات:** ﴿ثنائية﴾ دو رکعتيز لمونځ، هر هغه شی کوم چې له دوو څخه مرکب وي.

**تشريح:** پر دويم رکعت د سلام گرځولو دوه صورتونه دي: ① يو صورت دا دی چې لمونځ گزار په څلور رکعتيز يا درې رکعتيز لمانځه کې په دې گومان سره پر دويم رکعت سلام وگرځوي چې همدا قعدهٔ اخيره (آخره ناسته) ده يعني رکعتونه پوره سوي دي او بيا ورته ياد سي چې نه دي پوره سوي، نو لمونځ يې نه فاسديږي بلکي لمونځ دي جاري وساتي او په آخر کې دي سجدهٔ سهو وکړي.

② دويم صورت کوم چې په عبارت کې بيان سوی دی دا دی چې که لمونځ گزار په دې گومان سره د څلور رکعتيز يا درې رکعتيز لمانځه پر دويم رکعت سلام وگرځوي چې پر ما صرف همدا دوه رکعته لازم دي، حال دا چې په حقيقت کې پر هغه څلور رکعته وي، مثلاً يو مقيم کس د ماخوستن لمونځ شروع کړي او له دوو رکعتو څخه وروسته پر ځان د مسافر کېدو په گومان سره پر دويم رکعت سلام وگرځوي، يا لمونځ گزار د ماپښين په لمانځه کې له دوو رکعتو څخه وروسته د جمعې په گومان سره پر دويم رکعت سلام وگرځوي، يا د ماخوستن په لمانځه کې له دوو رکعتو څخه وروسته د تراويحو په گومان سره پر دويم رکعت سلام وگرځوي، يا يو څوک نوي مسلمان سوی وي او تر اوسه د اسلام په احکامو واقف نه وي چې په دې وجه هغه صرف پر دوو رکعتو د فرضو گومان کوي (چې فرض همدا دوه رکعته دي) او په دې گومان سره پر دويم رکعت سلام وگرځوي. نو په دې ټولو صورتونو کې د سلام گرځولو په وجه لمونځ فاسديږي. (مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص: ۱۸۶)



## د لمانځه په دوران کې د بچي شيدې رودل

**مسئله (۱):** که ښځه لمونځ کوي او په دې دوران کې کوچنی بچی د هغې تی وچېږي+ بې او له هغه څخه شيدې راووځي. نو د ښځې لمونځ فاسديږي. (در مختار مع الشامي ج:۲، ص:۳۹۰)

## د لمانځه په دوران کې مرگ راتلل

**مسئله (۲):** که د لمانځه په دوران کې لمونځ گزار ته مرگ راسي. نو هغه لمونځ بالکل ختمېږي او که امام د لمانځه په دوران کې مړ سي، نو د ټولو مقتديانو لمونځ فاسديږي او هغوی به له سره لمونځ کوي. لهذا د مړ کېدونکي کس د دې لمانځه فديه لازمه نه ده، ځکه چې له هغه څخه لمونځ ساقط سو. (کتاب المسائل ص: ۳۷۴)



# بَابُ زَلَّةِ الْقَارِيْ

(دا) باب د قرائت کونکي د تېروتلو (په بیان کې) دی

**تشریح**: دقرائت د غلطیو او تېروتنو په هکله د نورالایضاح مصنف رحمه الله خو دلته بحث نه دی کړی ،مګرد نور الایضاح په حاشیه کې پردې موقع یو جامع اومفید بحث لیکل سوی دی. حضرت علامه الحافظ مولانا محمداعزازعلي رحمه الله ددې ډېرضرورت محسوس کړی. نو ځکه یې دابحث د نورالایضاح په حاشیه کې داخل کړی، څرنګه چي ددې کتاب "فتح الایضاح" ترتیب موږ د "انوار الایضاح" مطابق وضع کړی دی او په هغه کي یې دا باب نه دی بیان کړی، که څه هم نورو شروحو مختصراً بیان کړی دی، نو ځکه موږ هم نه دی بیان کړی، خو که په وخت کي ګنجایش وو. او ستاسي له طرفه غوښتنه وسوه، نو ان شاء الله په آینده چاپ کي به یې په پوره وضاحت سره بیان کړو. دغوښتني لپاره دي خپروونکي اداري "صداقت کتب خانې" ته اطلاع ورکول سي.

# فَصْلٌ مَالَايُفْسِدُ الصَّلٰوةَ

(دا) فصل د هغه شیانو (په بیان کي) دی کوم چي لمونځ نه فاسدوي

**تشریح**: په دې فصل کي مصنف رحمه الله هغه شیان بیانوي چي په هغوی سره لمونځ نه فاسدیږي.

## په کومو شیانو سره لمونځ نه فاسدیږي؟

﴿۵۲۱﴾ لَوْنَظَرَ الْمُصَلِّيْ إِلٰى مَكْتُوْبٍ وَفَهِمَهُ که وګوري لمونځ ګزار دیو لیکل سوي شي (خط) وطرف ته او په هغه پوه سي أَوْ أَكَلَ مَا بَيْنَ أَسْنَانِهِ وَكَانَ دُوْنَ الْحِمَّصَةِ بِلَا عَمَلٍ كَثِيْرٍ یا وخوري هغه څه کوم چي یې د غاښو په مینځ کي وي او هغه د نخود (له مقدار) څخه کم وي بغیر له عمل کثیر څخه أَوْ مَرَّمَارٌّ فِيْ مَوْضِعِ سُجُوْدِهٖ یا تېر سي یو تېریدونکی کس د سجده کولو په

ځای کې لَا تَفْسُدُ نو لمونځ نه فاسدیږي وَإِنْ أَثِمَ الْمَارُّ که څه هم تېرېدونکی ګنهګاره کیږي.

**لغات:** ﴿مکتوب﴾ د نصر له بابه اسم مفعول دی: لیکل سوي شه. خط. ﴿الحصة﴾ مخکې د دې وضاحت وسو. ﴿أَثِمَ﴾ د سمع د باب ماضي ده. مصدر: إِثْمًا: ګناهګاره کېدل. ﴿مارّ﴾ د نصر د باب فاعل دی: تېرېدونکی.

**تشریح:** که لمونځ ګزار په لمانځه کي یو لیکل سوي شي ته وګوري او په زړه کي په هغه پوه سي او په ژبه سره یې نه ووایي، نو لمونځ یې نه فاسدیږي، برابره ده هغه لیکل سوی شی (مکتوب) قرآن وي او که غیر قرآن وي، مثلاً پر محرب د قرآن آیت یا نور څه لیکل سوي وي او لمونځ ګزار هغه ته وګوري او وېې فهموي، نو په دې سره د ده لمونځ نه فاسدیږي او نه مکروه دي په دې شرط چي هغه قصداً نه وي ورته کتلي، او که قصداً یې ورته کتلي او فهمولی یې وي، نو په دې صورت کي لمونځ خو نه فاسدیږي، لیکن مکروه (تنزیهي) کیږي. (طحطاوي)

أو أكل ما بين إلخ: که د لمونځ ګزار په غاښو کي څه خوراک بند پاته وي او هغه د لمانځه په حالت کي تېر کړي، نو لمونځ یې نه فاسدیږي په دې شرط چي ... خوراک د نخود له مقدار څخه کم وي او بغیر له عملِ کثیر څخه یې تېر کړی وي، که چیري هغه خوراک د نخود په اندازه وي، یا تر هغه زیات وي، یا خو د نخود له مقدار څخه کم وي لېکن په عملِ کثیر سره یې تېر کړی وي مثلاً درې واره یا تر دې زیات یې ژولی وي، نو اوس برابره ده تېر کړی وي که نه، د عملِ کثیر په وجه د هغه لمونځ فاسدیږي.

أو مرّ مارّ إلخ: که یو انسان د لمونځ ګزار مخ ته د هغه د سجدې پر ځای تېر سي. نو د هغه لمونځ نه فاسدیږي، برابره ده تېرېدونکی انسان سړی وي او که ښځه وي، یا تېرېدونکی یو حیوان مثلاً خر یا سپی وغیره وي، لېکن تېرېدونکی انسان ګنهګاره کیږي.



## مسئله: د لمونځ ګزار مخ ته پر څومره فاصله تېرېدل جائز دي؟

په لوی مسجد یا میدانه کي که یو څوک بغیر له سُترې څخه لمونځ کوي او د هغه مخ ته تېرېدلو ته ضرورت پېښ سي، نو پر څومره فاصله د هغه مخ ته تېرېدل جائز دي او ګناه نه لري. په دې باره کي د مشایخو مختلف اقوال دي: ① قاضي خان، علامه حاکم شهید، صاحب هدایه، صاحب محیط او علامه زیلعي رَحِمَهُمُ الله فرمایي چي د دې لمونځ ګزار د سجدې له ځای څخه مخ ته تېرېدل جائز دي، ② د فخر الاسلام بزدوي، شمس الائمه سرخسي او علامه ابو جعفر. علامه

تمرتاشي، علامه کاساني، صاحب نهایه او محقق ابن الهمام رَحِمَهُمُ الله رایه دا ده چي دلمونځ ګزار نظر چي تر کومه ځایه پوري ځي کله چي هغه په خشوع و خضوع سره لمونځ کوي (یعني چي د سجدې ځای ته ګوري او نظر یې ټیټ ساتلی وي نو په دې حالت کي چي د هغه نظر تر کومه ځایه ځي). له هغه ځای څخه مخ ته تېرېدل جائز دي. ③ بعضو د دې حدّ دوه، یا درې صفونه مقرر کړي دي. ④ بعضو درې یا پنځه لاسه (یا په بله وینا درې یا پنځه شرعي ګزه) د دې اندازه ټاکلې ده. ⑤ بعضو د دې حدّ څلوېښت (۴۰) لاسه (یا په بله وینا ۴۰ شرعي ګزه) مقرر کړي دي. ⑥ بعضو ویلي دي چي پنځوس (۵۰) لاسه مخ ته تېرېدل جائز دي.

صاحب دعنایه رَحِمَهُ الله په ① او ② قول کي داسي تطبیق ورکړی دی چي په ① قول کي د سجدې له ځای څخه د سجدې مخصوص ځای مراد نه دی بلکي د هغه د شا و خوا ځای هم دغه حکم دی او همدا معنی د تیجي په اعتبار سره د ② قول را وځي (عنایه ج:۱، ص:۴۰۶). علامه شامي رَحِمَهُ الله هم په ټینګار سره د صاحب العنایه تائید کړی دی او د هغه خلکو تردید یې کړی دی کوم چي دغه دواړه قولونه جلا جلا ګڼي. (شامي ج:۱، ص:۵۹۳)

او صاحب البحر علامه ابن نجیم رَحِمَهُ الله ډېر ټینګار پر دې کړی دی چي همدا اول ① قول اصح دی. (البحر الرائق ج:۲، ص:۱۶)

خلاصه دا چي په دغه مسئله کي آخري څلور اقوال بالکل متروک دي او په ① او ② قول کي صرف لفظي فرق سته. معناً دواړه سره یو دي. لهذا د اکثره مشایخو د رایې د موافق کېدلو پر بناء به هغه لره ترجیح وي. (انوار الایضاح)

## د ښځي پر شرمګاه د نظر لوېدلو حکم

﴿ ۵۳۲ ﴾ وَلَا تَفْسُدُ بِنَظَرِهِ إِلَى فَرْجِ الْمُطَلَّقَةِ بِشَهْوَةٍ فِي الْمُخْتَارِ او لمونځ نه فاسدېږي د لمونځ ګزار په کتلو سره د طلاق کي سوي ښځي و فرج ته په شهوت سره، د مختار قول مطابق وَإِنْ ثَبَتَتْ بِهِ الرَّجْعَةُ که څه هم په دې سره رجعت (رجوع) ثابتېږي.

**تشریح**: دلمانځه په حالت کي که د اجنبیه (پردۍ) ښځي پر دننه حصه (فرج) باندي نظر ولوېږدي، نو لمونځ یې نه فاسدېږي؛ ځکه دا عملِ قلیل دی. خو که دا ښځه دلمونځ ګزار منکوحه وي او مطلقه وي یعني طلاق رجعي یې ورکړی وي، نو لمونځ خو یې نه فاسدېږي، لیکن په دې سره رجعت ثابتېږي. او مچه اخیستل، مس کول دا ټوله د جماع په حکم دي او عملِ کثیر شمېرل سوي دي، لهذا د دوی په وجه لمونځ فاسدېږي.

**فایده**: په عبارت کي د "ل المختار" په قید سره د هغه خلکو له قول څخه احتراز سوی دی کوم چي وایي چي محض شرمګاه ته په کتلو سره لمونځ فاسدېږي.



# فَصْلٌ فِي الْمَكْرُوهَاتِ

(دا) فصل په (بيان دلمانځه د) مکروهاتو کي دی

**تشريح**: مخکي دلمانځه د مفسداتو بيان وو، اوس په دې فصل کي دلمانځه مکروهات بيانوي.

**د کراهت قسمونه**: په بنيادي توګه کراهت پر دوه قسمه دی: ① کراهت تحريمي ۲ کراهت تنزيهي. په دې دواړو کي فرق او توپير د کراهت د دليل په اعتبار سره وي، که چيري د يو فعل د ممانعت دليل ظنی الثبوت يا ظنی الدلالة وي. يا هغه فعل ترك الواجب لره شامل وي (چي که هغه وسي نو واجب کار به پاته سي)، نو پر هغه د مکروه تحريمي اطلاق کيږي. او که د ممانعت دليل په خلاف اولیٰ يا ترك الاستحباب باندي مبني وي، نو هغه فعل ته مکروه تنزيهي ويل کيږي (په بله وينا دا چي تحريمي د واجب په مقابله کي دی. لهذا د واجب پرېښوولو ته به مکروه تحريمي ويل کيږي او دا حرام ته نژدې دي. او تنزيهي د سنت او د اولیٰ او مستحب په مقابله کي دی. لهذا د سنت پرېښوولو ته به مکروه تنزيهي او خلاف اولیٰ ويل کيږي او دا مباح ته نژدې دي). بيا په مکروه تحريمي او مکروه تنزيهي کي هم د شدت او ضعف په اعتبار سره جلا، جلا مراتب دي کوم چي صاحبُ النظر عالم د دليل په رڼا کي خپله متعين کولای سي. (مثلاً که يو سنت عمل داسي وي چي د هغه ډېر تاکيد او ټينګار سوی دی. نو د هغه پرېښوول شديد مکروه تنزيهي دي او تحريمي ته نژدې دي).

**په لمانځه کي د مکروه اثر**: کوم لمونځ چي د کراهتِ تحريمي سره اداء کړل سي (يا په بله وينا په کوم لمانځه کي چي مکروه تحريمي واقع سي)، د هغه اعاده (راګرځول) واجبيږي. مثلاً په داسي جامه کي لمونځ کول چي په هغه کي تصويران نقش سوي وي، نو د هغه لمانځه راګرځول ضروري دي. ژر تر ژره دي هغه راوګرځول سي، برابره ده په وخت کي دننه وي يا تر وخت وروسته وي. او که په لمانځه کي د کراهتِ تنزيهي ارتکاب وسي، نو د لمانځه اعاده واجب نه ده، خو مستحب ده. او په کوم مکرو[...] تحريمي سره چي لمونځ واجبُ الاعاده ګرځي، هغه داسي مکروه تحريمي دی چي د هغه تعلق[...] لمانځه د عين افعالو سره وي مثلاً تعديل الارکان پرېښوول، يا په تصوير والا جامه کي لمونځ ک[...] ليکن داسي مکروه فعل چي د هغه تعلق دلمانځه د عين ارکانو سره نه وي، بلکي په هغه کي کو[...] په يو بله وجه راغلی وي مثلاً سورتونه سره چپه ويل، يا د امام فاسق کېدل. نو د داسي کراهت پ[...] لمونځ واجب الاعاده نه ګرځي، ځکه د قرآن کريم په آيتونو او سورتونو کي د ترتيب لحاظ س[...] اصل کي دلمانځه له واجباتو څخه نه دي، بلکي د قرائت له واجباتو څخه دي. همدارنګه [...]

څخه ځان ساتل پر هر مسلمان مستقلاً واجب دي او هغه اصلاً د لمانځه له واجباتو څخه نه دي. بلکي د جماعت له واجباتو څخه دي (د مکروه تحریمي په بحث کي دا پورتني وضاحت په یاد لرل ضروري دي) په عامه توګه فقهاؤ د لمانځه د مکروهاتو په باب کي د مکروه تحریمي او مکروه تنزیهي لپاره صرف د مکروه لفظ استعمال کړی وي او دلته مصنف رَحِمَهُ الله هم داسي کړي دي، خو موږ کوښښ کوو چي دواړه ډوله افعال سره جلا کړو (فلله الحمد).

## د لمانځه مکروهات

> ۵۲۳ ﴿ يَكْرَهُ لِلْمُصَلِّيْ سَبْعَةٌ وَّسَبْعُوْنَ شَيْئًا ﴾ د لمونځ ګزار لپاره اووه اویا (۷۷) شیان مکروه دي ﴿ تَرْكُ وَاجِبٍ أَوْ سُنَّةٍ عَمَدًا ﴾ پرېښوول د (۱) یو واجب (۲) یا سنت قصداً (یعني په لمانځه کي واجب یا سنت شی پرېښوول مکروه دي).

**تشریح**: مصنف رَحِمَهُ الله د لمانځه اووه اویا (۷۷) مکروهات بیان کړي دي، دا شمېر د حصر لپاره نه دی چي صرف همدا (۷۷) مکروهات دي، بلکي په دې سره دا ښوول مقصود دي چي تقریباً (۷۷) دي. له دې څخه زیات هم کېدلای سي.

خیر! مصنف رَحِمَهُ الله فرمایي چي قصداً یو واجب پرېښوول مکروه دي مثلاً تعدیل الارکان (یعني د لمانځه ارکان په اطمینان سره اداء کول) واجب دي. لهذا د تعدیل الارکان د پرېښوونکي کس لمونځ په کراهت تحریمي سره صحیح کېږي، خو دا (تعدیل الارکان) یو داسي واجب دی چي په سجدهٔ سهو سره د هغه تلافي نه سي کېدلای، لهذا په وخت کي دننه د داسي لمانځه اعاده واجب ده او له وخت څخه وروسته مستحب ده. همدارنګه یو سنت پرېښوول مکروه تنزیهي دي. مثلاً د لمانځه په شروع کي د سرې لپاره د الله أکبر ویلو په وخت کي دواړه لاسونه د غوږو تر نرمیو پوري پورته کول سنت دي. اوس که لمونځ ګزاری له هغه څخه لاندي کړي، نو مکروه تنزیهي دي. (مراقی الفلاح مع الطحطاوي ص ۱۸۹)

## د لمانځه په دوران کي په جامه یا بدن لاس وهل

> ۵۲۴ ﴿ كَعَبَثِهٖ بِثَوْبِهٖ وَبَدَنِهٖ ﴾ (۳) لکه لوبي کول په خپلو جامو (۴) او بدن سره.

**لغات**: ﴿عَبَث﴾ د سمع د باب مصدر دی عَبِثَ يَعْبَثُ عَبَثًا: لوبي او بازي کول. په لوبو لګیا کېدل. نو او بې فایدې کار کول.

**تشریح:** دلمانځه په حالت کي د جامې یا بدن په یو حصه لوبې کول یعني هسې په جامه یا بدن لاس پورې کول او لاس په وهل مکروه تحریمي دي. مثلاً د بعضې خلکو دا عادت وي چي په لمانځه کي یې زیات پام او توجه په خپله جامه کي وي او له رکوع او سجدې څخه د راپورته کېدلو او کښېنستلو په وخت کي هر وخت د لمن او لستوڼي یا د شادر هیئت سموي. همدارنګه د لمانځه په دوران کي د بدن یو حصه مږل مثلاً د ږیرې وروېښتان په لاس کي راخیستل، یا له نوکانو څخه خیره ایستل. یا پزه مږل دا ټوله په عبث فعل کي داخل دي او مکروه تحریمي دي.

## د لمانځه په دوران کي د سجدې ځای بار، بار صفا کول

﴿۵۳۵﴾ وَقَلْبُ الْحَصٰى إِلَّا لِلسُّجُوْدِ مَرَّةً (۵) او شګي اړول (لیرې کول) مګر د سجدې لپاره یو وار.

**لغات:** ﴿الحَصٰى﴾ دا لفظ د حاء په "فتحه" سره دی: شګي. واحد: حَصَاةٌ.

**تشریح:** که د سجدې پر ځای شګي او ډبرې وي چي د هغوی په وجه سجده کول مشکل وي. نو د یو وار لیرې کولو او صفا کولو اجازه یې سته لېکن که بار، بار یې هسې صفا کوي. نو دا فعل مکروه تحریمي دي، صاحب د درمختار رَحِمَهُ الله لیکلي دي چي اولیٰ او افضل همدا ده چي بالکل صفا نه کړل سي. (در مختار مع الشامي ج:۱، ص:۶۰۰)

## په ګوتو ټکان کول (له ګوتو څخه ټکان ایستل)

﴿۵۳۶﴾ وَفَرْقَعَةُ الْأَصَابِعِ (۶) او په ګوتو ټکان کول.

**لغات:** ﴿فرقعة﴾ د فَعْلَلَةٌ د باب مصدر دی: په ګوتو ټکان کول، له ګوتو څخه ټکان ایستل.

**تشریح:** دلمانځه په دوران کي (د ګوتي کشولو یا کښېکښلو په ذریعه) په ګوتو ټکان کول مکروه تحر[illegible] دي، همدارنګه څوک چي د لمانځه په انتظار کي ناست وي، یا و مسجد ته روان وي، د هغه لپ[illegible] ناسې کول مکروه دي، او د بعضو په نېز له لمانځه څخه دباندي مکروه تنزیهي دي، لېکن که د[illegible] په وجه وي مثلاً بندونو ته آرام ورکول مقصود وي، نو مکروه نه دي. (انوار الایضاح. عمدة الفقه)

## ګوتې په ګوتو کي اچول

﴿۵۳۷﴾ وَتَشْبِيْكُهَا (۷) او ګوتي یو په بل کي اچول (دیوه لاس ګوتي د بل لاس په ګ[illegible] کول).

**لغات:** ﴿تشبیک﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: دیوه لاس ګوتي د بل لاس په ګوتو دننه کول[illegible]

**تشريح**: د لمانځه په دوران کي د يوه لاس ګوتي د بل لاس په ګوتو کي اچول هم مکروه تحريمي دي.

او د لمانځه د انتظار په حالت کي، يا مسجد ته د روانتيا په حالت کي هم دا منع دي؛ ځکه په دې سره سستي پيدا کيږي او لمونځ ګزار او منتظر ته داسي کيفيت نه اختيارول پکار دي کوم چي سستي پيدا کوي.

**يادونه**: د لمانځه او د هغه له متعلقه اعمالو څخه بغير بل ځای په صحيح مقصد سره ګوتي په ګوتو کي اچول يا په ګوتو ټکان منع نه دي. (شامي ج:۲. ص:۳۵۲)

## د لمانځه په دوران کي پر تشي لاس ايښوول

۳۸ ﴿وَالتَّخَصُّرُ (۸) او پر تش (ډډه) لاس ايښوول.

**لغات**: ﴿التخصر﴾ د تفعل د باب مصدر دي: پر تش (ډډه) لاس ايښوول.

**تشريح**: د لمانځه په دوران کي پر خپل تشي لاس ايښوول مکروه تحريمي دي. د لمانځه څخه بغير په بل حالت کي پر تشي لاس ايښوول مکروه تنزيهي دي. (شامي ج:۲. ص:۳۵۲)

(ځکه دا د شيطان او دوږخيانو انداز دی، يعني کله چي دوی د محشر په ورځ له دوږو درپدو څخه ستړي سي، نو د ځان هوسايي لپاره به داسي دريږي). (انوار الايضاح)

## په لمانځه کي شا وخوا مخ اړول

۳۹ ﴿وَالِالْتِفَاتُ بِعُنُقِهِ (۹) او خپله غاړه اړول (د غاړي او مخ په اړولو سره کتل).

**لغات**: ﴿الالتفات﴾ د افتعال د باب مصدر دی: توجه کول (پاملرنه کول)، د يو شي و طرف ته مخ اړول.

**تشريح**: د لمانځه په دوران کي مخ پر قبله ساتل ضروري دي، او مخ راسته يا چپه طرف ته داسي اړول (کږول) چي ټوله مخ له قبلې څخه وګرځي، نو دا مکروه تحريمي دي او بغير له مخ اړولو څخه صرف د سترګو له کونجانو څخه کتل بېله ضرورته خو مکروه تنزيهي دي او که د ضرورت په وجه وي، نو مباح دي. (عمدة الفقه بحوالة شفاء الارواح)

## په لمانځه کي پر کوناټو کښېنستل او اقعاء کول

۴۰ ﴿وَالْإِقْعَاءُ (۱۰) او د سپي په شان کښېنستل.

**لغات**: ﴿الاقعاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: پر مقعده (کوناټو) کښېنستل او پنډۍ درول.

**تشریح**: د لمانځه په دوران کي د یوه لاس ګوتي د بل لاس په ګوتو کي اچول هم مکروه تحریمي دي.

او د لمانځه د انتظار په حالت کي، یا مسجد ته د روانتیا په حالت کي هم دا منع دي: ځکه په دې سره سستي پیدا کیږي او لمونځ ګزار او منتظر ته داسي کیفیت نه اختیارول پکار دي کوم چي سستي پیدا کوي.

**یادونه**: د لمانځه او د هغه له متعلقه اعمالو څخه بغیر بل ځای په صحیح مقصد سره ګوتي په ګوتو کي اچول یا په ګوتو ټکان منع نه دي. (شامي ج:۲. ص:۳۵۲)

## د لمانځه په دوران کي پر تشي لاس ایښوول

| |
|---|
| ۰ ۳۸ ﴿ وَالتَّخَصُّرُ (۸) او پر تش (ډډه) لاس ایښوول. |

**لغات**: ﴿التخصر﴾ د تفعل د باب مصدر دی: پر تش (ډډه) لاس ایښوول.

**تشریح**: د لمانځه په دوران کي پر خپل تشي لاس ایښوول مکروه تحریمي دي. د لمانځه څخه بغیر په بل حالت کي پر تشي لاس ایښوول مکروه تنزیهي دي. (شامي ج:۲. ص:۳۵۱)

(ځکه دا د شیطان او دوږخیانو انداز دی، یعني کله چي دوی د محشر په ورځ له دېرو دربدو څخه ستړي سي، نو د ځان هوسایي لپاره به داسي دریږي). (انوار الایضاح)

## په لمانځه کي شا وخوا مخ اړول

| |
|---|
| ۰ ۳۹ ﴿ وَالِالْتِفَاتُ بِعُنُقِهِ (۹) او خپله غاړه اړول (دغاړي او مخ په اړولو سره کتل). |

**لغات**: ﴿الالتفات﴾ د افتعال د باب مصدر دی: توجه کول (پاملرنه کول)، د یو شي وطرف ته مخ اړول.

**تشریح**: د لمانځه په دوران کي مخ پر قبله ساتل ضروري دي، او مخ راسته یا چپه طرف ته داسي اړول (کږول) چي ټوله مخ له قبلې څخه وګرځي، نو دا مکروه تحریمي دي او بغیر له مخ اړولو څخه صرف د سترګو له کونجانو څخه کتل بېله ضرورته خو مکروه تنزیهي دي او که د ضرورت په وجه وي، نو مباح دي. (عمدة الفقه بحوالة شفاء الارواح)

## په لمانځه کي پر کوناټو کښېنستل او اقعاء کول

| |
|---|
| ۰ ۴۰ ﴿ وَالْإِقْعَاءُ (۱۰) او د سپي په څېر کښېنستل. |

**لغات**: ﴿اقعاء﴾ د افعال د باب مصدر دی، پر مقعده (کوناټو) کښېنستل او پنډۍ درول.

**تشريح:** په لمانځه کي په التحيات کي او د دواړو سجد په مينځ کي د سپي په څېر کېښتل مکروه تحريمي دي. د اقعاء مطلب دا دی چي مقعده (يا په بله وينا: دواړه کوناټي) پر ځمکه کېښېږدي او دواړه پنډۍ او ورنونه (يا په بله وينا: دواړه زنګونان) ودروي او د خپلي سينې سره يې جوخت کړي او لاسونه پر ځمکه کېښېږدي، داسي کېښېښتل د ټولو امامانو په نېز مکروه تحريمي دي. (در مختار مع الشامي ج: ۲. ص: ۴۱۰)

## ليخي پر ځمکه غوړول

۵۲۱ ﴿ وَافْتِرَاشُ ذِرَاعَيْهِ (۱۱) او خپل دواړي ليخي (پر ځمکه) هواروِل (غوړول).

**لغات:** ﴿افتراش﴾ د افتعال د باب مصدر دی: غوړول، هوارول. ﴿ذراعيه﴾ تثنيه د ذِرَاعٌ ده چي د هغه يو معنیٰ ده: ليخه. له څنګلي څخه د ګوتو تر سره پوري د لاس حصه.

**تشريح:** د سجدې په حالت کي د سړي لپاره خپل ليخي او څنګلي پر ځمکه لګول او هوارول مکروه تحريمي دي، خو که څوک اوږده سجده کوي او هغه پر سنت طريقه د سجدې کولو په وجه ستړی سي، نو د هغه لپاره دا جائز دي چي څنګلي پر خپلو زنګنو ولګوي. خو د ليخو د هوارولو اجازه ورته نسته. بلکي داسي کول مکروه تحريمي دي؛ ځکه په دې کي د سپي د ناستي (إقعاء الکلب) سره مشابهت راځي. (تحفة الالمعي ج: ۲. ص: ۷۹)

## د لمانځه په دوران کي لستوڼي پورته ساتل

۵۲۲ ﴿ وَتَشْمِيرُ كُمَّيْهِ عَنْهُمَا (۱۲) او خپل دواړه لستوڼي رانغښتل له خپلو دواړو ليخو څخه.

**لغات:** ﴿تشمير﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: کپړه لوړه راپورته کول. لستوڼي رانغښتل. ﴿کُمّيه﴾ تثنيه د کُمٌّ ده: لستوڼي، د عنهما ضمير ذراعيه ته راجع دی.

**تشريح:** په داسي حالت کي لمونځ کول چي لستوڼي پورته (رانغښتل سوي) وي مکروه تحريمي دي. برابره ده تر څنګلو پوري وي او که نه وي د ظاهر قول مطابق. (طحطاوي)

او که د لمانځه څخه مخکي يې دا ودس کولو لپاره لستوڼي پورته کړي وي او په همدې حالت کي لمونځ شروع کړي. نو په دې کي اختلاف دی. د بعضو په نېز مکروه تحريمي دي او د بعضو په نېز نه دي. او که د رکعت تېرېدو له بېري څخه لستوڼي کښته نه کړي او په جماعت کي شامل سي. نو همدغه اختلاف دی او د هغه لپاره افضل دا ده چي په معمولي عمل (عمل قليل) سره په لمانځه کي لستوڼي کښته کړي. (شامي. عمدة الفقه)

## پوازې په پرتوګ کې لمونځ کول

﴿۵۴۳﴾ وَصَلٰوتُهٗ فِی السَّرَاوِیْلِ مَعَ قُدْرَتِهٖ عَلٰی لُبْسِ الْقَمِیْصِ (۱۳) او د ده لمونځ کول (پوازې) په پرتوګ کې، سره د قدرت لرلو د کمیس پر اغوستلو.

**لغات**: ﴿السَّرَاوِیْل﴾ پرتوګ، جمع: سَرَاوِیْلَاتٌ.

**تشریح**: یعني که دلمونځ ګزار سره کمیس او جامه موجوده وي، خو بیا هم په لمانځه کې یې فقط پرتوګ اغوستی وي، نو دا مکروه تحریمي دي. (طحطاوي، حلبي)

## په اشاره سره د سلام جواب ورکول

﴿۵۴۴﴾ وَرَدُّ السَّلَامِ بِالْإِشَارَةِ (۱۴) او د سلام جواب ورکول په اشاره سره.

**تشریح**: د لمانځه په دوران کې د لاس یا سر په اشاره سره (دژبې له ښوررلو څخه بغیر) د سلام جواب ورکول مکروه تنزیهي دي، او که په ژبه سره جواب ورکړي، نو لمونځ فاسدیږي. (در مختار)

## بــــلـه عذره چارزانو کښېنستل

﴿۵۴۵﴾ وَالتَّرَبُّعِ بِلَا عُذْرٍ (۱۵) او بېله عذره چار زانو کښېنستل.

**لغات**: ﴿التربع﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: إدخال الساقین تحت الفخذین (دواړه پنډۍ تر دواړو ورنو لاندې کول) یعني چار زانو (چار دانو) کښېنستل.

**تشریح**: مسئله دا ده چې د لمانځه په ناسته کې له څه عذر څخه بغیر چار زانو کښېنستل مکروه تنزیهي دي. او له لمانځه څخه بهر مکروه نه دي؛ ځکه له نبي کریم ﷺ او له حضرت عمر ﷛ څخه همداسې ناسته ثابته ده.

## د سر وېښتان سره ټـولول او تـړل

﴿۵۴۶﴾ وَعَقْصُ شَعْرِهٖ (۱۶) او خپل وېښتان (دچوټي په شېر) تړل (یعني پر سر یا پر شته سره جمع کول او تړل).

**لغات**: ﴿العَقص﴾ د ضرب د باب اسم مصدر دی، له وېښتانو څخه چوټي جوړول، یا وېښتان وودل.

**تشریح**: "عقص" مکروه دی یعني وېښتان پر سر یا پر شته سره جمع کول او په یو شي سره تړل. د حدیثو په موجب سره دا مکروه تحریمي کېدل پکار دي، لېکن اجماع پر دې ده چې دا فعل مکروه تنزیهي دي (عمدة الفقه). لاندیني ټول صورتونه په "عقص" کې راځي:

① یو دا چي لمونځ ګزار د سر ټوله ورېښتان پر ککرۍ سره را ټول کړي او په کنهورو یې ومنلوي، ② یا دواړه پېکي یا څڼي د ګلابتون یا بل شي په ذریعه پر سر وپېچي. چي ځیني وختونه ښځي هم دغسي کوي، ③ یا دا چي ټوله وربښتان د چوټي په څېر شاته وتړي د دې لپاره چي د سجدې په وخت کي پر ځمکه نه ولګیږي، دا ټوله مکروه دي، نو که څوک له دې څخه یو صورت اختیار کړي، او په هغه حالت کي لمونځ وکړي، نو لمونځ یې مکروه دی. (فتح المصلي)

## د سر مینځ لڅ پرېښوول

﴿۵۳۷﴾ وَالْاِعْتِجَارُ وَهُوَ شَدُّ الرَّأْسِ بِالْمِنْدِيْلِ وَتَرْكُ وَسْطِهَا مَكْشُوْفًا (۱۷) او اعتجار کول او اعتجار د سر تړل دي په دسمال سره او د سر مینځ لڅ پرېښوول دي (یعني دسمال اورومال یا عمامه داسي سر سر تړل چي له مینځ څخه سر ښکاره وي، دا مکروه دي).

**لغات**: ﴿الاِعْتِجَار﴾ د افتعال د باب مصدر دی: ① لنکوټه پېچل. ② "مِعجر" (یعني سر پېچک) پر سر تړل) له "معجر" (سر پېچک) څخه هغه د دسمال په څېر کوچنی ټوکر مراد دی چي په ځینو سیمو کي یې ښځي د سر پر اطرافو پېچي چي د سر مینځ یې خالي پاته وي. ﴿مِنْدِيْل﴾ دسمال، رومال. جمع: مَنَادِيْل.

**تشریح**: د لمونځ ګزار لپاره دا هم مکروه دي چي دسمال وغیره په سر باندي داسي وپېچي چي د سر ککرۍ (پورتنۍ حصه) ښکاره پرېږدي، نو په دې هیئت سره لمونځ کول مکروه تحریمي دي. (شامي)

## جامه را ټولول

﴿۵۳۸﴾ وَكَفُّ ثَوْبِهِ (۱۸) او خپله جامه را ټولول.

**لغات**: ﴿کَفّ﴾ د نصر د باب مصدر دی، کَفَّ يَكُفُّ كَفًّا: د دې باب ډېري معناوي دي چي د صلې په بدلون سره یې معنیٰ هم بدلیږي کله چي د دې په صله کي "ثَوْب" راسي نو معنی یې ده: کپړه سره راټولول. کپړه له خاوري وغیره څخه راګرځول.

**تشریح**: فرمایي چي له رکوع او سجدې څخه د راپورته کېدلو او کښېنستلو په وخت کي لمن او جامه راټولول چي ککره نه سي دا هم مکروه تحریمي دي. یا مثلاً که ځیني خلک چي کله سجدې ته ځي نو خپل د مخ یا شا کپړه را پورته کړي. برابره د عادت په توګه وي یا له خاورو څخه د کپړې د ساتلو لپاره وي. په هر صورت کي دا مکروه تحریمي دي. (شامي، شفاء الارواح)

## په سر یا اوږو باندي کپړه ځړېدونکې پرېښوول

﴿۵۳۹﴾ وَسَدْلُهُ (۱۹) او جامه ځړېدلې پرېښوول.

**لغات**: ﴿سَدل﴾ د نصر او ضرب د باب مصدر دی: کپړه وغیره ځړول.
**تشریح**: د لمانځه په حالت کي څادر (پټو) یا داسي بل شی پر ځان له پېچلو څخه بغیر پر سر یا پر اوږو داسي اچول چي دواړه طرفونه ایله ځړېږي مکروه تحریمي دي. دې ته سدل وایي. همدا حکم په هغه صورت کي هم دی کله چي چپنه یا کوټ وغیره صرف پر اوږو واچوي او په لستونو یې لاس دننه نه کړي (او د لمانځه څخه بهر دا کیفیت مکروه تنزیهي دی). (در مختار مع الشامي)

## په څادر وغیره کي ځان په پوره توګه پېچل

| |
|---|
| ۱۱۰ و الاندراج فيه بحيث لا يخرج يديه (۲۰) او په جامه کي داسي ځان پېچل (ځان پکښي نغښتل) چي خپل لاسونه نه سي را ایستلای. |

**لغات**: ﴿اندراج﴾ د انفعال د باب مصدر دی، د دې باب په صله کي چي فِيْ راسي لکه دلته فِيْه، نو معنی یې ده: پکښي داخلېدل. (ځان) پکښي پېچل، پکښي نغښتل.
**تشریح**: چادر یا داسي بله کپړه پر ځان داسي پېچل چي د لاسونو د را ایستلو ځای پکښي پاته نه سي (چي له هغه څخه لاسونه را وېستل سي)، نو په داسي حالت کي لمونځ کول مکروه تحریمي دي. (شامي)

## اوږه ښکاره ساتل

| |
|---|
| ۱۱۱ و جعل الثوب تحت إبطه الأيمن (۲۱) او کپړه تر خپل راسته بغل لاندي را وېستل و طرح جانبيه على عاتقه الأيسر او د هغې دواړه طرفونه پر چپه اوږه اچول. |

**لغات**: ﴿إبط﴾ بغل. تخرګ. جمع: آباط. ﴿عَاتِق﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغوی څخه یوه معنی ده: اوږه (ووږه). په اصل کي د اوږې هغه حصې ته ویل کېږي چي پر هغه څادر وغیره اچول کېږي یعني د اوږې مینځ (مَابَيْنَ الْمَنْكِبِ وَالْعُنُق. موضع الرداء من المنكب). (معجم الوسيط. معجم لغة الفقهاء)
**تشریح**: کپړه په داسي توګه اغوستل چي له راسته بغل څخه لاندي را وېستل سي او د کپړې دواړه طرفونه پر چپه اوږه واچول سي (دې ته اضطباع وایي کوم چي د احرام په حالت کي د عمرې او حج د طواف لپاره کېږي). په لمانځه کي داسي کول یا دواړه اوږې ښکاره کول مکروه تنزیهي دي. (انوار الایضاح. شفاء الارواح)

## له ولاړي څخه بغیر په بل حالت کي قرائت کول

| |
|---|
| ۱۱۲ و القراءة في غير حالة القيام (۲۲) او قرائت کول د ولاړي له حالت څخه بغیر بل حالت کي. |

**تشريح**: له قيام (ولاړي) څخه بغير په بل حالت کي قرآن شريف لوستل مثلاً په رکوع يا سجده او قعده کي قرائت کول مکروه تحريمي دي، او دا خبره د تلاوت له واجباتو څخه ده، د لمانځه له واجباتو څخه نه ده، لهذا د داسي کس لمونځ خو صحيح کيږي او سجدهٔ سهو هم نه واجبيږي، خو قصداً اسي کول مکروه تحريمي دي. (حلبي ص:۳۵۷)

**يادونه**: په رکوع کي د قرآن لوستلو دوه صورتونه دي: ① يو دا چي د قيام په حالت کي قرائت وکړل سي او د قرائت له ختمېدو څخه مخکي رکوع ته ولاړ سي او په همدې حالت کي قرائت پوره کړي، نو دا مکروه تنزيهي دي (عمدة الفقه)، ② او بل دا چي صرف په رکوع کي قرائت وکړي، دا مکروه تحريمي دي (پورتنی حواله)، خو په دواړو صورتونو کي لمونځ نه فاسديږي او همدا حکم په سجده او قعده کي د قرائت کولو دی. (تحفة الالمعي ج:۲، ص:۵۸، ۵۹)

## په نوافلو کي اول رکعت اوږدول

| |
|---|
| ﴿۵۵۳﴾ وَإِطَالَةُ الرَّكْعَةِ الْأُولَىٰ فِي التَّطَوُّعِ (۲۳) او په نفلو کي اول رکعت اوږدول. |

**تشريح**: د سنتو او نفلو په رکعتونو کي برابر تلاوت کول پکار دي، لهذا که په مقدار کي يې زيات فرق راسي چي په اول رکعت کي د دويم رکعت په نسبت زيات قرائت وکړي. نو دا عمل مکروه تنزيهي دی.

## دويم رکعت اوږدول

| |
|---|
| ﴿۵۵۴﴾ وَتَطْوِيْلُ الثَّانِيَةِ عَلَى الْأُوْلَىٰ فِيْ جَمِيْعِ الصَّلٰوتِ (۲۴) او دويم رکعت پر اول رکعت اوږدول په ټولو لمونځونو کي. |

**تشريح**: د هر لمانځه هغه که نفل وي او که فرض دويم رکعت له اول رکعت څخه د دريو آيتونو يا تر دې زيات اوږدول مکروه تنزيهي دي او که تر دې کم وي، نو مکروه نه دي. (طحطاوي)

## د سورت تکرار

| |
|---|
| ﴿۵۵۵﴾ وَتَكْرَارُ السُّوْرَةِ فِيْ رَكْعَةٍ وَاحِدَةٍ مِنَ الْفَرْضِ (۲۵) او يو سورت مکرر (بار، بار) ويل د فرضو په يوه رکعت کي. |

**لغات**: ﴿تکرار﴾ د نصر د باب اسم مصدر دی: كَرَّ يَكُرُّ كَرًّا وكُرُوْرًا وتَكْرَارًا: يو عمل څو ځله کول(مکرر کول)، بيا، بيا کول (بار، بار کول يا ويل)، راګرځېدل.

**تشريح**: صرف يو سورت په يوه رکعت کي بار، بار ويل په فرضو کي مکروه دي. په نفلو کي څه پروا نسته، ځکه مصنف رَحِمَهُ الله د "في ركعة واحدة" قيد لګولی دی: ځکه يو سورت په اول رکعت کي

او بیا په دویم رکعت کي ویل څه پروا نه لري، خو د کوم ځای چي نور سورتونه یاد وي، د هغه لپاره داسي کول ښه نه دي او مکروه تنزیهي دي، خو که څوک په هېره داسي وکړي نو څه پروا نشته. (طحطاوي)

## د ترتیب خلاف قرائت کول

﴿۵۵۶﴾ وَقِرَاءَةُ سُوْرَةٍ فَوْقَ الَّتِيْ قَرَأَهَا (۲۶) او داسي سورت ویل کوم چي لوړ (مخکي) وي له هغه سورت څخه کوم چي لمونځ ګزار ویلی وي (مثلا په اول رکعت کي قُلْ هُوَ اللهُ ووایي او په دویم رکعت کي تَبَّتْ يَدَا ووایي. دا هم مکروه دي).

**تشریح**: په لمانځه کي قرآن مجید چپه ویل یعني په یوه رکعت کي یو سورت ویل او په دویم رکعت کي تر هغه مخکي سورت ویل مثلاً په اول رکعت کي سورة الاخلاص او په دویم کي سورة اللهب "تبت یدا" یا سورة النصر یا سورة الکوثر وغیره ویل، دا مکروه دي، په لمانځه کي سورتونه په ترتیب سره ویل د تلاوت له واجباتو څخه دي، لهذا کوم څوک چي یې خلاف ترتیب وایي لکه پورتني مثال، نو د هغه لمونځ خو صحیح کیږي او سجدهٔ سهو هم نه واجبیږي، خو قصداً داسي کول مکروه تحریمي دي، لېکن که په هېره داسي وسي، نو مکروه نه دي، بلکي په هېره که مخکیني سورت شروع کړي، نو بیا یې پرېښوول مکروه دي. (تحفة الالمعي، عمدة الفقه)



**سوال**: که څوک دلمانځه په اول رکعت کي په هېره آخري سورت "قُل اعوذ برب الناس" ووایي، نو اوس په دویم، دریم او څلورم رکعت کي به کوم سورت وایي؟.

**جواب**: همدا سورة الناس دي په هر رکعت کي ووایي او لمونځ دي پوره کړي. (فتاویٰ محمودیه، مراقی الفلاح)

## د دوو سورتونو په مینځ کي فصل کول

﴿۵۵۷﴾ وَفَصْلُهُ بِسُوْرَةٍ بَيْنَ سُوْرَتَيْنِ قَرَأَهُمَا فِيْ رَكْعَتَيْنِ (۲۷) او په یو (کوچني) سورت سره فصل کول د هغه دوو سورتونو په مینځ کي کوم چي یې په دوو رکعتونو کي ویلي وي (مثلا په اول رکعت کي قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُوْنَ ووایي او په دویم کي رکعت کي تَبَّتْ يَدَا ووایي او په مینځ کي سورة النصر پرېږدي. دا هم مکروه دي).

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي که په دوو رکعتونو کي دوه داسي سورتونه ووایي چي د هغه دوارو سورتونو په مینځ کي د یوه سورت فصل راشي (یا په بله ورنا دا چي تر یوه سورت وروسته راروان

سورت پرېږدي او ترهغه وروسته والا سورت ووايي)، نو دا مکروه دي که چيري هغه د مينځ پرېښوول سوی سورت کوچنی وي. مثلاً په اول رکعت کي سورة الکافرون ووايي او په دويم رکعت کي تبّت يدا ووايي او په مينځ کي سورة النصر پرېږدي، نو دا مکروه دي، او که هغه پرېښوول سوی سورت غټ سورت وي يعني له شپږو آيتو څخه زيات وي، يا د دوو کوچني سورتونو فاصله وي (يعني په مينځ کي دوه کوچني سورتونه پرېښوول سي)، نو مکروه نه دي، مثلاً له والتّين څخه وروسته إنّا أنزلناه ووايي (او په مينځ کي سورة العلق اقرأ باسم ربك الذي پرېږدي) ، يا مثلاً له لِاِيْلٰفِ قُرَيْش څخه وروسته إن أعطينٰك ووايي، يا له قُل يا أيها الكافرون څخه وروسته قُل هو الله أحد ووايي، نو مکروه نه دي (عمدة الفقه بحوالة شفاء الارواح). او د مفتي سعيد پالنپوري مدّ ظلهٗ تحقيق دا دی چي مطلقاً د يوه سورت فصل مکروه دی برابره ده هغه کوچنی سورت وي او که لوی سورت وي. (حاشيه امداد الفتاوی)

## په لمانځه کي قصداً خوشبويي بوييول

﴿۵۵۸﴾ وَشَمُّ طِيْبٍ (۲۸) او خوشبويي بوييول.

**لغات:** ﴿شَمّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: بوييول (بوی کول).

**تشريح:** د لمانځه په دوران کي قصداً خوشبويي بوييول (مثلاً په عطرو خيشته پمبه په پزه کي ايښوول) مکروه تنزيهي دي، لېکن که څوک داسي ځای لمونځ کوي چي هلته د عطرو بوی او خوشبويي وي (مثلاً په مسجد کي ګرتي لګول سوي وي يا يو چا تېز عطر يا سپنت لګولي وي) او هغه خوشبويي لمونځ ګزار ته په لمانځه کي محسوسيږي، نو په دې کي کراهت نسته. (مراقی الفلاح مع الطحطاوي)

## په لمانځه کي باد پکه (پيک) وهل

﴿۵۵۹﴾ وَتَرْوِيْحُهٗ بِثَوْبِهٖ (۲۹) او هوا (باد) کول په خپله کپړه سره أَوْ مِرْوَحَةٍ (۳۰) يا (باد کول) په پيک سره مَرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ يو وار يا دوه واره.

**لغات:** ﴿ترويح﴾ د دې لفظ معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: باد کول. باد پکه وغيره ښورول چي هوا وکړي. پيک وهل. ﴿مِرْوَحَة﴾ د ميم په کسره سره: باد پکه، پيک. جمع: مِرْوَحَات، مَرَاوِح. او د ميم په فتحه سره يعني د مَرْوَحَةٌ معنیٰ ده: دښت، بيابان. جمع: مَرَاوِيْح.

**تشريح**: دلمانځه په دوران کي دلمونځ گزار لپاره په خپله لمن یا په پیک وغیره سره هوا کول یو یا دوه واره مکروه تحریمي دي؛ ځکه دومره مقدار عمل کثیر نه دی او که دري واره یا تر دې زیات داسي وکړي، نو دعملِ کثیر کېدلو په وجه لمونځ فاسدیږي. (عالمگیري)

لېکن په طحطاوي کي دي چي معتمد قول دا دی چي د پیک او بادپکې په وهلو سره مطلقاً لمونځ فاسدیږي، که څه هم یو وار وي، ځکه که یو څوک دلیري څخه دا کس وویني نو پر هغه یې د لمونځ کونکي گومان نه راځي (نو دعملِ کثیر په تعریف کي داخل سو چي په هغه سره لمونځ فاسدیږي). په خلاف دلمن یا لستوني په ذریعه د هوا کولو چي په هغه سره لمونځ نه فاسدیږي، بلکي مکروه کیږي کله چي له دریو وارو څخه کم وي.

## په سجده کي د پښو د گوتو حکم

﴿٥٦٠﴾ وَتَحْوِيْلُ أَصَابِعِ يَدَيْهِ أَوْ رِجْلَيْهِ عَنِ الْقِبْلَةِ فِي السُّجُوْدِ وَغَيْرِهِ (٣١) او اړول د خپلو لاسو گوتي (٣٢) یا د خپلو پښو گوتي له قبلې څخه په سجده او نورو (ارکانو) کي.

**تشريح**: بعضي خلک په سجده کي که څه هم دواړه پښې اړدي، خو گوتي یې له قبلې څخه اوښتي وي یعني د قبلې وطرف ته نه وي، محض پر ځمکه لگېدلي وي، دا مکروه تنزیهي دي چي د سنت خلاف دی. سنت طریقه دا ده چي په ټوله سجده کي دواړه پښې داسي ټینگي ولکوي چي گوتي وپېچل سي یعني د قبلې وطرف ته واړول سي، لهذا که یو څوک په سجده کي گوتي له قبلې څخه واړوي یا په یو بل رکن کي، نو داسي کول مکروه تنزیهي دي. (مراقی الفلاح مع الطحطاوي)

﴿٥٦١﴾ وَتَرْكُ وَضْعِ الْيَدَيْنِ عَلَى الرُّكْبَتَيْنِ فِي الرُّكُوْعِ (٣٣) او پرېښوول د لاسونو ایښوول پر دواړو زنگنو په رکوع کي (یعني په رکوع کي چي چیري لاس ایښوول سنت دي ایمني پر دواړو زنگنو أغلته نه ایښوول مکروه دي).

**تشريح**: په رکوع کي دواړه لاسونه پر زنگنو ایښوول او په هغوی سره زنگونان نیول سنت دي، لهذا که یو څوک دا سنت پرېږدي، نو مکروه تنزیهي دي. همدارنگه د دواړو سجدو په مینځ کي د ناستي یا د التحیات په حالت کي دواړه لاسونه پر ورنو نه ایښوول، یا د قیام (ولاړي) په حالت کي له تکبیرِ تحریمه څخه وروسته چپه لاس په راسته لاس باندي ایښوول، دا ټوله په مکروهِ تنزیهي کي داخل دي. (مراقی الفلاح)

## په لمانځه کي اړږمی کښل

﴿ ۵۶۲ ﴾ وَالتَّثَاؤُبُ (۳۴) او اړږمی کول (اړږمی کښل).

**لغات:** ﴿التثاؤب﴾ اړږمی، په جسم کي د سُستیا او خوب راتللو په وجه خوله خلاصېدل.

**تشریح:** په لمانځه کي قصداً اړږمی کښل مکروه تحریمي دي، او که خود بخوده اړږمی راسي، نو پرواننه لري، خو تر څو چي ممکنه وي، د هغه بندول مستحب دي، لهذا که هغه بنده نه کړي، نو مکروه تنزیهي دي. په لمانځه کي د اړږمی بندولو طریقه دا ده چي خپل شونډان په غاښو سره نیولي وساتي بیا هم که هغه نه ودرېږي، نو پر خوله دي لاس کښېږدي، خو ښکاره دي وي چي تر څو د خولې په نیولو سره اړږمی درېدلای سي، پر خوله لاس اېښوول مکروه دي.

**فایده:** اړږمی د معدې له ډکوالي او دیدن له ثقل څخه پیدا کیږي او په حدیث کي دي ته د شیطان له طرفه ویل سوي دي، علماؤ د اړږمی بندولو مجرّبه طریقه دا لیکلې ده چي د اړږمی راتللو په وخت کي دي په زړه کي دا تصور وکړي چي انبیاؤ ته هیڅکله اړږمی نه ده راغلې او هغوی له دې څخه محفوظ وه، نو سملستي به اړږمی ودرېږي، په شامي (ط: عثمانیه ج:۱، ص:۴۴۶) کي د مذکوره طریقې عبارت داسي نقل سوی دی: "الطریق في دفع التثاؤب أن یخطر بباله أن الأنبیاء علیهم السلام ما تثاءبوا قط، قال القدوري: جرّبناه مراراً فوجدنا کذٰلك آه، قلتُ وقد جرّبته أیضاً فوجدته کذٰلك".

## په لمانځه کي سترګي پټول

﴿ ۵۶۳ ﴾ وَتَغْمِيضُ عَيْنَيْهِ (۳۵) او خپلي سترګي پټول (بندول).

**لغات:** ﴿تغمیض﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: پټول، بندول.

**تشریح:** د لمانځه په دوران کي بېله عذره سترګي پټول مکروه تنزیهي دي. لېکن که د توجه سمبللو لپاره سترګي پټي کړي او د سترګو په خلاصولو سره د هغه په توجه او خشوع کي فرق راځي او د سترګو په پټولو سره دا ورته حاصلیږي او ښه یې زړه لګیږي. نو په داسي صورت کي د سترګو په پټولو کي هیڅ کراهت نسته بلکي ښه دي. خو بیا هم تو له لمونځ دي په پټو سترګو نه کړي، بلکي د ضرورت په وخت کي دي یې پټوي. (عمدة الفقه، طحطاوي)

## په لمانځه کي ستر ګي پورته کول

﴿۵۶۴﴾ وَ رَفْعُهُمَا لِلسَّمَاءِ (۳۶) او ستر ګي آسمان ته پورته کول (آسمان ته کتل).

**تشریح**: دلمانځه پـه دوران کـي دآسـمان وطـرف تـه سـترګي پورتـه کـول مکـروه تحریمـي دي. (طحطاوي)

## په لمانځه کي سره غځېدل (ځان کشول)

﴿۵۶۵﴾ وَالتَّمَطِّيْ (۳۷) او سره غځېدل (لاسونه کشول او سینه مخ ته را ایستل).

**لغات**: ﴿التمطي﴾ د تفعّل د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه یوه معنیٰ دا ده: سره غځېدل یعني خپل لاسونه کشول او سینه را ایستل.

**تشریح**: په لمانځه کي خپل لاسونه کشول او سینه مخ ته را ایستل، یا په بله وینا ځان کشول (د بدن ستړیا ایستل) مکروه تنزیهي دي؛ ځکه دا هم د سُستیا علامت دی، حال دا چي د لمانځه کي په حالت کي د انتهایي عاجزۍ او د خشوع او خضوع اظهار کول پکار دي، لهذا که څوک داسي کوي، نو دا سخته بې ادبي او د کراهت خبره ده. (مراقی الفلاح مع الطحطاوي)

## د عمل قلیل حکم

﴿۵۶۶﴾ وَالْعَمَلُ الْقَلِيْلُ (۳۸) او لږ عمل (لږ لاسوهنه) کول.

**تشریح**: د لمانځه په دوران کي بېله ضرورته عملِ قلیل هم مکروه تنزیهي دی، مثلاً په یوه لاس خپل سر ګرول، یا لمن سیده کول او داسي نور.

د عملِ قلیل په تعریف کي اختلاف دی، آسانه تعریف یې دا دی چي لیدونکی کس پر داسي لمونځ ګزار د نا لمونځ ګزار ګومان نه وکړي (بلکي د دې عمل په لیدلو سره یې بیا هم ګومان داوي چي هغه په لمانځه کي دی). (ایضاح الاصباح)

## په لمانځه کي بېله ضرورته سپږه وغیره وژل

﴿۵۶۷﴾ وَأَخْذُ قَمْلَةٍ وَقَتْلُهَا (۳۹) او سپږه نیول (۴۰) او هغه وژل.

**لغات**: ﴿قملة﴾ سپږه، شپږه (هغه حشره کوم چي د ورېښتانو یا جامو له خیرو څخه پیدا کیږي).

**تشریح**: دلمانځه په دوران کي که سپږه یا غوماشه لمونځ گزار ته تکلیف نه ورسوي، خو بیا هم هغه یې ووژني، نو دا مکروه تنزیهي دي، او د تکلیف رسولو په وخت کي د دوی په وژلو کي هیڅ کراهت نسته، په دې شرط چي د دوی په وژلو کي عملِ کثیر ته ضرورت نه پرېوځي. (عمدة الفقه)

## په لمانځه کي پزه یا خوله پټول

﴿۵٦۸﴾ وَ تَغْطِيَةُ أَنْفِهِ وَ فَمِهِ (۴۱، ۴۲) او خپله پزه او خوله پټول.

**تشریح**: دلمانځه په دوران کي پزه او خوله پټول مکروه تنزیهي دي، او که لمونځ گزار په څادر (پټو) وغیره سره خپل سر او د بدن اکثره حصه پټه کړي لکه نن سبا چي دیخ په موسم کي خلکو څادر وغیره پر ځانو پېچلی وي او په همدې حالت کي لمونځ کوي، نو په دې سره په لمانځه کي څه نقصان نه راځي، صرف خوله او پزه پټول مکروه تنزیهي دي. (مراقی الفلاح)

## په خوله کي داسي شی ایښوول کوم چي قرائت لره مانع وي

﴿۵٦۹﴾ وَوَضْعُ شَيْءٍ فِيْ فَمِهِ يَمْنَعُ الْقِرَاءَةَ الْمَسْنُوْنَةَ (۴۳) او په خپله خوله کي داسي شی ایښوول کوم چي سنت قرائت منع کوي (دسنت قرائت ویلو لپاره خنډ جوړېږي).

**تشریح**: صورت د مسئلې دا دی چي که لمونځ گزار داسي شی په خوله کي کېښېږدي (مثلا اټاټی وغیره) چي د هغه په وجه په قرائت مسنونه کي خلل راځي، نو دا مکروه تنزیهي دي، او که په قرائت واجبه کي خلل راځي، نو دا مکروه تحریمي دي. او که څه داسي شی په خوله کي کېښېږدي چي د هغه په وجه گردسره قرائت نه سي کولای او آواز نه راوځي، یا حروف داسي بدل سي چي بالکل معنیٰ یې بدله سي، نو په دې صورت کي لمونځ فاسدېږي. (طحطاوي)

## د لنگوټې پر ول یا پر تصویر سجده کول

﴿۵۷۰﴾ وَالسُّجُوْدُ عَلَىٰ كَوْرِ عِمَامَتِهِ وَعَلَىٰ صُوْرَةٍ (۴۴) او سجده کول پر وَلْ (پېچ) د خپلي لنگوټې (۴۵) او پر تصویر.

**لغات**: ﴿كَوْر﴾ دلنگوټې پېچ وتاو، وَلْ، جمع، أَكْوَار. ﴿صورة﴾ تصویر.

**تشریح**: دلنگوټې پر ول یعني پر هغه پېچ کوم چي پر تندي واقع وي بېله عذر سجده کول مکروه تنزیهي دي، او که څه عذر وي مثلاً ځمکه ډېره گرمه یا یخه وي، نو مکروه نه دي.

وعلى صورة: هماغه که د سجدې پر ځای دیو ساکښ تصویر وي، نو پر هغه سجده کول مکروه تحریمي دي؛ ځکه په دې کي د تصویر د عبادت سره مشابهت راځي، (د تصویر په مکله نور بحث او تفصیل به څه وروسته راسي). (طحطاوي علی مراقی الفلاح ص ۱۹۵)

## یوازې پر تندي سجده کول

﴿۵۷۱﴾ وَالْاِقْتِصَارُ عَلَى الْجَبْهَةِ بِلَا عُذْرٍ بِالْأَنْفِ (۴۶) او اکتفا کول (صرف) پر تندي بغیر له څه عذر لرلو څخه په پزه کې (یعني بېله عذره پزه نه لګول او صرف پر تندي سجده کول هم مکروه دي).

**لغات:** ﴿اقتصار﴾ دافتعال دباب مصدر دی: اکتفا کول.

**تشریح:** صرف پر تندي سجده کول او پزه نه لګول بېله عذره مکروه تحریمي دي، که عذر وي. نو بیا مکروه نه دي.

## په لاره کې لمونځ کول

﴿۵۷۲﴾ وَالصَّلٰوةُ فِي الطَّرِيْقِ (۴۷) او لمونځ کول په لاره کې.

**تشریح:** په لاره کې (دننه) لمونځ کول مکروه تحریمي دي؛ ځکه هلته په لمانځه کې توجه او اطمینان نه نصیب کېږي او د تېرېدونکو وطرف ته توجه اوړي او په لمانځه کې خلل راځي، لهذا د لارې څخه دې څه ګوښه لمونځ کول کېږي.

## په حمام کې لمونځ کول

﴿۵۷۳﴾ وَالْحَمَّامِ (۴۸) او (لمونځ کول) په حمام کې.

**لغات:** ﴿حمام﴾ حمام، دلمبېدو ځای (عمومي حمام)، پخوا به د بازار حمام داسې وو چې په مېنځ کې به یې حوض جوړ وو، او خلک به په لنګ یا پرتوګ کې پکښې لمبېدل او حمام والا به خپله مزدوري له هغوی څخه اخیستل.

**تشریح:** په حمام کې لمونځ کول مکروه تحریمي دي؛ ځکه هلته هم په توجه او اطمینان سره لمونځ نه سي کېدلای سي او هلته د موجوده کسانو د عورت ښکاره کېدو خطره هم سته او که ډېر خلک لمبېدو ته راسي، نو رش او ګڼه ګونه هم کېدلای سي او دغه شیان د زړه په حضور او توجه کې خلل اچوي. (تحفة الالمعي ج۲، ص۱۷۲)

## په بیت الخلا کې لمونځ کول

﴿۵۷۴﴾ وَفِي الْمَخْرَجِ (۴۹) او (لمونځ کول) په بیت الخلاء کې.

**لغات:** ﴿المخرج﴾ ځای د وتلو. مراد ځني د اودس ماتولو ځای دی یعني؛ تشی، بیت الخلاء.

**تشريح:** په بيت الخلاء کي لمونځ کول مکروه تحريمي دي؛ ځکه هلته نجاست او ګندګۍ نژدې وي، نو لمونځ ګزار که څه هم ځادر وغيره هوار کړي، خو د نجاست د قرب په وجه دا مکروه دي. (شامي ج:۱، ص:۶۱۲)

## په هديره کي لمونځ کول

﴿۵۷۵﴾ وَفِي الْمَقْبَرَةِ (۵۰) او (لمونځ کول) په هديره کي.

**تشريح:** په هديره کي هم لمونځ کول مکروه تحريمي دي؛ ځکه هلته لمونځ ګزار د قبرونو سره مخامخ کيږي او د قبر مخ ته لمونځ کول ممنوع دي. خو که داسي ځای لمونځ وکړي چي هلته قبرونه مخ ته نه وي، نو ګنجايش پکي سته. (تحفة الالمعي ج:۲، ص:۱۷۱، طحطاوي على مراقى الفلاح)

## د بل چا په ځمکه کي لمونځ کول

﴿۵۷۶﴾ وَأَرْضِ الْغَيْرِ بِلَا رِضَاهُ (۵۱) او (لمونځ کول) د بل چا په ځمکه کي د هغه له رضا (خوښی) څخه بغير.

**تشريح:** د بل چا په ځمکه کي د هغه له صراحتاً يا دلالتاً رضا او اجازې څخه بغير لمونځ کول مکروه تنزيهي دي (د رضا او اجازې علم د عُرف عام سره تعلق لري). (مراقى الفلاح، شفاء الارواح)

## نجاست ته نژدې لمونځ کول

﴿۵۷۷﴾ وَقَرِيبًا مِنْ نَجَاسَةٍ (۵۲) او (لمونځ کول) نجاست ته نژدې.

**تشريح:** داسي ځای لمونځ کول چي هلته مخ ته غائط وغيره وي مکروه دي، همدارنګه د نجاست او ګندګيو په ځای کي لمونځ کول هم مکروه دي، مثلاً ① د خوشايو اچولو ځای، ② د څارېو د ذبح کولو ځای، ③ د اوښانو د درېدلو ځای؛ ځکه هلته بدبويي وي او ځمکه نا هواره وي. همدارنګه له اوښ څخه د حملې خطره هم سته او دا خطره د لمونځ ګزار په توجه او سکون کي خلل اچوي. (طحطاوي)

## د متيازو يا غائطو د تقاضا په وخت کي لمونځ کول

﴿۵۷۸﴾ وَمُدَافِعًا لِأَحَدِ الْأَخْبَثَيْنِ (۵۳، ۵۴) او (لمونځ کول) په داسي حال کي چي د غټو يا کوچنيو بولو څخه ديوه دفع کونکی وي (يعني متيازو يا غائطو ډېر په تکليف کړی وي) أَوِ الرِّيحِ (۵۵) يا (دفع کونکی وي) د باد (باد ډېر په تکليف کړی وي) وَمَعَ نَجَاسَةٍ غَيْرِ مَانِعَةٍ (۵۶) او ديو

داسې نجاست سره (لمونځ کول) کوم چې مانع نه وي إِلَّا إِذَا خَافَ فَوْتَ الْوَقْتِ أَوِ الْجَمَاعَةِ
مګر دا چې کله بېره وي دوخت یا د جماعت دفوتېدلو (تېرېدلو) وَ إِلَّا نُدِبَ قَطْعُهُمَا کښې
مستحب دي د دې دواړو ختمول (له متیازو او داسې نورو څخه ځان خلاصول).

**لغات:** ﴿مُدَافِعًا﴾ د مفاعلې له بابه د فاعل صیغه ده، د دې باب څو معناوې دي: لیرې کول، دفع کول، مقابله او مزاحمت کول، ټال مټالول (معجم الوسط)، ﴿أخبثین﴾ تثنیه د أخبثْ ده، مراد ځنې متیازې او غائط دي.

**تشریح:** د متیازو یا غائطو د دباؤ په وخت کې یا د ریح د غلبې په وخت کې لمونځ کول مکروه تحریمي دي.

همدارنګه داسې نجاست کوم چې پر بدن یا جامه لګېدلی وي او لمانځه لره مانع نه وي. لکه نجاست غلیظه (مثلاً وینه) له یوه درهم څخه کمه وي، نو د هغه سره لمونځ کول مکروه تنزیهي دي او که لمانځه لره مانع وي، مثلاً نجاست غلیظه یو درهم یا تر دې زیات وي، نو د هغه سره لمونځ کول مکروه تحریمي دي. او که پر بدن یا جامه نجاستِ خفیفه لګېدلی وي لکه د حلالو څاروېو متیازې او داسې نور او د هغه سره لمونځ وکړي، نو حکم دا دی چې دا نجاست خفیفه که د بدن یا جامې له څلورمې حصې څخه کم وي، نو لمونځ یې صحیح کیږي.

إلا إذا خاف فوت إلخ: یعني که وخت تنګ وي یا د جماعت د تېرېدلو بېره وي، نو د متیازو او داسې نورو د غلبې په وخت کې دې هم لمونځ وکړي، او که د وخت یا جماعت د تېرېدلو بېره نه وي، نو اول دې له متیازو، غائطو څخه ځان فارغ کړي، دا مستحب دي.

په "احسن الفتاویٰ" کې لیکل سوي دي چې که وخت دومره تنګ وي چې د لمانځه د قضاء کېدلو خطره وي، نو لمونځ دې وکړي، او که د لمانځه د قضاء کېدلو خطره نه وي، صرف د جماعت د تېرېدلو خطره وي، نو له متیازو، غائطو وغیره څخه دې ځان فارغ کړي او بیا دې لمونځ کړي، په داسې وخت کې لمونځ کول مکروه تحریمي دی او واجبُ الاعاده دی (یعني په احسن الفتاویٰ کې صرف د وخت استثناء سوې ده، نه د جماعت، یعني صرف د وخت د تېرېدلو په صورت کې د سختې تقاضا په وخت کې هم لمونځ کولای سي. او ملته په نور الایضاح کې د وخت او جماعت دواړو استثناء سوې ده)، او که د لمانځه په مینځ کې سخته تقاضا پېښه سي، نو هم لمونځ کول مکروه تحریمي دی او په دې حالت کې لمونځ قطع کول واجب دي. (احسن الفتاویٰ ج۳، ص۴۲۱)

## د کار په خيرنو جامو کي لمونځ کول

﴿۵۷۹﴾ وَالصَّلٰوةُ فِيْ ثِيَابِ الْبِذْلَةِ (۵۷) او لمونځ کول د کار په جامه کي (په معمولي نامناسبه جامه کي).

**لغات**: ﴿ثياب﴾ جمع د ثَوْبٌ ده: کپړه، جامه. ﴿البِذْلَة﴾ (دباء په کسره او د ذال په سکون سره) هغه جامه چي د کار او کسب لپاره اغوستل کيږي او حفاظت يې نه کول کيږي، هغه معمولي او نامناسبه جامه چي بازار او دغهو خلکو مخ ته انسان نه پکښي ځي.

**تشريح**: د لمانځه په وخت کي پاکي صفا جامې اغوستل پکار دي. او د کار او خدمت جامه له صفا او زينت والا جامو څخه نه شمېرل کيږي، لهذا که په معمولي نامناسبه جامه کي لمونځ وکړي، نو لمونځ خوږې کيږي په دې شرط چي جامه پاکه وي. لېکن دا مکروه تنزيهي دي. (در مختار ج:۲، ص:۴۰۷)

## په لڅ سر لمونځ کول

﴿۵۸۰﴾ وَمَكْشُوْفُ الرَّأْسِ (۵۸) او (لمونځ کول) په لڅ سر لَالِلتَّذَلُّلِ وَالتَّضَرُّعِ نه د خاکساری او عاجزی لپاره (يعني که د خاکساری او عاجزی په غرض سر پټ نه کړي، نو د دې گنجائش شته. کنې په عامو حالاتو کي په لڅ سر لمونځ مکروه دي).

**لغات**: ﴿التذلّل﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: خاکساري کول، ځان کم گڼل. ﴿التضرّع﴾ دا هم د تفعّل د باب مصدر دی: باطني عاجزي ته تضرّع وايي، غاړه ايښوونه او ځان ټيټونه.

**تشريح**: په لڅ سر لمونځ کول که محض د سستی په وجه وي، نو مکروه تنزيهي دي او که د تکبر په وجه وي (لکه نن سبا چي بعضي خلکو په لڅ سر لمونځ کول خپل فيشن بلکي شعار جوړ کړی دی) نو دا عمل مکروه تحريمي دي؛ ځکه نبي کريم ﷺ همېشه په عامو حالاتو کي په پټ سر لمونځ اداء کړی دی. (کتاب المسائل ص: ۳۵۲)

او که (د الله تعالیٰ په حضور کي) د عاجزي او خشوع ښکاره کولو لپاره په لڅ سر لمونځ وکړي نو مکروه نه دي، لېکن بيا هم اولیٰ دا ده چي په پټ سر لمونځ وکړي. (عمدة الفقه)

## د ډوډی حاضريدو په وخت کي لمونځ کول

﴿۵۸۱﴾ وَبِحَضْرَةِ طَعَامٍ يَمِيْلُ اِلَيْهِ (۵۹) او (لمونځ کول) د خوراک په موجود والي کي چي وهغه ته يې ميلان (خواهش) کيږي.

**تشریح**: د عبارت مطلب دا دی چې که لمونځ ګزار ډېر وږی وي او ډوډۍ حاضره وي. نو اول دې هغه وخوري، بیا دې لمونځ وکړي، په داسې حالت کې بغیر له ډوډۍ خوړلو څخه لمونځ کول مکروه تنزیهي دي، او که لوږه دومره سخته نه وي چې هغه بې اطمینانه کوي، نو لمونځ کول مکروه نه دي.

## د بې اطمینانۍ په ځای کې لمونځ کول

﴿۵۸۲﴾ وَمَایُشْغِلُ الْبَالَ وَیُخِلُّ بِالْخُشُوْعِ (۶۰) او هغه څه کوم چې زړه مشغوله کوي او په خشوع کې خلل اچوي.

**لغات**: ﴿البال﴾ زړه، خیال، حال، شان، مثلاً په عربي کې ویل کیږي: ما خطر ببالي: فلانی خبره زما په زړه (یازما په خیال) کې نه راغله. ﴿یُخِل﴾ د افعال د باب مضارع ده: خلل اچول.

**تشریح**: هر داسې شی چې د لمونځ ګزار زړه مشغولوي او په خشوع او توجه کې خلل اچوي، د هغه سره لمونځ کول مکروه دي، مثلاً که یو کس لمونځ ګزار ته مخامخ ناست وي چې وقبلې ته یې شاوي. نو خاص وهغه ته مخامخ لمونځ کول مکروه تحریمي دي؛ ځکه په دې کې په خشوع او توجه کې د خلل لوېدلو قوي خطره سته. (در مختار مع الشامي ج۱، ص: ۶۰۲)

همدارنګه داسې ځای لمونځ کول هم مکروه دي چې هلته لوبې او بازۍ کیږي، ګنه ګونه وي؛ ځکه زړه وهغه طرف ته مائل کیږي. (مراقی الفلاح)

## تسبیحات په ګوتو سره شمېرل

﴿۵۸۳﴾ وَعَدُّ الْاٰیِ وَالتَّسْبِیْحِ بِالْیَدِ (۶۱) او شمېرل د آیتونو (۶۲) او (شمېرل) د تسبیح په لاس سره.

**لغات**: ﴿عَدّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: شمېرل، شمېر کول. ﴿الآی﴾ جمع د آیةٌ ده، د قرآن آیت.

**تشریح**: په لمانځه کې آیتونه یا تسبیحات مثلاً سبحان الله وغیره په لاس یعني په ګوتو سره شمېرل مکروه تنزیهي دي، برابره ده فرض لمونځ وي او که نفل، او که په لمانځه کې شمېر ته ضرورت وي مثلاً په صلاة التسبیح کې، نو په خپل زړه کې دې شمېر کوي یا صرف د ګوتو سرونه دې پر خپل ځای کېکاږي. نو په دې توګه به مقصد هم حاصل سي او هیڅ کراهت به هم پاته نه سي. (درمختار مع الشامي ج۱، ص: ۶۰۸، کتاب المسائل ص: ۳۵۲)

## امام په محراب کې دننه دريدل

﴿۵۸۴﴾ وَقِيَامُ الْإِمَامِ فِي الْمِحْرَابِ (۶۳) او دريدل دامام په محراب کې.

**لغات:** ﴿محراب﴾ د دې لفظ څو معناوې دي چې له هغوی څخه يوه معنىٰ ده: د مسجد د قبلې په دېوال کې د امام لپاره جوړه سوې خالي ګاه چې په هغه کې امام د لمونځ ورکولو لپاره دريږي. په اصل کې د محراب معنى ده: دېر جنګ کونکی، باتوره کس، نو د محراب وجهٔ تسميه دا ده چې په محراب کې دريدونکی امام ګواکې د نفس او شيطان سره جنګ کوي. (معجم لغة الفقهاء ص: ۴۱۰، مراقي الفلاح ص: ۱۹۸)

**تشريح:** که امام په محراب کې داسې ودريږي چې دواړه قدمونه يې په محراب کې دننه وي، نو دا مکروه تنزيهي دي، خو که قدمونه يې له محراب څخه دباندې وي، نو دا مکروه نه دي، همدارنګه که د لمونځ کونکو د رش او زياتوالي په سبب امام مجبوراً دننه په محراب کې ودريږي، نو مکروه نه دي. (مراقي الفلاح)

## امام پر لوړ ځای دريدل

﴿۵۸۵﴾ أَوْ عَلَى مَكَانٍ أَوِ الْأَرْضِ وَحْدَهُ (۶۴) يا (دريدل دامام) پر لوړ ځای (۶۵) يا پر ځمکه تنها.

**تشريح:** د جماعت په لمانځه کې که امام له مقتديانو څخه جلا تنها پر لوړ ځای ولاړ وي کوم چې يو لاس (يو شرعي ګز) لوړ وي، نو مکروه تحريمي دي. بعضو دې ته مکروه تنزيهي ويلي دي او که هلته امام تنها (يوازې) نه وي، بلکې د امام سره يو، دوه مقتديان هم ولاړ وي، نو مکروه نه دي. او که لوړوالی له يوه لاس څخه کم وي، نو مکروه تنزيهي دي.

أو الأرض: يعني که امام تنها پر ځمکه (لاندې) ولاړ وي او ټول مقتديان لوړ ولاړ وي، نو مکروه تنزيهي دی، او که د امام سره يو، دوه مقتديان هم پر ځمکه ولاړ وي، نو بيا کراهت نشته. (شفاء الارواح)

**يادونه:** په عبارت کې چې کوم د "وحدهٗ" لفظ دی، د دې تعلق د دواړو مسئلو سره دی.

## د داسې صف شا ته دريدل چې په هغه کې خالي ځای پاته وي

﴿۵۸۶﴾ وَالْقِيَامُ خَلْفَ صَفٍّ فِيهِ فُرْجَةٌ (۶۶) او دريدل د داسې صف شا ته چې په هغه کې پراخوالی (خالي ځای) وي.

**لغات:** ﴿فرجة﴾ د دوو شيانو ترمينځ خالي ځای، د دوو شيانو په مينځ کې پرخوالی.

**تشريح:** که جماعت ولاړ وي او دمخ په صف کې خالي ځای وي، بيا هم يو مقتدی د شا په صف کې تنها ودريږي، نو دا عمل مکروه تحريمي دی. (در مختار مع الشامي ج: ۲، ص: ۳۱۶)

**یادونه**: په حدیث کې دي چې کوم چا د صف خالي ځای ډک کړی، نو د هغه لپاره لس نیکۍ لیکل کیږي، لس ګناهونه یې بخښل کیږي او لس درجې یې لوړیږي. (مراقی الفلاح)



## که له نیت ترلو ځخه وروسته ووینې چې د مخ په صف کې ځای خالي دی

**مسئله (۱)**: که یو سړی د شا په صف کې نیت وتړي او لمونځ شروع کړي، تر دې وروسته ووینې چې د مخ په صف کې ځای خالي دی، نو هغه ته پکار دي چې په همدې د لمانځه په حالت کې مخته ولاړ سي او د مخ په صف کې ودریږي، په دې سره لمونځ نه فاسدیږي. (شامي ج:۲، ص:۳۱۲)

## د شا په نوي صف کې تنها دریدل

**مسئله (۲)**: که څوک مسجد ته په داسې حال کې ورسیږي چې د مخ صفونه ټول ډک سوي وي، نو هغه ته پکار دي چې څه ګړی انتظار وکړي، کله چې یو بل مقتدی راسي، نو هغه دې د ځان سره یو ځای کړي او په صف کې دې ودریږي، او که د رکوع کیدلو تر وخته پوري هم یو بل مقتدی رانه سي، نو غوره دا ده چې د مخ له صف ځخه داسې کس کوم چې په دې مسئله خبر وي شا ته راولي او د ځان سره دې یې په صف کې ودروي، لیکن که داسې څوک نه وي (لکه نن سبا چې همدا حالت دی چې په دې سره لمونځ فاسد کني)، نو بیا دې تنها په صف کې ودریږي. (مراقی الفلاح مع الطحطاوي، کتاب المسائل)

## په تصویر داره کې جامه کې لمونځ کول

﴿۵۸۷﴾ وَلُبْسُ ثَوْبٍ فِيهِ تَصَاوِيرُ (٦٧) او داسې جامه اغوستل (لمونځ پکښې کول) چې په هغه کې تصویران وي.

**تشریح**: په داسې جامه کې لمونځ کول مکروه تحریمي دي چې په هغه کې دیو ساکښ تصویرونه وي. که د نا ساکښ (غیر ذی روح) تصویران پکښې وي (لکه درخته، ګلان، یا مختلفه نقوش او داسې نور)، نو بیا څه حرج نسته.

## د تصویر په ځای کې لمونځ کول

﴿۵۸۸﴾ وَأَنْ يَكُونَ فَوْقَ رَأْسِهِ (٦٨) او (همدارنګه مکروه دي) دا چې وي د لمونځ ګزار د سر د پاسه أَوْ خَلْفَهُ (٦٩) یا (وي) د هغه شا ته أَوْ بَيْنَ يَدَيْهِ (٧٠) یا (وي) د هغه مخ ته (لمونځ ګزار ته مخامخ) أَوْ بِحِذَائِهِ (٧١) یا (وي) د هغه په برابری (څنګ) کې (راسته یا چپه طرف ته) صُورَةٌ یو تصویر إِلَّا أَنْ تَكُونَ صَغِيرَةً أَوْ مَقْطُوعَةَ الرَّأْسِ مګر دا چې وي هغه تصویر کوچنی یا سر پریکړی سوی

أَوْلِغَیْرِ ذِيْ رُوْحٍ یا (وي هغه تصویر) دناساکښه (بې ساه) شي (مثلاً دونې یا دیو عمارت تصویر وي).

**تشریح**: په داسې ځای کې لمونځ کول چې هلته دلمونځ ګزار پر سر د پاسه یامخ ته یاشا ته یا د لمونځ ګزار راسته یا چپه طرف ته د ساکښ تصویر وي مکروه تحریمي دي. برابره ده تصویر راځړېدلی وي یالاندې وي یا پر دېوال یا په پرده وغیره کې نقش سوی وي. او په دوی کې له ټولو څخه زیات کراهت په هغه وخت کې دی کله چې تصویر دلمونځ ګزار مخ ته وي او بیا دا چې د لمونځ ګزار د سر پر طرف وي، بیا راسته طرف ته، بیا چپه طرف ته، بیا دلمونځ ګزار شا ته. (حاشیه)

إلا أن تکون الخ: یعني که تصویر ډېر کوچنی وي (دومره کوچنی وي چې که هغه پر ځمکه کېښنول سي او ولاړ کس هغه ته په ځیر وګوري، نو دهغه اعضاء سم نه ورته ښکاري. یا په بله وینا اندامونه یې نه پر بېلېږي. داسې تصویر کوچنی دی)، نو په دې کې هیڅ کراهت نسته، همدارنګه که د تصویر سر بالکل ختم شوی وي، برابره ده په خط او لیکلو سره وي، یا ګرول سوی وي، یا څه رنګ باندې اچول سوی وي، نو د داسې تصویر سره لمونځ نه مکروه کېږي (په عبارت کې د رأس قید لکول سوی دی: ځکه دنورو اندامو ختمولو ته اعتبار نسته مثلاً که د تصویر سترګې ختم کړل سوي وي یا داسې نور. نو بیا هم کراهت باقي پاتېږي: لأن الإنسان قد تقطع أطرافه وهي حي).

## د اور مخ ته لمونځ کول

﴿۵۸۹﴾ وَأَنْ یَکُوْنَ بَیْنَ یَدَیْهِ تَنُّوْرٌ (۷۲) او دا چې وي د ده مخ ته تنور أَوْکَانُوْنٌ فِیْهِ جَمْرٌ (۷۳) یا داسې نغری چې په هغه کې سکروټې وي أَوْقَوْمٌ نِیَامٌ (۷۴) یا (وي د ده مخ ته) ویده خلک.

**لغات**: ﴿تنور﴾ تنور، تندور، د ډوډۍ پخولو ځای. "قال صاحب المصباح: التَّنُّوْرُ: الَّذِيْ یُخْبَزُ فِیْهِ، وَافَقَتْ فِیْهِ لُغَةُ الْعَرَبِ لُغَةَ الْعَجَمِ، وَقَالَ أَبُوْ حَاتِمٍ: لَیْسَ بِعَرَبِيٍّ صَحِیْحٍ. وَالْجَمْعُ التَّنَانِیْرُ" (مصباح المنیر)، ﴿کانون﴾ د دې لفظ څو معناوې وي چې له هغوی څخه یوه معنیٰ ده: د اور بلولو ځای. نغری.

**تشریح**: په دې عبارت کې دوې مسئلې بیان سوي دي: ① که دلمونځ ګزار مخ ته بل سوی اور وي یا سکروټې وي، نو لمونځ کول مکروه دي؛ ځکه په دې کې د مجوسیانو سره مشابهت راځي. په همدې وجه بعضې حضراتو د شمع یا څراغ وطرف ته هم لمونځ مکروه ګڼلی دی، لیکن صحیح قول د عدم کراهت دی. ② داسې ځای لمونځ کول چې هلته څو خلک ویده وي مکروه تنزیهي دی، ځکه

ځیني وخت له بیده کس څخه داسې شی صادر سي چي په هغه سره لمونځ گزار ته خندا ورځي یاد هغه توجه او خشوع له منځه ځي، نو ځکه له دې څخه بچ کېدل غوره دي، لېکن کـه دا خطره نه وي، نو بیا څه حرج نسته. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

## تندی صفا کول

﴿۵۹۰﴾ وَ مَسْحُ الْجَبْهَةِ مِنْ تُرَابٍ لَا يَضُرُّهُ فِيْ خِلَالِ الصَّلٰوةِ (۷۵) او تندی مسه کول (صفا کول) له داسې خاورې څخه کوم چې ده ته ضرر نه کوي دلمانځه په دوران کې.

**لغات**: ﴿جبهة﴾ تندی، جمع: جِبَاه و جَبَهَات، ﴿خلال﴾ مینځ، جریان، دوران.

**تشریح**: دلمانځه په دوران کې له تندي څخه خاوره وغیره لیرې کول حال دا چې په نه لیرې کولو یې هیڅ تکلیف نه وي مکروه تنزیهي دي، ها! که څه حرج او تکلیف وي او د هغه په وجه په لمانځه کې خلل راځي یا دلمونځ گزار توجّه خرابوي، نو په معمولي حرکت سره د هغه په لیرې کولو کې څه پروا نسته.

## یو خاص سورت متعیّنول

﴿۵۹۱﴾ وَتَعْيِيْنُ سُوْرَةٍ لَا يَقْرَأُ غَيْرَهَا (۷۶) او (مکروه دي) د یو سورت داسې متعینول (ټاکل) چې له هغه څخه بغیر بل سورت نه وایي إِلَّا لِيُسْرٍ عَلَيْهِ مگر (مکروه نه دي) پر خپل ځان دآسانی لپاره أَوْ تَبَرُّكٍ بِقِرَاءَةِ النَّبِيِّ ﷺ یا دنبي کریم ﷺ په قرائت سره د برکت حاصلولو لپاره.

**تشریح**: که یو څوک په لمانځه کې تر سورة الفاتحه وروسته یو سورت داسې متعیّن او ضروري وگڼي چې له هغه څخه بغیر بل سورت ناجائز یا مکروه گڼي، نو دا مکروه تحریمي دي، لېکن که د آسانی لپاره یو سورت متعیّن کړي او دا عقیده یې نه وي چې له هغه څخه بغیر لمونځ نه صحیح کېږي، یا کوم سورت چې له نبي کریم ﷺ څخه ثابت وي، هغه تبرکاً وایي، مثلاً د جمعې په ورځ د سهار دلمانځه په اول رکعت کې سورة السجده او په دویم رکعت کې سورة الدهر وایي، نو په دې کې څه کراهت نسته. لېکن په دې کې هم دا شرط دي چې کله نا کله دې له دې سورت څخه بغیر بل سورت هم وایي، د دې لپاره چې ناخبره کس دا گومان ونه کړي چې له دې څخه بغیر بل سورت ویل ثابت نه دي، حال دا چې له نبي کریم ﷺ څخه هم د دې سورتونو همېشه ویل ثابت نه دي. (عمدة الفقه)

## په داسې ځای کې سُتره نه درول چې هلته د يو چا د تېرېدلو ګومان وي

﴿۵۹۲﴾ وَتَرْكُ اِتِّخَاذِ سُتْرَةٍ فِيْ مَحَلٍّ (۷۷) او (مکروه دي) پرېښوول د سترې (يعني دلرګي يا داسې بل شي) درول په داسې ځای کې يَظُنُّ الْمُرُوْرَ فِيْهِ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّيْ چې په هغه ځای کې لمونځ ګزار ته (ديو چا) د تېرېدلو ګومان وي دلمونځ ګزار مخ ته.

**لغات:** ﴿يتخذ﴾ د افتعال د باب مضارع ده: نيول (درول)، ګرځول، جوړول. د صلې په بدلون سره يې معنیٰ هم بدليږي. ﴿سُترة﴾ هغه شی چې لمونځ ګزار يې خپل مخ ته دروي يا اېږدي. لکه لرګی يا داسې بل شی، درا روان فصل په شروع کې به د دې پوره وضاحت وسي.

**تشريح:** صورت د مسئلې دا دی چې که لمونځ ګزار ته دا غالب ګومان وي چې دلته به زما مخ ته يو څوک تېرېږي، پر داسې موقع سُتره نه درول مکروه تنزيهي دي، او که مخ ته د يو چا د تېرېدلو ګومان نه وي او مخ ته لاره نه وي، نو هلته په سُتره نه درولو کې څه پروا نشته او مکروه نه دي.



## فَصْلٌ فِي اتِّخَاذِ السُّتْرَةِ وَدَفْعِ الْمَارِّ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّيْ

(دا) فصل د سُترې درولو او دلمونځ ګزار مخ ته د تېرېدونکي کس د دفع کولو په بيان کې دی

**تشريح:** اَلسُّتْرَةُ: په ضمه سره هغه شي ته ويل کيږي چې شی وربانديې پټيږي او چې انسان ځان په پټوي، او د شريعت په اصطلاح کې هغه شی ته ويل کيږي چې لمونځ کوونکی يې په لمانځه کې خپل مخ ته دروي يا اېږدي چې د خلکو د تېرېدلو مخنيوی په وکړي. لکه لرګی. لکړه يا داسې بل شی.

دلمونځ ګزار مخ ته تېرېدونکی کس ګنهګاره کيږي: ځکه د نبي ﷺ فرمان دی: « لَوْ يَعْلَمُ الْمَارُّ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّيْ مَاذَا عَلَيْهِ لَكَانَ أَنْ يَقِفَ أَرْبَعِيْنَ خَيْرًا لَّهُ مِنْ أَنْ يَمُرَّ بَيْنَ يَدَيْهِ ». [بخاري شريف، باب اثم المار بين يدي المصلي، حديث شمېره: ۵۰۹]، (که دلمونځ ګزار په مخ کې تېرېدونکي کس ته معلومه سي چې پر هغه څومره ګناه ده، نو که څلوېښت [کاله] او درېږي، دا به د هغه لپاره دلمونځ ګزار مخ ته تر تېرېدلو خير وي). نو معلومه سوه چې دلمونځ ګزار مخ ته تېرېدل عظيمه ګناه لري.

او لمونځ ګزار ته هم د دې خبرې خاص خيال ساتل پکار دي چې داسې ځای به نه درېږي چې هلته د يو چا د تېرېدلو خطره وي، او نه به په مسجد کې داسې ځای درېږي چې هلته د خلکو لاره نيول کيږي، کنې وبال پر لمونځ ګزار دی، که يو څوک په خلاص ځای کې ودرېږي، نو مستحب دا ده چې خپل مخ ته ستره ودروي، تفصيل به وروسته په عبارت کې راسي.

**د لمونځ ګزار مخ ته څومره اندازه ليرې تېرېدل جائز دي دي؟**: مخکې هم د دې بيان وسو او په دې باره کې څو اقوال ذکر سوه چې د بعضې فقهاؤ قول دا دی چې د سُترې او حائل د نشتوالي په وخت کې د لمونځ ګزار د سجدې په ځای کې تېرېدل نا جائز دي؛ ځکه د لمونځ ګزار د لمانځه ځای د هغه له پښو څخه بيا د سجدې لګولو تر ځايه پورې دی او بعضې فقهاؤ ويلي چې د درېو شرعي ګزو (درېو لاسو) په اندازه د لمونځ ګزار مخ ته تېرېدل نا جائز دي او تر دې هاخوا ته تېرېدل جائز دي او بعضې علماؤ يې پنځه ګزه اندازه بيان کړې ده، او ځينو يې څلوېښت او ځينو يې دوه يا درې صفه اندازه بيان کړې ده، خو صحيح او غوره قول دا دی چې دومره اندازه ليرې د لمونځ ګزار مخ ته تېرېدل جائز دي چې که لمونځ ګزار خپل د سجدې ځای ته ګوري او سترګې يې بالکل لاندې وي، نو تېرېدونکی په نظر نه ورځي، او که تېرېدونکی په نظر ورځي، نو بيا تېرېدل جائز نه دي.

## د سُترې حکم

﴿۵۹۳﴾ إِذَا ظَنَّ مُرُوْرَهُ کله چې لمونځ ګزار ته ګومان وي د يو چا د تېرېدلو (چې دلته به زما مخ ته يو څوک تېرسي) يَسْتَحِبُّ لَهُ أَنْ يَغْرِزَ سُتْرَةً نو مستحب دي لمونځ ګزار لره چې ودروي داسې ستره (لرګی يا داسې بل شی) تَكُوْنُ طُوْلَ ذِرَاعٍ فَصَاعِدًا فِي غِلَظِ الْإِصْبَعِ کوم چې وي په اوږدوالي سره يو (شرعي) ګز يا تر دې زيات (او) په پنډوالي کې د ګوتې په اندازه (يعنې چې اوږدوالی يې د يوه لاس په اندازه وي او پنډوال يې د ګوتې په اندازه وي).

**لغات**: ﴿يغرز﴾ د ضرب له بابه د واحد مذکر غائب مضارع صيغه ده غرزًا: په ځمکه کې يو شی درول، جګول، ﴿طول﴾ اوږدوالی، اوږدول، ﴿ذراع﴾ شرعي ګز، يو لاس، يعنې له څنګلې څخه د مينځنۍ ګوتې تر سره پورې، جمع، أَذْرُعٌ، ﴿غلظ﴾ مراد، پنډوالی.

**تشريح**: صورت د مسئلې دا دی چې که لمونځ ګزار په يو خالي ميدان يا داسې ځای کې لمونځ کوي چې هلته د خلکو د تېرېدلو ګومان وي، نو مستحب دا ده چې خپل مخ ته سُتره ودروي. په ځمکه کې يې ننه ايستل ضروري نه دي، برابره ده لرګی وي، يا يو بل شی وي، په دې شرط چې هغه يو لاس

يعني دوې لوښتي اوږد وي او لږ تر لږه يوه ګوته پنډ وي، نو داسي سُترې شا ته تېرېدل مکروه نه دي.

## د سُترې درولو سنت طريقه

﴿۵۹۴﴾ وَالسُّنَّةُ أَنْ يَقْرُبَ مِنْهَا او سنت دا دي چي لمونځ ګزار سُترې ته نږدې سي وَيَجْعَلَهَا عَلَى أَحَدِ حَاجِبَيْهِ او سُتره دي ودروي پر برابرۍ د خپلي يوې وروځي لَا يَصْمُدُ إِلَيْهَا صَمْدًا (په داسي حال کي چي) قصد دي نه کوي (يعني مخامخ بالکل سيده دي نه دربېږي) و سُترې ته.

**لغات:** ﴿حاجب﴾ د سترګو وروځه (ورځه)، ﴿لا يصمد﴾ د نصر له بابه د نفي صيغه ده، مصدر: صَمْدًا: د دې باب څو معناوي دي، کله چي يې په صله کي "إلى" راسي لکه دلته إليها نو معن يې ده: قصد کول، اراده کول، په حاشيه کي يې معنى داسي نقل سوې ده: لايصمد: أي لايقابله مستقيمًا بل کان يميل عنه (يعني سُترې ته دي مخامخ بالکل سيده نه دربېږي چي د دواړو سترګو په مېنځ کي ي راسي. بلکي له هغې څخه دي يوه طرف ته څه ميلان کوي).

**تشريح:** په دې عبارت کي د سُترې درولو سنت طريقه بيان سوې ده چي لمونځ ګزار به سُتره خپل ځان ته نږدې د خپل راسته وروځي يا چپه وروځي په برابرۍ کي دروي، يعني د دواړو سترګو په مېنځ کي به يې نه دروي، د دې لپاره چي دا وهم او شبهه پيدا نه سي چي لمونځ ګزار همدې شي ته سجده کوي او افضل دا ده چي سُتره د راسته وروځي (راسته سترګي) و مخ ته ودرول سي.

﴿۵۹۵﴾ وَإِنْ لَمْ يَجِدْ مَا يَنْصِبُهُ او که پيدا نه کړي داسي شی کوم چي (و مخ ته) ودروي فَلْيَخُطَّ خَطًّا طُولًا نو بيا دي يوه ليکه (کرښه) کش کړي په اوږدول سره وَقَالُوْا: بِالْعَرْضِ مِثْلَ الْهِلَالِ او (بعضو) علماؤ ويلي دي: چي (ليکه دي کش کړي) په بره (پلنوالي) سره د مياشتي په شان.

**لغات:** ﴿ينصبه﴾ د نصر د باب مضارع ده، مصدر: نَصْبًا: درول، جګول. ﴿يخط﴾ دا هم د نصر د باب مضارع ده. مصدر: خَطًّا: ليکه کشول، کرښه کښل.

**تشریح:** فرمایي که څه داسې شی نه وي کوم چې د سُترې لپاره ودرول سي یا کښېکښول سي، نو بیا دي لمونځ ګزار یوه لیکه کش کړي (دا د امام شافعي رحمه الله او د بعضې متأخرینو مشایخو رحمهم الله قول دی). او دلیکې په کیفیت کې اختلاف دی، بعضو ویلي دي چې طولاً (په اوږدول) دي لیکه کش کړي او بعضو ویلي دي چې عرضاً (په بره) دي د سپوږمۍ یا لینده په شکل لیکه کش کړي، خو تر څو چې د یو شي درول یا ایښوول ممکن وي، تر هغه وخته پورې لیکې کښولو لره اعتبار نشته. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

## د تېرېدونکي کس د منع کولو طریقه

﴿۵۹۶ وَالْمُسْتَحَبُّ تَرْكُ دَفْعِ الْمَارِّ او مستحب دي پرېښوول د تېرېدونکي منع کول (یعني تېرېدونکي نه منع کول انه راګرځول امستحب دي) وَرُخِّصَ دَفْعُهُ بِالْإِشَارَةِ أَوْ بِالتَّسْبِيحِ او رخصت (اجازت) ور کول سوی دی د هغه د منع کولو په اشاره سره یا په تسبیح سره وَكُرِهَ الْجَمْعُ بَيْنَهُمَا او مکروه دي دواړه سره جمع کول (یعني اشاره هم کول او تسبیح هم ویل) وَيَدْفَعُهُ بِرَفْعِ الصَّوْتِ بِالْقِرَاءَةِ او سرى (نارینه) دفع کولای سي هغه (تېرېدونکی) د قرائت د آواز په لوړولو سره.

**لغات:** ﴿دَفْع﴾ د فتح د باب مصدر دی: دفع کول، لیرې کول (ایسته کول)، منع کول. ﴿رُخِّص﴾ د تفعیل له بابه ماضي مجهوله ده: رخصت ورکول، اجازه ورکول.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې که د لمونځ ګزار مخ ته سُتره نه وي او د هغه مخ ته یو څوک تېرېږي، یا سُتره وي، خو یو څوک د سُترې او لمونځ ګزار تر مینځ تېرېدل غواړي، نو مستحب دا ده چې په عملي توګه یې نه راوګرځوي او دا حکم عزیمت دی، او که لمونځ ګزار د هغه منع کول غواړي، نو د لاس یا د سر یا د سترګو په اشاره سره دي یې منع کړي، یا تسبیح یعني سبحان الله دي په زوره ووایي چې هغه ته تنبیه سي او منع سي، دا حکم رخصت دی، عزیمت نه دی.

و کره الجمع: تسبیح او اشاره دواړه سره جمع کول مکروه دي؛ ځکه له دوی څخه یو هم کافي دی.

ویدفعه الخ: همدارنګه لمونځ ګزار ته اجازه سته چې د قرائت د آواز په لوړولو سره تېرېدونکی کس منع کړي کله چې لمونځ ګزار په قیام کې وي او قرائت کوي.

که لمونځ جهري وي، نو په څومره جهر سره چي هغه قرائت کوي. تر هغه په زبات جهر قرائت سره دي هغه اګاه کړي، او که لمونځ سرّي وي، نو دیوې، دوو کلمو په جهراً ویلو سره دي هغه اګاه کړي، نو په دې سره هیڅ کراهت نه راځي او مقصود به هم حاصل سي. (عمدة الفقه)

دمنع کولو دا پورتنی طریقه دسړیو لپاره ده.

﴿۵۹۷﴾ وَتَدْفَعُهُ بِالْإِشَارَةِ او ښځه به دفع کوي هغه (تېرېدونکی کس) په اشاره سره أَوِ التَّصْفِيقِ بِظَهْرِ أَصَابِعِ الْيُمْنٰى عَلٰى صَفْحَةِ كَفِّ الْيُسْرٰى یا په (چکچکه) وهلو سره د راسته لاس د ګوتو په شا سره دچپه ورغوي (دشا) پر طرف وَلَا تَرْفَعُ صَوْتَهَا او ښځه به خپل آواز نه پورته کوي لِأَنَّهُ فِتْنَةٌ ځکه دښځي آواز فتنه ده.

**لغات:** ﴿تصفیق﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: (یو شی پر بل شي) داسي وهل چي بږغ یې واورېدل سي، یو لاس پر بل لاس داسي وهل چي آواز وکړي، چکچکه وهل. ﴿صفحة﴾ دیو شي مخ. دیو شي طرف (جانب)، صفحة کل شئ: وجهه وجانبه.

**تشریح:** فرمایي چي ښځه صرف په دوو طریقو سره تېرېدونکی کس منع کولای سي: ① په اشاره کولو سره، ② یا په تصفیق سره، او د تصفیق طریقه مصنف رَحِمَهُ الله دا لیکلې ده چي دراسته لاس د ګوتو شا دچپه لاس پر مخ یا پر یو طرف ووهي، خو غوره طریقه دا ده چي دراسته لاس د ګوتو دننه حصه (یعني د ګوتو مخ) دي دچپه لاس پر شا ووهي؛ ځکه په دې کي عمل قلیل دی (عمدة الفقه). یعني راسته لاس دي پر خپل ځای پرېږدي او د هغه ګوتي دي پر چپه لاس ووهي چي له هغه څخه د چکچکي بږغ پیدا سي او تېرېدونکي کس اګاه سي چي هغه لمونځ کوي (او په یو اعتبار سره د مصنف رَحِمَهُ الله د عبارت هم دا مطلب کېدلای سي چي دراسته لاس د ګوتو مخ دي دچپه لاس پر شا ووهي)، او دښځي لپاره دا اجازه نسته چي د قرائت دآواز په لوړولو سره تېرېدونکی کس منع کړي؛ ځکه دښځي دآواز په لوړولو کي د فتنې بېره سته.

**یادونه:** دلته (د تصفیق په طریقه کي) عبارت چپه سوی دی، اصل عبارت داسي دی "أو التصفيق بصفحة أصابع اليمنى على ظهر كف اليسرى" یعني تصفیق دا دی چي د راسته لاس د ګوتو مخ د چپه ورغوي پر شا ووهي (نو د طحطاوي د وضاحت مطابق د نور الایضاح اصل عبارت همدغه دی کوم ته چي عمدة الفقه وغیره کي غوره طریقه ویل سوې ده). (طحطاوي على المراقي ص ۲۰۲)

## د تېرېدونکي کس سره د جنګ نه کولو حکم

﴿۵۹۸﴾ وَلَا يُقَاتِلُ الْمَارَّ او جنګ به نه کوي د تېرېدونکي کس سره وَمَا وَرَدَ بِهِ او هغه حکم کوم چي وارد سوی دی په دې باره کي (چي د هغه سره دي جنګ وسي) مُؤَوَّلٌ بِأَنَّهُ كَانَ وَالْعَمَلُ مُبَاحٌ د هغه تأويل کړی سوی دی په دې سره چي هغه حکم په داسي حال (زمانه) کي وو چي (په لمانځه کي) عمل روا وو وَقَدْ نُسِخَ او (اوس) هغه منسوخ سوی دی.

**لغات:** ﴿ورد﴾ د ضرب د باب ماضي ده، مصدر: وُرُوْدًا: وارديدل، راتلل، ﴿مؤول﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: تأويل کړی سوی، مراد او مطلب بيان کړی سوی، مصدر: تأويل: د کلام مراد او تفسير بيانول. يو لفظ له خپل ظاهري معنیٰ څخه وبلي احتمالي معنیٰ ته اړول د يو دليل پر بناء (صَرْفُ اللفظ عن معناه الظاهر إلى معنى آخر يحتمله لدليلٍ) (معجم لغة الفقهاء). ﴿نسخ﴾ د فتح له بابه ماضي مجهوله ده، مصدر: نسخًا: منسوخول، ختمول.

**تشريح:** صورت د مسئلې دا دی چي که د لمونځ ګزار مخ ته تېرېدونکی کس په اشاره يا په جهري تسبيح يا قرائت سره هم منع نه سي، نو لمونځ ګزار ته پکار دي چي هغه پرېږدي، د هغه سره دي جنګ او زور نه کوي. دا جائز نه دي، او د جواز په هکله چي کوم دا حديث وارد سوی دی "إذا كان أحدكم يصلي فلا يدع أحدًا ليمر بين يديه وليدرأ ما استطاع، فإن أبى فليقاتله إنما هو شيطان" (يعني کله چي ستاسو څخه يو لمونځ کوي، نو خپل مخ ته تېرېدونکی کس دي نه پرېږدي او خپل تر وسه دي هغه منع کړي، که هغه انکار وکړي. نو د هغه سره دي جنګ وکړي: ځکه هغه شيطان دی). له دې څخه معلومېږي چي جنګ جائز دی لکه څرنګه چي بعضي فقهاؤ د دې حديث په ظاهر باندي په دليل نيولو سره جنګه او حمله جائز ګرځولي دي، ليکن مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چي د دې حديث دا تأويل کړی سوی دی چي داسي کول د اسلام په ابتداء کي جائز وه، ليکن وروسته منسوخ سوه. يعني دا حکم د اسلام په شروع کي وو، کله چي په لمانځه کي عملِ کثير، همدارنګه خبره کول، سلام کول او د سلام جواب ورکول ممنوع نه وه، وروسته بيا منسوخ سوه. (مراقي الفلاح. البحر الرائق)

حضرت مفتي محمد تقي عثماني دامت برکاتهم فرمايي چي د حديث کوم ظاهري مفهوم چي په نهم کي راځي، هغه مراد نه دی، بلکي دا داسي ده لکه په حديث کي چي راغلي دي چي که يو سړی د بل چا کور ته ګوري، نو د هغه سترګه وباسئ!، د دې مطلب دا نه دی چي خنجر او چاړه را واخلئ! او په سترګه يې ټک ورکړئ! بلکي د دې عمل د شناعت او بدۍ وطرف ته اشاره ده چي دا عمل د دې لائق دی چي که د هغه کس سره داسي وسي، نو نا انصافي به نه وي. همداسي دلته هم دغه معنیٰ ده چي د لمونځ ګزار مخ ته تېرېدل داسي بد عمل دی چي که د تېرېدونکي سره جنګ او قتال وکړل سي، نو دا نا انصافي نه ده. او دا معنیٰ يې نه ده چي يو پر بل دي سره را وغورځېږي. (انعام الباري ج ۳، ص: ۲۵۸ بتغيير)



# فَصْلٌ فِيْمَا لَا يُكْرَهُ لِلْمُصَلِّيْ

(دا) فصل په (بيان د) هغه شيانو كې دى چې دلمونځ گزار لپاره مكروه نه دي

## د لمونځ گزار لپاره د ملا تړلو يا پر ځان د يو شي ځړولو حكم

﴿۵۹۹﴾ وَلَا يُكْرَهُ لَهُ شَدُّ الْوَسَطِ او مكروه نه دي دلمونځ گزار لپاره د ملا تړل وَلَا تَقَلُّدُ بِسَيْفٍ وَنَحْوِهِ او نه (مكروه دي) توره يا داسې بل شى په غاړه كول (په ځان ځړول) إِذَا لَمْ يَشْتَغِلْ بِحَرَكَتِهِ (په دې شرط) كله چې نه مشغوله كيږي (دلمونځ گزار توجه) د هغه (توري وغيره) په حركت سره.

**لغات**: ﴿شَدٌّ﴾ د نصر د باب مصدر دى: تړل، ﴿وسط﴾ ديو شي د مينځ (مينځوى) حصه. دلته ځنې مراد ملا (شا) ده، جمع: أَوْسَاط. ﴿تقلد﴾ د تفعّل د باب مصدر دى: كله چې د دې باب په صله كې "سَيف" راسي، نو معنىٰ يې ده: په غاړه كې د توري تسمه اچول، توره په غاړه كول، ﴿يشتغل﴾ د افتعال د باب مضارع ده، مصدر: إِشْتِغَالًا: مشغولېدل، توجه ليري كېدل.

**تشريح**: كه لمونځ گزار خپله ملا په يو شي سره تړلې وي (مثلا كمربند وغيره)، نو دا مكروه نه دي. همدارنگه كه لمونځ گزار توره يا داسې بل شى (لكه لينده يالكه په اوس وخت كې توپک وغيره) خپل غاړې ته داسې اچولې وي چې د هغه په ښوريدلو سره دلمونځ گزار توجه نه خرابيږي يا په بله وينا زړه يې په هغه سره نه مشغوليږي، نو دا هم مكروه نه دي، خو كه د هغه په ښوريدلو سره په لمانځه كې خلل راځي او دلمونځ گزار توجه خرابوي نو بيا مكروه دي.

﴿۶۰۰﴾ وَلَا عَدَمُ إِدْخَالِ يَدَيْهِ فِيْ فَرَجِيِّهِ وَشِقِّهِ عَلَى الْمُخْتَارِ او نه (مكروه دي) خپل لاسونه نه داخلول په خپل فرجي چپنه او د هغه په چاک كې د مختار قول مطابق (او كه د "شِقِّه" ضمير ولمونځ گزار ته راجع سي. نه "فرجي" ته نو معنىٰ يې ده: او نه مكروه دي خپل لاسونه نه داخلول په خپل فرجي چپنه او په خپل خلاصه جامه كې (څكه د شِق معنىٰ يو ډول خلاصه جامه هم ده كوم چې د سينې په څېر مخ ته خلاصه وي...).

**لغات:** ﴿فرجیه﴾ د مصنف رَحِمَهُ الله د صراحت مطابق دا لفظ "فرجی" دی، خو په معجم الوسیط کې "فرجیة" نقل سوی دی: دا اوږدو لستوڼو والا چپنه کوم چې یې علماء دین اغوندي. ﴿شقه﴾ په دې لفظ کې اختلاف دی، ① که دا لفظ په کسره د شین سره سي یعني "شِقّ" نو د "شِق" څو معناوي دي چې له هغوی څخه ځیني دا دي: حصه (جزء)، نیمه حصه، طرف، کناره (غاړه)، ② او که په فتحه د شین سره یعني "شَق" نو د هغه هم له څو معناوو څخه ځیني دا دي: چاک، څیري والی، څیري ځای، د هر شي نیمه حصه، ③ او که دا لفظ "شُقّة" سي یعني د شین په ضمه سره چې په آخر کې یې "ة" وي، نو د هغه هم څو معناوي دي چې له هغوی څخه یوه صاحب د شفاء الارواح دا را نقل کړې ده چې دا یو اوږد جامه ده کوم چې د مخ لخوا خلاصه وي، لکه سدری چې یو داسې جامه ده کوم چې د مخ لخوا خلاصه ده، کوټ او داسې نور، ④ او که دا لفظ "شِقّة" سي په کسره د شین سره چې په آخر کې یې "ة" وي، نو معنیٰ یې ده: د کپړې وغیره نیمه پرېکړل سوې حصه، څیرل سوې ټوټه، د کپړې اوږده ټوټه یعنې کوم چې په اوږدول پرېکړل سوې وي(معجم الوسیط، مصباح اللغات)، (آخري دوې معناوي دلته نه ورسره لګیږي کله چې په "شقه" کې "ه" ضمیر و "فرجي" ته راجع وي، او که د "ه" ضمیر و لمونځ ګزار ته راجع سي، نو د ر نیمه معنیٰ ورسره لګیږي یعني د مخ لخوا خلاصه جامه).

**تشریح:** که لمونځ ګزار چپنه یا د چپني په څېر بله خلاصه جامه اغوستې وي او لاسونه یې په لستوڼو کې نه وي اچولي، نو مختار قول دا دی چې دا مکروه نه دي، لیکن په عمدة الفقه کې دي چې صحیح دا ده چې دا مکروه دي؛ ځکه په دې صورت کې "سدل" راځي.

او په "ایضاح الاصباح" کې د دې تشریح داسې سوې ده چې "فرجي" د چپني په څېر یو اوږد جامه ده چې په هغه کې لستوڼي نه وي بلکې د هغه جوړ طرفونه یا په بله وینا (د لستوڼو پر ځای) جوړ چاکونه پر اوږو اچول کیږي او پر ملا په پټي وغیره سره تړل کیږي، د فرجي کپړې جوړ چاکونه خلاص وي چې په هغه کې لاسونه هم اچول کېدلای سي، یعني فرجي په دوه شکله اغوستل کیږي یو دا چې په لستوڼو کې یې لاسونه هم داخلول کیږي او بل دا چې هسې پر اوږو هم اچول کیږي، دلته همدا دوېم شکل مراد دی چې هغه ته جائز ویل سوي دي، که څه هم په دې دوېم شکل کې د سدل صورت پیدا کیږي، خو څرنګه چې د دغه چپني دواړه صورتونه رائج دي او خلاف عادت نه ګڼل کیږي، نو ځکه مکروه نه دي، او له "شق فرجی" څخه مراد په ظاهره د دې چپني هغه خلاصه حصه یا په بله وینا خلاص جوړ چاکونه دي چې په هغه کې لاسونه دننه کول کیږي. (شفاء الارواح بتصرف یسیر)

## قرآن يا توري وغيره ته مخامخ لمونځ كول

﴿۶۰۱﴾ وَالَا التَّوَجُّهُ لِمُصْحَفٍ أَوْ سَيْفٍ مُعَلَّقٍ او نه (مكروه دي) مخامخ كېدل و قرآن شريف يا ځړېدلي توري ته أَوْ ظَهْرِ قَاعِدٍ يَتَحَدَّثُ يا (مخامخ كېدل) د ناست كس و شا ته كوم چي خبري كوي أَوْ شَمْعٍ أَوْ سِرَاجٍ يا (مخامخ كېدل) و شمعي يا ځراغ ته عَلَى الصَّحِيحِ د صحيح قول مطابق.

**لغات:** ﴿التوجه﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: (ديو شي و طرف ته) مخ كول. مخامخ كېدل. ﴿المُصْحَف﴾ او مَصْحَف: قرآن كريم، جمع: مَصَاحِف. ﴿مُعلّق﴾ د تفعيل له بابه د مفعول صيغه ده: راځړول سوی. ﴿شمع﴾ شمعه، جمع: شُمُوْعٌ. ﴿سِرَاج﴾ ځراغ، جمع: سُرُجٌ.

**تشريح:** كه د لمونځ گزار مخ ته قران پاك موجود وي، يا د هغه مخ ته توره ځړېدلې وي. نو په دې كي څه كراهت نسته. همدارنگه كه د لمونځ گزار مخ ته يو څوک ناست وي، خبري كوي، نو د هغه د شا و طرف ته لمونځ كول مكروه نه دي. همدارنگه شمعي يا ځراغ ته مخامخ كېدل مكروه نه دي.

﴿۶۰۲﴾ وَالسُّجُوْدُ عَلَى بِسَاطٍ فِيْهِ تَصَاوِيْرُ لَمْ يَسْجُدْ عَلَيْهَا او (مكروه نه دي) سجده كول پر داسي فرش (هوارېدونكي شي) چي په هغه كي تصويران وي چي پر هغوی سجده نه كوي (يعني چي د لمونځ گزار سجده پر تصويرانو نه راځي).

**لغات:** ﴿بساط﴾ هر هغه څه چي پر ځمكه هوارول كيږي، بستره، فرش، ټاټ وغيره، جمع: بُسُط. ﴿تصاوير﴾ جمع د تَصْوِيْر ده: تصوير هغه دی كوم چي د مخلوق مشابه جوړ سوی وي برابره ده ذی روح وي او كه غير ذی روح وي، خو دلته د ذی روح تصوير مراد دی؛ ځكه د غير ذی روح په تصوير كي څه كراهت نسته.

**تشريح:** مسئله دا ده چي په كوم فرش كي تصويران نقش وي، پر هغه په لمونځ كولو كي څه حرج نسته يعني بلا كراهته جائز دی، په دې شرط چي سجده يې پر تصوير نه واقع كيږي؛ ځكه دا د تصوير د عبادت مشابه دي، نو د تعظيم شبهه پيدا كېدای سي، نو ځكه دا شرط يې لگولی دی.

## د لمانځه په دوران كي مار او لړم وژل

﴿۶۰۳﴾ وَقَتْلُ حَيَّةٍ وَعَقْرَبٍ خَافَ أَذَاهُمَا او (مكروه نه دي) د داسي مار او لړم وژل چي د هغوی له ضرر څخه بېرېږي (يعني چي لمونځ گزار ته دا بېره وي چي كه دا نه ووژل سي نو دا به ورچي + چي. نو د دې

وژل مکروه نه دي) وَلَوْ بِضَرَبَاتٍ وَانْحِرَافٍ عَنِ الْقِبْلَةِ که څه هم په څو واره وهلو او له قبلې څخه په اوښتلو سره وي (یعنې که څه هم د دوی په وژلو کې څو واره وهلو او له قبلې څخه مخ اړولو ته ضرورت پرېوځي. بیا هم مکروه نه دي) فِي الْأَظْهَرِ په ظاهر روایت کې.

**لغات:** ﴿انحراف﴾ دانفعال د باب مصدر دی: له اصل څخه اوښتل، کږېدل.

**تشریح:** د لمانځه په دوران کې مار او لړم وژل بغیر له کراهته جائز دي او په دې سره لمونځ نه مکروه کیږي، برابره ده په یوه ضرب سره مړه سي او که په ډیرو ضربونو سره، او برابره ده د هغه لپاره له قبلې څخه واوړي او که نه، او د مار او لړم وژل په لمانځه کې هغه وخت مباح دي کله چې د لمونځ گزار مخ ته راسي او له هغه څخه د ضرر بېره وي، او که د ضرر بېره نه وي، نو مکروه دي. لېکن صحیح مسلک دا دی چې که د داسې ساکښ په وژلو کې عملِ کثیر وسي، نو لمونځ یې فاسدیږي او دلته د نه مکروه کېدلو معنیٰ دا ده چې د لمانځه ماتولو گناه هغه ته نه رسیږي. (شفاء الارواح، ایضاح الاصباح)

## د لمانځه په دوران کې له بدن څخه جامه لیرې کول

﴿ ۶۰۴ ﴾ وَلَا بَأْسَ بِنَفْضِ ثَوْبِهِ او څه پروا نسته د خپلې جامې په څنډلو (خوځولو) کې كَيْلَا يَلْتَصِقَ بِجَسَدِهِ فِي الرُّكُوعِ د دې لپاره چې نه ومښلي د ده له بدن سره په رکوع کې.

**لغات:** ﴿نفض﴾ د نصر له بابه مصدر دی: څنډل، بسوورول. ﴿یلتصق﴾ د افتعال د باب مضارع ده: ومښلېدل، متصل کېدل.

**تشریح:** که لمونځ گزار د لمانځه په دوران کې خپله جامه له ځان څخه کش او لیرې کړي په دې خیال سره چې له رکوع یا سجدې څخه د راپورته کېدلو په وخت کې د بدن سره نه ومښلي، نو دا مکروه نه دي؛ ځکه ځینې وخت جامه د بدن سره داسې ومښلي چې د اندامونو وضع ښکاره سي او نا مناسب ښکاري، نو ځکه له هغه څخه د بچ کېدلو لپاره د کپړې په څنډلو او لیرې کولو کې څه کراهت نسته.

﴿ ۶۰۵ ﴾ وَلَا بِمَسْحِ جَبْهَتِهِ مِنَ التُّرَابِ أَوِ الْحَشِيشِ بَعْدَ الْفَرَاغِ مِنَ الصَّلَاةِ او نه (پروا سته) د خپل تندي په صفا کولو کې له خاورې یا له وچو وښو (خاشو) څخه وروسته تر فارغېدلو د لمانځه

څخه وَلَا قَبْلَ الْفَرَاغِ إِذَا ضَرَّهُ أَوْ شَغَلَهُ عَنِ الصَّلَاةِ او نه د لمانځه څخه تر فارغېدلو مخکې (د لمانځه په دوران کې) کله چې دا (خاورې يا خاشې) هغه ته ضرر رسوي يا دئ له لمانځه څخه مشغوله کوي (توجه يې خرابوي).

**لغات:** ﴿حشيش﴾ وچ واښه، مَا يبس من الكلأ، جمع: حَشَائِش، ﴿ضَرّ﴾ د نصر د باب ماضي ده ضَرًّا: ضرر رسول، نقصان رسول، ﴿شغل﴾ د ضرب د باب ماضي ده: مشغولول او کله چې يې په صله کې عَنْ راسي لکه دلته، نو د غافله کولو، توجه ليري کولو معنیٰ ورکوي.

**تشريح:** د لمانځه څخه تر فارغېدلو وروسته له تندي څخه خاورې يا خاشې ليري کول مکروه نه دي، همدارنګه په لمانځه کې هم د دې شيانو په ليري کولو کې څه کراهت نشته، کله چې دا شيان د لمونځ ګزار توجه خرابوي او په لمانځه کې يې خلل لوېږي.

﴿۶۰۶﴾ وَلَا بِالنَّظْرِ بِمُؤْقِ عَيْنَيْهِ مِنْ غَيْرِ تَحْوِيْلِ الْوَجْهِ او نه (پرواسته) په کتلو کې د سترګو له کونجانو څخه بغير له مخ اړولو څخه.

**لغات:** ﴿موق﴾ د سترګې کونج، د سترګې بېخ، جمع: أَمْوَاق، ﴿تحويل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: اړول، بدلول.

**تشريح:** محض د سترګو له کونجانو څخه بېله مخ اړولو شا وخوا کتل که بلا ضرورته وي، نو مکروه تنزيهي دي او که د ضرورت په وجه وي، نو روا دي (د مصنف رحمه الله عبارت د ضرورت پر وخت محمول دی)

﴿۶۰۷﴾ وَلَا بَأْسَ بِالصَّلَاةِ عَلَى الْفُرُشِ وَالْبُسُطِ وَاللُّبُوْدِ او څه باک نه سته په لمونځ کولو کې پر فرشونو، بسترو او کراستو باندې وَالْأَفْضَلُ الصَّلٰوةُ عَلَى الْأَرْضِ أَوْ عَلٰى مَا تُنْبِتُهُ او افضل دي لمونځ کول پر ځمکه يا پر هغه څه کوم چې يې ځمکه راشنه کوي (لکه مرغه، واښه او لکه د لوخو او خاشو څخه جوړه چټايي او پوزی).

**لغات:** ﴿الفُرُش﴾ جمع دفِرَاشٌ ده: بستر (بستره)، دبېدېدو ځای. ﴿البُسُط﴾ جمع د بِسَاطٌ ده: هر هغه څه چې پر ځمکه هوارېږي، فرش، ټاټ، چټايي وغيره، جمع: بُسُط. ﴿اللُّبُوْد﴾ جمع د اللِبْدُاو اللِبْدَةُ ده: کراسته، نيمڅی، لمڅه، هغه فرش يا ټوکر چې دوړيو تر بنه تکولو، تخته کولو او خيشتولو وروسته له وړيو څخه جوړ کړل سي. همدارنګه نمله، وړين ټينګ او پنډ ټوکر.

**تشريح:** مسئله دا ده چې پر غالی، فرش، بستره، کراسته او داسي نورو باندي لمونځ کول مکروه نه دي. په دې شرط چې هغوی پاک وي او ډېر پنډ نه وي (بلکي داسي وي چې په سجده کولو کي د ځمکي کلکوالی اوحجم پکښي معلومېږي).

خو بغير د يو شي له هوارولو څخه پر لڅه ځمکه يا پر داسي چټايي او کراسته لمونځ کول غوره او افضل دي کوم چې له خاشو او بوټو څخه جوړه وي، لکه دلوخو او خاشو چټايي، يا له مزرو څخه جوړه چټايي او پوزی: ځکه پر دې شيانو لمونځ کول د تواضع او عاجزۍ نښه ده. او بل په دې کي له اختلاف څخه لمونځ ګزار ساتل کيږي، ځکه د امام مالک په نيز پر وړينو او پمبيزو شيانو لمونځ کول مکروه دي. (مراقي الفلاح ص: ۲۰۳، فتح العصلي ص، ۵۹۶)

﴿۶۰۸﴾ وَلَا بَأْسَ بِتَكْرَارِ السُّوْرَةِ فِي الرَّكْعَتَيْنِ مِنَ النَّفْلِ او څه باک نسته ديوه سورت په بار، بار ويلو کي د نفلو په دواړو رکعتو کي.

**لغات:** ﴿تکرار﴾ د نصر د باب اسم مصدر دی: يو عمل څو ځله کول (مکرر کول، مکرر ويل)، بيا بيا کول، راګرځېدل.

**تشريح:** مسئله دا ده چي که يو څوک په نفلي لمانځه کي يو سورت بار، بار وايي، نو څه حرج نسته، خو په فرضي لمانځه کي دا عمل مکروه تنزيهي دی (نور تفصيل په ﴿۵۵۵﴾ نمبر مسئله کي وګورئ!).



## فَصْلٌ فِيْمَا يُوْجِبُ قَطْعَ الصَّلَاةِ وَمَا يُجِيْزُهُ وَغَيْرِ ذٰلِكَ

(دا) فصل په (بيان د) هغو شيانو كي دى كوم چي د لمانځه ماتول واجبوي او كوم چي دا (د لمانځه ماتول) جائز كوي او له دې څخه بغير نور (شيان يعني لمونځ ځنډول او هغه پرېښوول)

## په كومو صورتونو كي لمونځ ماتول واجب دي؟

﴿۶۰۹﴾ يَجِبُ قَطْعُ الصَّلٰوةِ بِاسْتِغَاثَةِ مَلْهُوْفٍ بِالْمُصَلِّيْ واجب دي د لمانځه ماتول د مظلوم د فرياد كولو (مدد غوښتلو) په سبب له لمونځ گزار څخه (چي يو مظلوم كس پر لمونځ گزار ږغ وكړي او له هغه څخه مرسته وغواړي) لَا بِنِدَاءِ أَحَدِ أَبَوَيْهِ نه د مور وپلار څخه ديوه د آواز كولو (رابللو) په سبب (چي مور يا پلار پر هغه ږغ وكړي).

**لغات:** ﴿استغاثة﴾ د استفعال د باب مصدر دی: فرياد كول، د مدد طلب كول (مرسته غوښتل). ﴿ملهوف﴾ د سمع له بابه اسم مفعول دی: مظلوم، لَهِفَ يَلْهَفُ لَهَفًا: مظلوم كېدل.

**تشريح:** فرمايي چي كله يو مظلوم او مصيبت زده كس فرياد وكړي، برابره ده يو لمونځ گزار ته يې وكړي يا مطلق فرياد وكړي يو څوک متعين نه كړي، مثلاً يو څوک په څاه كي ولوېږي، يا پر يو چا يو ظالم كس يا درنده حمله وكړي، يا يو څوک په اور كي د سوځل كېدو يا په اوبو كي د ډوبېدلو د بيري وخت كي له يو لمونځ گزار څخه د مدد غوښتنه وكړي يا بغير له تعين څخه د مدد لپاره آواز وكړي، نو لمونځ ماتول واجب او ضروري دي. برابره ده فرضي لمونځ وي او كه نفلي لمونځ وي، كه په دې صورتونو كي لمونځ مات نه كړي او هغه كس په لوېدلو يا سوځېدلو يا ډوبېدلو سره مړ سي يا هغه ته څه نقصان ورسېږي، نو گناه پر همدې لمونځ گزار ده. (عمدة الفقه)

**لا بنداء الخ:** يعني كه لمونځ ته گزار خپل پلار يا مور يا نيكه يا انا آواز وكړي او لمونځ گزار فرضي لمونځ كوي، نو د دوی لپاره لمونځ ماتول جائز نه دي، په دې شرط چي دوی بغير له فرياد څخه همسي آواز وكړي. خو كه د فرياد او مدد غوښتلو لپاره آواز ورته وكړي، مثلاً بوډا پلار غوځارېږي يا غوځلو سي لو لمونځ كونكي څوی ته آواز وكړي، نو بيا لمونځ ماتول له د هغه مدد ته ځان رسول واجب دي.

او که فرضي لمونځ نه وي، بلکي سنت یا نفل کوي او له دې کسانو څخه یو آواز ورته وکړي او دوی ته دا معلومه نه وي چي هغه په لمانځه کي دی، نو په داسي وخت کي هم لمونځ ماتول او د دوی د خبري جواب ورکول واجب دي، برابره د فریاد او مدد لپاره یې آواز ورته کړی وي، یا هسي بېله ضرورته یې آواز ورته کړی وي، که لمونځ مات نه کړي او جواب نه ورکړي، نو ګنهکاره کیږي. او که دوی ته معلومه وي چي هغه لمونځ کوي خو بیا یې هم راوبلي، نو نفل او سنت لمونځ به هم نه ماتوي. خو که دیو ضرورت لپاره یې راوبلي او دوی ته د تکلیف رسېدلو بېره وي، نو بیا لمونځ ماتول واجب دي. (عمدة الفقه)

## په کومو صورتونو کي لمونځ ماتول جائز دي؟

﴿۶۱۰﴾ وَيَجُوْزُ قَطْعُهَا بِسَرَقَةِ مَا يُسَاوِيْ دِرْهَمًا او جائز دي د لمانځه ماتول (سلام ګرځول) د داسي شي د غلا کېدلو په سبب کوم چي دیوه درهم برابر وي وَلَوْ لِغَيْرِهٖ که څه هم شی د بل چا وي.

**تشریح:** مسئله دا ده که د مال د ضایع کېدلو بېره وي مثلاً یو څوک د لمونځ ګزار بوټونه یا څپلکي غلا کول غواړي، نو د هغه لپاره لمونځ ماتول جائز دي، په دې شرط چي د هغه قیمت لږ تر لږه یو درهم وي (یعني د ۳ ګرامه او ۶۶۲ ملي ګرامه سپینو زرو په اندازه وي) یا تر دې زیات وي. بیا فرمایي چي که څه هم د لمونځ ګزار سره د دومره قیمت سامان د بل چا وي او یو څوک هغه غلا کوي، نو هم لمونځ ماتول جائز دي. (مراقی الفلاح ص: ۲۰۴)

﴿۶۱۱﴾ وَخَوْفِ ذِئْبٍ عَلٰى غَنَمٍ او (جائز دي د لمانځه ماتول) د لېوه د بېري په سبب پر خپلو پسونو أَوْ خَوْفِ تَرَدِّيْ أَعْمٰى فِيْ بِئْرٍ وَنَحْوِهٖ یا په څاه کي د ړانده کس یا داسي بل څه د لوېدلو په سبب.

**لغات:** ﴿ذئب﴾ لېوه، جمع: ذِئَاب. ﴿الغنم﴾ دا اسم جنس دی، مذکر او مؤنث دواړو لره شامل دی، همدارنګه پسونه او وزې تول په دې لفظ کي داخل دي لکه رمه (موږ د آسانۍ لپاره د دې ترجمه په پسونو سره کوو) او دې ته د "غَنَم" ویلو وجه دا ده چي پسونه او وزې نه د جهاد آلې

دي او نه د دفاع آلې دي، بلکې د هر چا لپاره غنیمت دي. ﴿تَرَدِّي﴾ د تفعّل د باب مصدر دی، کله چې د دې باب په صله کې "ل" راسي لکه دلته، نو معنیٰ یې ده: لاندې لوېدل. ﴿أَعمیٰ﴾ نابینا، ړوند، جمع: عُمْيٌ و عُمْيَان، عَمِيَ يَعْمَىٰ عَمىٰ (سمع): ړندېدل (د دواړو سترګو دید بالکل ختمېدل)، نابینا کېدل.

**تشریح**: دا عبارت پر مخکښي عبارت عطف دی، اصل عبارت دا سې دی "ويجوز قطعها لخوف..."، حاصل د عبارت دا دی چې که یو چا مثلاً شپانه ته دا بېره وي چې لېوه به زما پسه وخوري، نو د هغه لپاره هم لمونځ ماتول جائز دي.

أو خوف تردّي إلخ: همدارنګه که د یو چا د مرګ خطره وي مثلاً یو ړوند کس روان وي او مخ ته څاه وي، یا مثلاً مخ ته موټر وغیره راروان وي چې که هغه نه ونیول سي، نو د هلاکېدلو یې غالب ګومان وي، نو په دې صورت کې لمونځ ماتول واجب دي او که د هلاکېدلو یې غالب ګومان نه وي، نو لمونځ ماتول جائز دي. (مراقي الفلاح ص: ۲۴۰)

﴿۶۱۳﴾ وَإِذَا خَافَتِ الْقَابِلَةُ مَوْتَ الْوَلَدِ او کله چې دایې د بچي پر مرګ وبېرېږي (نو هم لمونځ ماتول واجب دي یعني که دایې په لمانځه کې وي) وَإِلَّا فَلَا بَأْسَ بِتَأْخِيرِهَا الصَّلٰوةَ وَ تُقْبِلُ عَلَى الْوَلَدِ کنې (یعني که د بچي د مرګ بېره نه وي) نو پروا نسته د لمانځه په ځنډولو کې (یعني لمونځ دې وځنډوي) او بچي ته دې متوجّه سي.

**لغات**: دایې، دایه (هغه ښځه کوم چې د ولادت او لنګوالي په وخت کې د لنګې ښځې مدد کوي)، جمع: قَوَابِل. ﴿تُقْبِل﴾ د افعال د باب مضارع ده، مصدر: إِقْبَالًا، کله چې د دې باب په صله کې "علیٰ" راسي نو معنیٰ یې ده: په یو کار شروع کول او لازم نیول، متوجه کېدل.

**تشریح**: که دایې (دایه) په لمانځه کې وي او هغې ته د پیدا کېدونکي بچي د مرګ غالب ګومان وي یا د بچي د یو اندام ضایع کېدلو یا د بچي د مور د مرګ غالب ګومان وي، نو لمونځ ماتول واجب دي، او که دایې په لمانځه کې نه وي، نو لمونځ له هغه وخت څخه ځنډول واجب دي.

والّا إلخ: يعني كه دايي ته د بچي وغيره د مرگ غالب گومان نه وي، نو كه دايي په لمانځه نه كي وي. نو لمونځ ځنډول جائز دي، او كه په لمانځه كي وي، نو ماتول يې جائز دي. (عمدة الفقه، طحطاوي)

﴿ ٦١٣ ﴾ وَكَذَا الْمُسَافِرُ إِذَا خَافَ مِنَ اللُّصُوْصِ أَوْ قُطَّاعِ الطَّرِيْقِ او همدارنگه مسافر چي كله وبيربږي له غلو يا لاره وهونكو (ډاكه مارانو) څخه جَازَ لَهٗ تَأْخِيْرُ الْوَقْتِيَّةِ نو جائز دي د هغه لپاره د وقتي لمانځه ځنډول.

**لغات**: ﴿اللصوص﴾ جمع د لِصٌّ ده: په پټه د بل چا مال وړونكى، غل. ﴿قطاع الطريق﴾ جمع د قاطع الطريق ده: لاره شكونكى، په ډاكه لوټونكى، ډاكه مار (ډاكو). صاحب د "جوهرة النيرة" فرمايي چي ډاكه ماري په داسي ځاى كي په ډاگه مال اخيستلو ته وايي چي هلته د مال د خاوند فرياد چا ته نه سي رسېدلاى او هيڅ كومكي هغه ته نه سي رسېدلاى.

**تشريح**: كله چي مسافر ته دا ډېره وي چي كه په لمانځه لگيا سم، نو غله يا ډاكوگان به حمله را باندي وكړي، نو د هغه لپاره هم لمونځ له خپل وخت څخه ځنډول او بيا وروسته اداء كول جائز دي. ښكاره ده چي په عبارت كي د "مسافر" قيد اتفاقي دي، د مقيم هم دغه حكم دى كوم چي په عبارت كي ذكر سوى دى. او د مسافر قيد يې ځكه لگولى دى چي داسي خطرات عموماً په سفر كي پېښيږي. (مراقى الفلاح ص: ٢٠٤)

## د تارك الصلاة سزا

﴿ ٦١٤ ﴾ وَتَارِكُ الصَّلَاةِ عَمَدًا كَسَلًا يُضْرَبُ ضَرْبًا شَدِيْدًا حَتّٰى يَسِيْلَ مِنْهُ الدَّمُ او قصداً سستي (كهالى) په وجه د لمونځ پرېښودونكى به سخت وهل كيږي تر دې چي له هغه څخه وينه وبهيږي وَيُحْبَسُ حَتّٰى يُصَلِّيَهَا او بيا به هغه بندي كول كيږي تر دې چي لمونځ وكړي (يعني تر هغه وخته پوري چي لمنځونه شروع كړي) وَكَذَا تَارِكُ صَوْمِ رَمَضَانَ او همدارنگه د رمضان د روژې پرېښودونكى وَلَا يُقْتَلُ إِلَّا إِذَا جَحَدَ أَوِ اسْتَخَفَّ بِأَحَدِهِمَا او قتلول كيږي به نه مگر كله چي

انکار وکړي (د لمانځه یا روژې د فرضیت) یا سپکاوی وکړي دیوه له دې دواړو څخه (یعني د لمانځه یا روژې توهین وکړي، یا بله رښا هغه حقیر او معمولي وګڼي او د دین له ضروریاتو څخه یې نه وګڼي. مثلاً په رمضان کې په ښاکه استخفافاً خوراک یا څښاک وکړي، یا د روژې په باره که سپکه او غلطه ویناوکړي او روژه وخوري).

**لغات:** ﴿کسلاً﴾ د سمع د باب مصدر دی، ستي کول (سُستیا)، په داسي کار کي ستي کول چي په هغه کي ستي کول صحیح نه وي، او د کسلاً په قید سره هغه صورت خارج سو چي په هېره یا د یو عذر په وجه لمونځ پرېږدي، ﴿جحد﴾ د فتح له بابه ماضي معلومه ده، مصدر: جَحْدًا: قصداً انکار کول، دروغ ګڼل. ﴿استخف﴾ د استفعال د باب ماضي ده، مصدر: استخفافًا: سپکاوی کول، سپک او حقیر ګڼل.

**تشریح:** لمونځ پر هر مسلمان نر او ښځي لازم او فرض دی او د لمانځه پرېښول حرام او انتهائي سخته کبیره ګناه ده، لهذا که یو څوک محض د سُستۍ په وجه قصداً لمونځ پرېږدي، نو هغه به داسي سخت وهل کیږي چي له بدن څخه یې وینه وبهیږي او تر هغه وخته به قید او بندیخانې ته اچول کیږي چي توبه وکړي او لمنځونه شروع کړي، همدارنګه د سُستۍ په وجه قصداً روژه پرېښوونکی به هم داسي وهل کیږي او قیدول کیږي تر دې چي روژه نیول شروع کړي.

او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چي تارک الصلاة به نه قتلول کیږي، لیکن د امام شافعي، امام احمد بن حنبل او امام مالک رَحِمَهُمُ الله په نېز مسلمان باچاه (امیر المؤمنین) لره د هغه د قتلولو حکم دی، ها! که څوک د روژې او لمانځه د فرضیت انکار وکړي یا له دوی څخه دیوه سپکاوی وکړي او د دین له ضروریاتو څخه یې نه وګڼي، مثلاً د روژې په ورځ استخفافاً په ښاکه خوراک، څښاک وکړي، یا د روژې په حق کي غلط الفاظ استعمال کړي مثلاً داسي ووایي چي روژې خو دي هغه خلک نیسي چي په کور کي یې خوراک نه وي (نعوذبالله من ذلک) یا داسي نور، نو داسي کس به قتلول کیږي: ځکه کافر سو چي د شریعت اهانت کفر دی، خو اولاً به هغه قیدول کیږي او شبهه به یې لیري کول کیږي، خو بیا هم که منع نه سي، نو د قتل سزا به ورکول کیږي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)



# بَابُ الْوِتْـرِ

(دا) باب د وترو (په بيان کي) دی

**تشريح**: کله چي مصنف رَحِمَہُ اللہ د فرضِ علمي (فرضِ عتقادي چي د هغه منکر کافر دی) له بيان څخه فارغ سو، نو اوس فرضِ عملي (چي د هغه اداء کول عملاً فرض دي. اعتقاداً واجب دي) په بيان شروع کوي. (مراقی الفلاح مع الطحطاوي)

**د وترو لغوي او اصطلاحي معنیٰ**: وتر د واو په کسره او فتحه دواړو سره ويل کېدلای سي، خود کسرې لغت يې زيات مشهور دی، وتر په لغت کي طاق شمېر ته وايي کوم چي د جفت (جوت) ضد دی.

او د شريعت په اصطلاح کي هغه خاص لمانځه ته وايي چي په هغه کي درې رکعته کول کېږي او د هغه وخت د ماخوستن له لمانځه څخه وروسته دی. (عمدة الفقه. مراقی الفلاح)

## د وترو حکم

﴿۶۱۵﴾ اَلْوِتْـرُ وَاجِبٌ وتر واجب دي.

**تشريح**: د وترو لمونځ په هر عاقل، بالغ مسلمان باندي ضروري دی يعني د هغه اداء کول عملاً فرض دي، اعتقاداً واجب دي، او که هغه له يو چا څخه پاته سي، نو قضاء يې لازمه ده. تر دې وروسته په دې پوهېدل پکار دي چي د احنافو په نېز وتر واجب دي او د نورو امامانو په نېز سنت دي. لېکن دا سي سنت دی چي د هغه پرېښوول د دوی په نېز هم جائز نه دي، لکه څرنګه چي د اخترونو لمونځ د ائمه ثلاثه وو په نېز سنت دی. خو د هغه پرېښوول جائز نه دي او د احنافو په نېز د اخترونو لمونځ واجب دی. او په واجب او فرض کي د عمل په اعتبار سره هيڅ فرق نسته. پر دواړو عمل ضروري دی، خو د عقيدې په اعتبار سره فرق پکښې سته. د فرضو منکر کافر دی او د واجبو منکر کافر يا ګمراه نه دی.

**فايده**: ټوله امامان په دې باندي متفق دي چي که د وترو لمونځ پاته سي، نو د هغه قضاء سته (او کله چي د وترو قضاء سته. نو ثابته سوه چي وتر واجب دي). او په دې خبره کې اختلاف دی چي قضاء تر کومه وخته پوري لازم ده؟ د احنافو په نېز ابداً قضاء واجب ده؛ ځکه کله چي وتر واجب دي. نو بيا ټوله ژوند د هغه اداء کول ضروري دي. او د ائمه ثلاثه وو په نېز د سهار د فرضو تر اداء کولو پوري يې

قضاء سته، يعني کله چي د سهار فرض وکړي، نو د قضاء وخت تېر سو. بيا يې قضاء نه سي را ګرځلای او ګناه لازمه سوه. (تحفة الالمعي ج:۲، ص:۲۲۲، البحر الرائق ج:۲، ص:۴۱)

## د وترو د لمانځه طريقه

﴿۶۱۶﴾ وَهُوَ ثَلَاثُ رَكَعَاتٍ بِتَسْلِيمَةٍ او وتر درې رکعته دي په يوه سلام سره وَيَقْرَأُ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ مِنْهُ الْفَاتِحَةَ وَسُورَةً او وايي دي د وترو په هر رکعت کي سورة الفاتحه او يو سورت وَيَجْلِسُ عَلَى رَأْسِ الْأُولَيَيْنِ مِنْهُ او کښېني دي د وترو د اولو دوو رکعتونو پر سر (يعني ناسته به پر اولو دوو رکعتونو کوي) وَيَقْتَصِرُ عَلَى التَّشَهُّدِ او اکتفا دي کوي (په دې اوله ناسته کي) پر تشهد وَلَا يَسْتَفْتِحُ عِنْدَ قِيَامِهِ لِلثَّالِثَةِ او ثناء (سبحانک اللهم ...) دي نه وايي درېيم رکعت ته د ولاړېدلو په وخت کي وَإِذَا فَرَغَ مِنْ قِرَاءَةِ السُّورَةِ فِيهَا او کله چي فارغ سي د سورت له ويلو څخه په درېيم رکعت کي رَفَعَ يَدَيْهِ حِذَاءَ أُذُنَيْهِ نو پورته دي کړي خپل دواړه لاسونه د غوږيو تر برابرۍ پوري ثُمَّ كَبَّرَ وَقَنَتَ قَائِمًا قَبْلَ الرُّكُوعِ بيا دي الله اکبر ووايي او قنوت دي ووايي د ولاړې په حالت کي له رکوع څخه مخکي فِي جَمِيعِ السَّنَةِ په ټوله کال کي (يعني ټوله کال دي له رکوع څخه مخکي د ولاړې په حالت کي دعاء قنوت وايي).

**لغات:** ﴿يقتصر﴾ د افتعال د باب مضارع معلومه ده، مصدر: اقتصار: پر يو شي انحصار کول. اکتفاء کول.

**تشريح:** د وترو د لمانځه طريقه دا ده چي په يوه سلام سره دي درې رکعته وکړل سي. په هر رکعت کي دي د سورة الفاتحه سره سورت يو ځای کړی سي، پر دويم رکعت دي د نورو لمنځونو په څېر قعده (ناسته) وکړل سي او په درېيم رکعت کي له سورت ويلو څخه وروسته دي په رفع اليدين سره تکبير وويل سي. بيا دي لاسونه خپل ځای ته يو وړل سي اوله دعاء قنوت ويلو څخه وروسته دي رکوع ته ولاړ سي. او دعاء قنوت به همېشه له رکوع څخه مخکي وايي، نه په رکوع کي لکه د شوافعو په نېز، او هغوی دا صرف د رمضان المبارک په نصف اخير کي وايي، همدارنګه د شوافعو په نېز د وترو طريقه دا ده چي دوه رکعته به په جلا سلام سره کيږي او آخري يو رکعت په جلا سلام سره

کیږي، نو مصنف رَحِمَهُ الله د "ثلاث رکعات بتسليمة" او د "قبل الرکوع" او "جميع السنة" په قیودو سره د هغو له مذهب څخه احتراز وکړی.

## د "دعاء قنوت" محل

﴿۶۱۷﴾ وَلَا يَقْنُتُ فِيْ غَيْرِ الْوِتْرِ او قنوت دي نه وایي له وترو څخه بغیر (بل لمانځه) کي.

**تشریح:** د احنافو په نېز له وترو څخه بغیر بل په هیڅ لمانځه کي قنوت نشته، لیکن د امام شافعي او امام مالک رَحِمَهُمَا الله په نېز د سهار په لمانځه کي قنوت ویل سنت دي. خو زموږ په نېز فقط هغه وخت د سهار په لمانځه کي قنوت نازله ویل کېدلای سي کله چي پر مسلمانانو یوه لویه سخته ستونزه راسي، یا یوه لویه فتنه او مصیبت پېښ سي.

﴿۶۱۸﴾ وَالْقُنُوْتُ مَعْنَاهُ الدُّعَاءُ او د قنوت معنیٰ د دعاء ده وَهُوَأَنْ يَّقُوْلَ او قنوت دا دی چي ووایي اَللّٰهُمَّ إِنَّا نَسْتَعِيْنُكَ اي الله تعالیٰ زموږ ستا څخه د مدد غوښتنه کوو (ستا د عبادت لپاره) وَ نَسْتَهْدِيْكَ او موږ ستا څخه د هدایت (لاربنوونې) غوښتنه کوو (د هغه څه لپاره په کوم څه کي چي ستا رضا ده) وَنَسْتَغْفِرُكَ او ستا څخه د مغفرت (بخښني) غوښتنه کوو (د خپلو ګناهونو) وَنَتُوْبُ إِلَيْكَ او موږ تا ته رجوع کوو (له ګناهونو څخه توبه او په آینده نه کي د نه کولو پخه اراده کوو) وَنُؤْمِنُ بِكَ او پر تا ایمان راوړو (ستا دیو والي عقیده لرلو او په ژبه سره یې اقرار کوو) وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْكَ او صرف پر تا توکل (باور) کوو (تول امور تا ته سپارو) وَنُثْنِيْ عَلَيْكَ الْخَيْرَ كُلَّهٗ او موږ پر هر خیر ستا ثناء (تعریف) بیانوو نَشْكُرُكَ وَلَا نَكْفُرُكَ موږ ستا شکر اداء کوو او ستا ناشکري نه کوو (یا په بله وینا ستا د احساناتو انکار نه کوو) وَنَخْلَعُ وَنَتْرُكُ مَنْ يَّفْجُرُكَ موږ جلا کیږو او پرېږدو هر هغه کس کوم چي ستا نافرماني کوي اَللّٰهُمَّ إِيَّاكَ نَعْبُدُ اي الله! موږ خاص ستا عبادت کوو وَلَكَ نُصَلِّيْ وَنَسْجُدُ او صرف تا ته لمونځ کوو او سجدې کوو وَإِلَيْكَ نَسْعٰى وَنَحْفِدُ او صرف ستا وطرف ته منډه وهو او تېزي کوو (ستا وطاعت ته. یا په بله وینا، په عمل کي سعی او کوشش کوو د هغه شیانو د حاصلولو لپاره کوم چي موږ تا ته نژدې کوي) وَنَرْجُوْ رَحْمَتَكَ او ستا د رحمت

اميد لرو وَنَخْشٰى عَذَابَكَ او ستا له عذاب څخه بېرېږو إِنَّ عَذَابَكَ الْجِدَّ بِالْكُفَّارِ مُلْحِقٌ بېشکه ستا عذاب کوم چې حقيقي دی کافرانو ته لاحقېدونکی (رسېدونکی) دی وَصَلَّى اللّٰهُ عَلَى النَّبِيِّ وَآلِهِ وَسَلَّمَ او درود (رحمت) دې نازل کړي الله تعالیٰ پر نبي ﷺ او د هغه پر آل و اولاد او سلامتيا دې نازله کړي (يعني له دعاء قنوت څخه وروسته دې بيا دا درود شريف ووايي).

**لغات:** ﴿قنوت﴾ د نصر د باب مصدر دی: طاعت کول، دعاء، دلته له قنوت څخه مراد "دعاء" ده. ﴿نستعين﴾ د استفعال له بابه د جمع متکلم مضارع معلومي صيغه ده، مصدر: اِستعانة: د مدد طلب کول، مدد غوښتل. ﴿نستهدي﴾ مخکنۍ صيغه ده، مصدر: اِستهداء: د هدايت يا لاروښوونې طلب کول. ﴿نستغفر﴾ مخکنۍ صيغه ده، مصدر: استغفار: له الله ﷻ څخه د خپلو ګناهونو د بخښنې طلب کول، معافي غوښتل. ﴿نتوب﴾ د نصر له بابه مخکنۍ صيغه ده، مصدر: تَوَكُّلًا: که د دې باب په صله کې "علیٰ" راسي، نو معنیٰ يې ده: اعتماد او بروسه کول، توکّل علی الله: پر خدای تعالیٰ اعتماد کول، خپل ځان الله تعالیٰ ته حواله کول، د اهلِ باطن په اصطلاح کې: توکل په هر شي کې پر الله تعالیٰ اعتماد کول او کوم څه چې د بندګانو سره دي، له هغه څخه نااُميده کېدل او يقين نه باندې کول. ﴿نثني﴾ د افعال له بابه مخکنۍ صيغه ده يعني جمع متکلم مضارع معلومه ده: تعريف کول. ﴿خير﴾ اسم تفضيل دی (خلاف القياس؛ ځکه قياساً د هغه وزن أَفْعَل دی)، معنیٰ يې ده: زيات ښه، زيات غوره، "خير" هر هغه څه ته وايي کوم چې حسن لذاته وي وي يعني د هغه په ذات کې ښه والی اوښکېنه وي او په هغه کې ذاتي لذت، ذاتي نفع او ذاتي خوشبختي وي، جمع: خِيَارٌ و أَخْيَارٌ و خُيُورٌ. الْخَيْرَ دلته منصوب دی د مصدر کېدلو پر بناء أی ثناء الخير يا د مفعول کېدلو پر بناء چې د نُثْنِيَ مفعول دی، يا منصوب بنزع الخافض دی أی بالخير ﴿نشکر﴾ د نصر له بابه د جمع متکلم مضارع صيغه ده: شکر کېدل، شکريه اداء کول، ديو چا په احسان يا انعام باندې د هغه تعريف کول. ﴿نخلع﴾ د فتح له بابه مخکنۍ صيغه ده: ايستل، کېدل، بېزاره کېدل، ونخلع من يفجرك أی نتبرأ منه (نتخلص منه). ﴿يفجر﴾ د نصر له بابه د واحد مذکر غائب مضارع صيغه ده، مصدر: فُجُورًا: بد کاره کېدل، په لاپروايی سره په ګناهونو مبتلا کېدل، ګناه کول. ﴿نسعیٰ﴾ د فتح له بابه د جمع متکلم

صیغه ده. سَعْیًا: په یو کار کي کوښښ کول. خواري کښل. دیو شي طرف ته اراده او تګ کول. ګړندي تګ کول. ﴿نحفد﴾ د ضرب له بابه مخکني صیغه ده. مصدر: حَفْدَانًا: په یو کار کي تېزي کول. اَیْ نُسْرِعُ اِلَی الطَّاعَةِ. ﴿ملحق﴾ د افعال له بابه اسم فاعل دی: لاحق کېدونکی (متصل کېدونکی). رسېدونکی.

**تشریح**: فرمايي د قنوت معنیٰ د دعاء ده. لهذا که یو څوک مختصره دعاء ووايي، نو هم دا واجب اداء کیږي. لیکن مذکوره دعاء ویل سنت دي او له دعاء قنوت څخه وروسته درود شریف نه ویل زمونږ مشایخو اختیار کړي دي، لیکن په درمختار او فتاویٰ رشیدیه وغیره کي درود شریف ویل غوره او مستحب شمېرل سوي دي، همدا مصنف رَحِمَهُ الله اختیار کړي دي. (شفاء الارواح بحوالة عمدة الفقه)

**یادونه**: دعاء قنوت په حدیثو کي په بېلابېلو الفاظو سره نقل سوې ده. او تر ټولو غوره دا ده:

«اَللّٰهُمَّ إِنَّا نَسْتَعِيْنُكَ وَنَسْتَغْفِرُكَ وَنُؤْمِنُ بِكَ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْكَ وَنُثْنِيْ عَلَيْكَ الْخَيْرَ وَنَشْكُرُكَ وَلَا نَكْفُرُكَ وَنَخْلَعُ وَنَتْرُكُ مَنْ يَّفْجُرُكَ. اَللّٰهُمَّ إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَلَكَ نُصَلِّيْ وَنَسْجُدُ وَإِلَيْكَ نَسْعٰى وَنَحْفِدُ وَنَرْجُوْ رَحْمَتَكَ وَنَخْشٰى عَذَابَكَ إِنَّ عَذَابَكَ بِالْكُفَّارِ مُلْحِقٌ».

او غوره دا ده چي هغه دعاء هم تر قنوت وروسته وویل سي کوم چي رسول الله ﷺ حضرت حسن رضي الله عنه ته ښوولې وه چي په را روان عبارت کي به هم ذکر سي:

«اَللّٰهُمَّ اهْدِنَا (بِفَضْلِكَ) فِيْمَنْ هَدَيْتَ وَعَافِنَا فِيْمَنْ عَافَيْتَ وَتَوَلَّنَا فِيْمَنْ تَوَلَّيْتَ وَبَارِكْ لَنَا فِيْمَا أَعْطَيْتَ وَقِنَا شَرَّ مَا قَضَيْتَ إِنَّكَ تَقْضِيْ وَلَا يُقْضٰى عَلَيْكَ وَإِنَّهُ لَا يَذِلُّ مَنْ وَّالَيْتَ وَلَا يَعِزُّ مَنْ عَادَيْتَ تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَيْتَ». (په اصل کي دا دعاء د واحد متکلم په صیغه سره منقوله ده یعني «اللّٰهمّ اهدني... إلخ») او که خوښه یې وي، درود دي هم په آخر کي ور سره زیات کړي «وَصَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلٰى نَبِيِّهٖ وَآلِهٖ وَصَحْبِهٖ وَسَلَّمَ».

## له دعاء قنوت څخه وروسته بله دعاء

﴿٦١٩﴾ وَالْمُؤْتَمُّ يَقْرَأُ الْقُنُوْتَ كَالْإِمَامِ او مقتدي به د امام په څېر قنوت (دعاء قنوت) وايي.

**تشریح**: قنوت ویل واجب دي د امام او مقتدي ټولو لپاره، صرف د امام قنوت ویل د مقتدیانو له طرفه نه کافي کیږي.

﴿۶۲۰﴾ وَإِذَا شَرَعَ الْإِمَامُ فِي الدُّعَاءِ بَعْدَ مَا تَقَدَّمَ او کله چي امام په دعاء (اللهم اهدنا بفضلك فيمن هديت الخ) شروع وکړي وروسته له هغه (قنوت) څخه کوم چي مخکي ذکر سو (يعني کله چي امام له دعاء قنوت څخه وروسته دا بله دعاء شروع کړي کوم چي له دعاء قنوت څخه وروسته ويل کيږي چي هغه عموماً دا دعاء وي "اللهم اهدنا الخ" چي په را روان عبارت کي به ذکر سي) قَالَ أَبُوْيُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ: يُتَابِعُوْنَهُ وَيَقْرَءُوْنَهُ مَعَهُ نو امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي مقتديان دي د امام تابعداري کوي (يعني) د امام سره دي دا دعاء وايي وَقَالَ مُحَمَّدٌ: لَا يُتَابِعُوْنَهُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي مقتديان دي د امام تابعداري نه کوي وَلٰكِنْ يُؤَمِّنُوْنَ لېکن آمين دي وايي.

**لغات:** ﴿يتابعون﴾ د مفاعلې له بابه جمع مذكر غائب مضارع معلومه ده. مصدر: مُتَابعة: د دې باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: په چاپسي تلل. تابعداري کول.

**تشريح:** اوس دلته دا بيانوي چي که امام له دعاء قنوت څخه وروسته دا دعاء "اللّٰهم اهدنا...الخ" شروع کړي، نو مقتديان به څه کوي؟، نو په دې باره کي دامام ابو يوسف رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي په دې دعاء کي به هم مقتديان د امام متابعت کوي (يعني لکه څرنګه چي دعاء قنوت وايي. دا به هم وايي)، لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي د امام متابعت به نه کوي، بلکي د امام شا ته به صرف آمين، آمين وايي.

﴿۶۲۱﴾ وَالدُّعَاءُ هُوَ هٰذَا او دعاء هغه دا ده اَللّٰهُمَّ اهْدِنَا بِفَضْلِكَ فِيْمَنْ هَدَيْتَ اې الله! په خپل فضل سره موږ ته هدايت وکړه (شامل مو کړه!) په هغه نېکو بندګانو کي چي هغو ته تا هدايت کړی دی وَعَافِنَا فِيْمَنْ عَافَيْتَ او موږ ته عافيت (له مصيبتونو څخه سلامتيا) راکړه (شامل مو کړه) په هغه بندګانو کي چي تا عافيت ورکړی دی وَتَوَلَّنَا فِيْمَنْ تَوَلَّيْتَ او زموږ ولي (نګران او کارساز) سه! (شامل مو کړه) په هغه بندګانو کي چي ته د هغو ولي يې وَبَارِكْ لَنَا فِيْمَا أَعْطَيْتَ او موږ ته برکت راکړه (برکت راچوه)! په هغه شيانو کي کوم چي دې موږ ته راکړي دي (صحت، مال او سرمايه، ښځي او بچيان) وَقِنَا شَرَّ مَا قَضَيْتَ او موږ وساته! د هغه شيانو له شر څخه د کومو چي تا فيصله کړې ده (يا په بله وينا، د هغه فيصلو له بدو اثراتو څخه کومي فيصلې چي تا کړې دي) إِنَّكَ

تَقْضِيْ وَلَا يُقْضٰى عَلَيْكَ بېشكه صرف هم ته فيصله كوې او ستا په خلاف هيڅ فيصله نه سي كېدلاى (يعني اې رب تعالىٰ ستا فيصله ضرور پوره كېدونكې ده. زه دهغه دبدلېدلو غوښتنه نه كوم بلكې دهغه له شر او بد اثر څخه پناه غواړم) إِنَّهٗ لَا يَذِلُّ مَنْ وَّالَيْتَ بېشكه نه ذليله (او رسوا) كيږي هغه كس كوم چې ته خپل دوست جوړ كړې وَلَا يَعِزُّ مَنْ عَادَيْتَ او نه عزتمن كيږي هغه كس څوک چې ته خپل دښمن وګرځوې تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَيْتَ ته دبركت خاوند يې! اې زموږ ربه! او ته بالا و برتر يې (ستا شان ډېر لوړ دى) وَصَلَّى اللّٰهُ عَلٰى سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ وَّ آلِهٖ وَصَحْبِهٖ وَسَلَّمَ او درود دې نازل كړي الله تعالىٰ زموږ پر سردار محمد ﷺ او دهغه پر اولاد (كورنۍ) او پر صحابه وو او سلامتيا دې نازله كړي.

**لغات:** ﴿اِهْدِ﴾ د ضرب له بابه د واحد مذكر امرِ حاضر صيغه ده. مصدر: هُدًى وهَدْيًا: لار ښوول. څرګندول. طلب د لارښووني كول. پر صحيح لاره كېدل. ﴿عَافِنَا﴾ د مفاعلې له بابه د واحد متكلم امرِ حاضر صيغه ده او په آخر كې يې "نا" ضمير د جمع متكلم دى. معافاةً وعافيةً: له مرض او آفت څخه محفوظ ساتل. صحت او عافيت وركول. ﴿تولّيت﴾ د تفعّل له بابه د واحد مخاطب ماضي معلوم صيغه ده. تولّيًا: ذمه واري اخيستل (يو كار په غاړه اخيستل). مدد كول (معجم الوسيط). ﴿قِنَا﴾ "قِ" د ضرب له بابه د واحد مذكر امرِ حاضر صيغه ده. وقايةً: ساتل. بچ كول. ﴿لا يذلّ﴾ د ضرب له بابه د نفي معلوم صيغه ده. ذُلًّا وذِلّةً: ذليل كېدل. بې وقعته كېدل. ﴿واليت﴾ د مفاعلې له بابه د واحد مخاطب ماضي معلوم صيغه ده. مُوَالَاةً: د يو چا سره محبت كول. د دوستۍ او مدد تړون ور سره كول. ﴿لا يعزّ﴾ د ضرب له بابه د نفي معلوم صيغه ده. عِزًّا وعِزّةً وعَزَازةً: عزت داره كېدل. د عزت خاوند كېدل. ﴿عاديت﴾ د مفاعلې له بابه د واحد مخاطب ماضي معلوم صيغه ده. مُعَادَاةً: دښمني كول. يو څوک خپل دښمن ګرځول.

**تشريح:** همدا هغه دعاء ده كوم چې له دعاء قنوت څخه وروسته ربل غوره او افضل دي او همدا دعاء شوافعو د قنوت لپاره اختيار كړې ده او احنافو دا په قنوتِ نازله سره نومولې ده. كله چې يو ځاى مسلمانان د دښمنانو له طرفه په سخته فتنه او مصيبت مبتلا سي، نو حكم دا دى چې امام دې د سهار په لمانځه كې له ركوع څخه په وروسته قومه كې قنوتِ نازله وايي چې په هغه كې به د مسلمانانو

لپاره له فتنې څخه حفاظت او داعداء الاسلام د تباهۍ او د هغوی له شر څخه د بچ کېدو دعاګانې کېږي، مقتديان حضرات به سرا (په پټه) آمين وايي.

**سوال:** په "اللّهم اهدنا" کي دا سوال وارديدای سي چي مسلمان خو له مخکي څخه پر هدايت دی، په همدې وجه خو اوس پر لمانځه ولاړ دی، نو په "اللّهم اهدنا" کي د هدايت دعاء کول تحصيل حاصل دی؟

**جواب:** د هدايت معنیٰ "ثَبِّتْنَا عَلَى الْهُدىٰ" ده. يعني موږ پر هدايت ثابت قدم وساته!. د "اهدنا الصراط المستقيم" هم دغه معنیٰ ده.

## که د چا دعاءِ قنوت زده نه وي، نو څه حکم دی؟

﴿۶۲۲﴾ وَمَنْ لَّمْ يُحْسِنِ الْقُنُوْتَ او څوک چي قنوت (دعاءِ قنوت) ښه نه سي ويلای يَقُوْلُ: اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ هغه دي وايي: "اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ" (اې الله ما ته بخښنه وکړې!) درې واره أَوْ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ يا (دي وايي) "رَبَّنَا آتِنَا اِلخ" (چي د هغه ترجمه ده، اې زموږ ربه موږ ته په دنيا کي هم نېکي او ښېګڼه راکړه او په آخرت کي هم، او موږ د دوږخ له عذاب څخه وساته!) أَوْيَا رَبِّ يَا رَبِّ يَا رَبِّ يا (دي وايي) "يَا رَبِّ يَا رَبِّ يَا رَبِّ" (درې واره وايي. لېکن د دعاءِ قنوت دزريادولو کوشش دي جاري وساتي. د دې لپاره چي د سنت فضيلت ور حاصل سي).

**تشريح:** چا ته چي دعاءِ قنوت ياده نه وي، نو د هغه د يادولو کوشش کول پکار دي او تر څو پوري چي ور ته ياده نه سي، تر هغه وخته پوري دي له مذکوره دريو دعاګانو څخه يوه دعاء وايي: ① «رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ»، ② که مخکينۍ دعاء نه سي ويلای، نو کم از کم درې واره دي دا دعاء وايي: «اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِيْ»، ③ يا دي درې واره «يَا رَبِّ» وايي.

او "ربنا آتنا في الدنيا...الخ" يوه جامع دعاء ده کوم چي د دنيا او آخرت هري ښېګڼې لره شامله ده. د دنيا په ښېګڼو کي صحت، عافيت، د ضرورت په اندازه رزق، علم نبوي، ښه عبادت، نېکه ښځه، فرمانبرداره اولاد او په هره معامله کي توفيق دا ټوله پکښې داخل دي، او د آخرت په ښېګڼو

کي د محشر د ورځي له بيري څخه نجات، د ګناهونو بخښنه او د جنت داخلېدلو نعمتونه شامل دي (لهذا دا دعاء خپل معمول جوړول پکار دي).

## د حنفي کس لپاره په شافعي امام پسي د سهار لمونځ کول

﴿۶۲۳﴾ وَإِذَا اقْتَدَىٰ بِمَنْ يَقْنُتُ فِي الْفَجْرِ او کله چي اقتداء وکړي په هغه کس (امام) پسي کوم چي د سهار په لمانځه کي قنوت وايي قَامَ مَعَهُ فِيْ قُنُوْتِهٖ سَاكِتًا نو ودي درېږي د هغه (امام) سره د هغه په قنوت کي خاموشه (چپ) فِي الْأَظْهَرِ د ظاهر روايت مطابق وَ يُرْسِلُ يَدَيْهِ فِيْ جَنْبَيْهِ او ايله دي کړي خپل دواړه لاسونه خپل دواړو بغلو ته (يعني دواړه لاسونه دي ځړېدلي پرېږدي).

**لغات:** ﴿ساکتًا﴾ د نصر له بابه اسم فاعل دی، مصدر: سکوتًا: چپ کېدل، خاموش کېدل. ﴿يُرسل﴾ د افعال له بابه مضارع معلومه ده، إرسالًا: ايله کول، پرېښوول. ﴿جنب﴾ اړخ، بغل. جمع: جُنُوْبٌ.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي که حنفي کس د سهار په لمانځه کي په شافعي امام پسي لمونځ وکړي، چي د هغو په نېز د سهار په لمانځه کي قنوت ويل سنت دي، نو کله چي هغه قنوت ووايي. نو حنفيُ المذهب دي قنوت نه وايي، بلکي لاسونه دي ځوړند پرېږدي (لکه څرنګه چي په قومه کي يې ځړوي) او هغومره وخت دي خاموش ودرېږي، همدا ظاهر مذهب دی.



## په شافعي امام پسي وتر اداء کول

**مسئله:** د احنافو په نېز د وترو درې رکعته په يوه سلام سره اداء کول کېږي، حال دا چي د نورو لمامانو په نېز وتر په دوو سلامونو سره اداء کول کېږي، اوس که يو حنفي کس داسي ځای لمونځ کوي چي هلته شافعي يا حنبلي امام په دوو سلامونو سره وتر اداء کوي، مثلاً په مکه شريفه او مدينه شريفه کي امام په دوو سلامونو سره د وترو لمونځ ورکوي، نو دا حنفي کس به په وترو کي د هغو اقتداء کوي. که نه؟ په دې باره کي د احنافو دوې نظريې دي: ① څرنګه چي د زياتره فقهاؤ په نېز د جماعت په لمانځه کي د مقتدي عقيدې او رايې ته اعتبار دی، او په دوو سلامونو سره وتر اداء کول د حنفي المذهب په نېز صحيح نه دي، لهذا د هغه حنفي کس لپاره په دوو سلامونو سره د وترو اداء کوونکي امام پسي لمونځ کول نه صحيح کېږي، ② دوېمه نظريه د علامه ابو بکر جصاص رازي او

علامه هندواني رَحِمَهُ الله ده چي په داسي صورت کي د مقتدي رايي لره اعتبار نسته. بلکي دامام رايي لره اعتبار دی، نو څرنګه چي دلته په دوو سلامونو والا وترو کي دامام رايه صحيح ده. لهذا کوم مقتدی چي په هغه پسي لمونځ کوي، د هغه وتر هم صحيح کيږي. نن سبا ما شاء الله د روژې پر موقع په مکه او مدينه شريفه کي د احنافو ډېره غټه مجمع وي، د هغو لپاره په دې کي حرج او ستونزه وي چي د وترو جماعت پرېږدي او جلا يې اداء کړي، نو ځکه مناسب دا ده چي په دې اجتهادي مسئله کي د ابو بکر جصاص رازي رَحِمَهُ الله په رايه په عمل کولو سره احنافو ته د حرم او مدينې دامام په اقتداء کي د وترو اداء کولو حکم ورکول سي، علامه ابن وهبان رَحِمَهُ الله همدې ته ترجيح ورکړې ده. همداسي د شيخ الهند رَحِمَهُ الله موقف نقل سوی دی. (کتاب المسائل ص: ۴۱۰، انوار رحمت ص: ۶۹، البحر الرائق ص: ۴۲)

## که مقتدی دعاء قنوت هېره کړي او رکوع ته ولاړ سي

﴿۶۲۳﴾ وَإِذَا نَسِيَ الْقُنُوتَ فِي الْوِتْرِ او کله چي په وترو کي قنوت هېر کړي (يعني دعاء قنوت ئني هېره سي) وَتَذَكَّرَهُ فِي الرُّكُوعِ أَوِ الرَّفْعِ مِنْهُ او په رکوع کي ورته يادسي يا له رکوع څخه د پورته کېدلو په وخت کي (يعني په قومه کي) لَا يَقْنُتُ نو قنوت دي نه وايي وَلَوْ قَنَتَ بَعْدَ رَفْعِ رَأْسِهِ مِنَ الرُّكُوعِ او که له رکوع څخه تر را پورته کېدلو وروسته (په قومه کي) قنوت ووايي لَا يُعِيدُ الرُّكُوعَ نو رکوع دي نه راګرځوي وَيَسْجُدُ لِلسَّهْوِ او سجدهٔ سهو دي وکړي لِزَوَالِ الْقُنُوتِ عَنْ مَحَلِّهِ الْأَصْلِيِّ له خپل اصل ځای څخه د قنوت ليري کېدلو په وجه.

**لغات:** ﴿نَسِيَ﴾ د سمع له بابه ماضي معلومه ده، نَسْيًا و نِسْيَانًا: هېرول، له ذهن او حافظې څخه وتل.
﴿تذكّر﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: يادېدل، په ياد راتلل، ﴿محل﴾ مقام، ځای، جمع: مَحَالّ.

**تشريح:** که يو څوک په هېره قنوت پرېږدي او رکوع ته ولاړ سي، بيا ورته ياده سي چي قنوت خو مې نه دی ويلی، يا کله چي له رکوع څخه سر را پورته کړي، نو بيا ورته ياده سي چي قنوت مې نه دی ويلی، نو حکم دا دی چي اوس دي نه په رکوع کي قنوت وايي او نه دي له رکوع څخه تر را پورته کېدو وروسته قنوت وايي، بلکي سجدهٔ سهو دي وکړي او که له رکوع څخه تر را پورته کېدو وروسته په قومه کي قنوت ووايي، نو بيا دې بله رکوع نه کوي او په دې وخت کي هم پر هغه سجدهٔ سهو واجب ده، ځکه قنوت له خپل محل څخه وځنډول سو.

﴿۶۲۵﴾ وَلَوْ رَكَعَ الْإِمَامُ قَبْلَ فَرَاغِ الْمُقْتَدِيْ مِنْ قِرَاءَةِ الْقُ[illegible] چې امام رکوع وکړي مخکې تر فارغېدلو د مقتدي د قنوت له ویلو څخه أَوْ قَبْلَ شُرُوْعِهِ فِيْهِ یا مخکې د مقتدي د قنوت له شروع کولو څخه وَخَافَ فَوْتَ الرُّكُوْعِ او مقتدي د رکوع پر فوتېدلو (تېرېدلو) وېرېږي تَابَعَ إِمَامَهُ نو هغه دې د خپل امام اتباع وکړي (یعني د هغه سره دې رکوع وکړي).

**لغات:** شروعه: د ضمیر مرجع مقتدي دی، فیه: د ضمیر مرجع قنوت دی.

**تشریح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې بیان سوي دي: ① مقتدي که تر اوسه دعاء قنوت پوره کړې نه وي چې امام رکوع ته ولاړ سي، نو مقتدي ته پکار دي چې خپله دعاء پرېږدي او د امام سره رکوع ته ولاړ سي. (در مختار ج:۲، ص:۴۴۲)

② مقتدي تر اوسه دعاء قنوت شروع کړې هم نه وي چې امام د رکوع تکبیر ووایی، نو که مقتدي ته دا امید وي چې زه د مختصري دعاء تر ویلو وروسته اوس هم رکوع نیولای سم، نو مقتدي دې هغه دعاء ووایي او په رکوع کې دې شامل سي او که د امام سره د رکوع د نه نیولو بېره وي، نو دعاء قنوت دې پرېږدي. (در مختار ج:۲، ص:۴۴۷، کتاب المسائل ص:۴۱۱، ص:۴۱۲)

## که امام دعاء قنوت هېره کړي او رکوع ته ولاړ سي؟

﴿۶۲۶﴾ وَلَوْ تَرَكَ الْإِمَامُ الْقُنُوْتَ او که امام قنوت پرېږدي يَأْتِيْ بِهِ الْمُؤْتَمُّ نو مقتدي دې هغه ووایي إِنْ أَمْكَنَهُ مُشَارَكَةُ الْإِمَامِ فِي الرُّكُوْعِ که چیري د ده لپاره ممکنه وي د امام سره په رکوع کې شریک کېدل وَإِلَّا تَابَعَهُ کنې د امام اتباع به کوي.

**لغات:** ﴿مشارکة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: د یو چا سره شریک کېدل، شرکت کول.

**تشریح:** که امام په هېره دعاء قنوت پرېږدي او رکوع ته ولاړ سي، نو په دې صورت کې هم هغه حکم دی چې که مقتدي ته دا بېره وي چې رکوع به د امام سره نه ونیسم، نو د امام سره دې په رکوع کې شامل سي او که دا بېره نه وي، نو قنوت دې ووایي او په رکوع کې دې شامل سي، او پر داسې موقع دې یو مختصره دعاء دې واره ووایي لکه "اللهم اغفرلي" او داسې نور.

## مسبوق به د امام سره دعاء قنوت وايي

﴿۶۲۷﴾ وَلَوْ أَدْرَكَ الْإِمَامَ فِيْ رُكُوْعِ الثَّالِثَةِ مِنَ الْوِتْرِ او که څوک امام د وترو د دریم رکعت په رکوع کې ونیسي كَانَ مُدْرِكًا لِلْقُنُوْتِ نو هغه د قنوت نیونکی سو (یعنې ګواکې هغه دعاء قنوت ووېله) فَلَا يَأْتِيْ بِهِ فِيْمَا سُبِقَ بِهٖ نو قنوت دې نه وايي په هغه رکعتو کې کوم چې مخکې څنې تېر سوي دي.

**لغات:** ﴿أدرك﴾ د افعال د باب ماضي ده، مصدر: إدراكًا: موندل، نیول. ﴿سبق﴾ د فتح له بابه ماضي مجهوله ده: مخکې کېدل، مخکې تېرېدل.

**تشریح:** که څوک د امام سره د وترو په دریم رکعت کې شامل سي او له هغه څخه دعاء قنوت تېره سوې وي، نو کله چې هغه خپل باقي مانده رکعتونه راګرځوي، په هغه کې به قنوت نه وايي؛ ځکه څرنګه چې هغه دریم رکعت ونیوی، همداسې یې قنوت هم ونیوی (یا بله ورنا دا چې کله هغه دریم رکعت ونیوی، نو ګواکې دعاء قنوت یې هم ووېله)، نو ځکه اوس په پاته دوو رکعتونو کې د هغه ویلو ته ضرورت نسته.

## په رمضان کې وتر په جماعت سره کول سنت دي

﴿۶۲۸﴾ وَيُوْتِرُ بِجَمَاعَةٍ فِيْ رَمَضَانَ فَقَطْ او وتر به په جماعت سره صرف په رمضان کې کوي وَصَلٰوتُهٗ مَعَ الْجَمَاعَةِ فِيْ رَمَضَانَ أَفْضَلُ مِنْ أَدَائِهٖ مُنْفَرِدًا آخِرَ اللَّيْلِ او وتر په جماعت سره کول په روژه کې افضل دي د هغه له تنها اداء کولو څخه د شپې په آخر کې فِيْ اخْتِيَارِ قَاضِيْ خَانْ د قاضي خان رَحِمَهُ اللهُ د اختیار (اختیار سوي قول) مطابق قَالَ: هُوَ الصَّحِيْحُ قاضي خان ویلي دي: همدا صحیح ده وَصَحَّحَ غَيْرُهٗ خِلَافَهٗ او له قاضي خان څخه بغیر نورو د دې خلاف (مخالف قول) صحیح ګرځولی دی (یعنې چې د شپې په آخر کې تنهاء وتر اداء کول افضل دي).

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چې فقط د روژې په میاشته کې به وتر په جماعت سره کول کېږي، له روژې څخه بغیر په نورو میاشتو کې به په جماعت سره نه کول کېږي، لېکن په رمضان کې سنت څه دي؟ وتر په جماعت سره کول او که یوازې کول؟.

په دې باره کې د علماؤ اختلاف دی، قاضي خان وېلي دي چې د روژې په [redacted] تراويحو څخه وروسته وتر په جماعت سره کول سنت دي، فتویٰ پر همدې قول ده. بعضي حضرات فرمايي چې د وترو لمونځ دي د روژې په مياشته کې تنها په خپل کور کې کول کيږي، همدارنګه بعضي فرمايي چې د روژې په مياشته کې وتر د شپې په آخر کې تنها اداء کول افضل دي او له قاضي خان څخه بغير نورو حضراتو همدې ته صحيح وېلي دي (چې د شپې په آخر کې تنها اداء کول افضل دي). (شامي ج:۱، ص:۶۶۵، قاضيخان على الهنديه ج:۱، ص:۲۲۴، شفاء الارواح ص:۲۲۹)

❀❀❀

## د روژې په مياشته کې د ماخوستن لمونځ تېرېدل

**مسئله**: د روژې په مياشته که له يو چا څخه د ماخوستن جماعت تېر سي او هغه په داسي وخت کې مسجد ته ورسيږي کله چې تراويح په جماعت سره کيږي، نو هغه دي اولاً د ماخوستن فرض وکړي. تر دې وروسته دي په تراويحو کې شريک سي او وتر دي په جماعت سره وکړي او د تراويحو چې څو رکعته ځني تېر سوي وي، هغوی دي له وترو څخه وروسته اداء کړي. (صغيري ص:۲۱۰. امداد الاحکام ج:۲، ص:۲۱۵ - ۲۱۷)

❀❀❀

# فَصْلٌ فِي النَّوَافِلِ

## (دا) فصل په (بيان د احکامو د) نفلو کي دى

**تشريح:** نوافل جمع د نفل ده، نفل په لغت کي "زياتوب" (زيادة) ته وايي او په اصطلاح کي هر هغه عبادت ته وايي چي نه فرض وي او نه واجب، يعني هغه عبادت چي تر لازمي عبادت زائد (اضافي) وي، يا په بله وينا چي له فرضو او واجبو څخه بغير چي څومره هم لمنځونه دي، ټولو ته تطوع يعني نفل ويل کيږي، لهذا دا لفظ سنت مؤکده، غير مؤکده او مستحباتو ټولو لره شامليږي، سنت مؤکده بېله عذره پرېښوول ګناه ده او سنت غير مؤکده بېله عذره پرېښوول خلاف اولیٰ دي يعني ښه نه دي او مستحبات (مندوبات) اداء کول د ثواب موجب دي او په پرېښوولو کي يې هيڅ حرج او کراهت نشته.

**د نوافلو ضرورت:** د فرائضو او واجباتو سره د نوافلو يعني د سنتو او نفلو خيال ساتل هم ضروري دي؛ ځکه ډېر ځله له انسان څخه د فرائضو په ادا‌ينه کي څه کمي راسي، نو په آخرت کي به د دې کمي تلافي په سنتو او نفلو سره کول کيږي، په حديثو کي د دې صراحت سته (منتخب احاديث ص: ۲۲۳). نو ځکه هر مسلمان دي محض په فرائضو اکتفاء نه کوي، بلکي په خپل عملنامه کي دي د نوافلو ذخيره له زياتو څخه زياته جمع ساتي، د دې لپاره چي په آخرت کي د قُربِ الهي او د درجاتو د لوړ والي په نعمتونو سره سر لوړى سي. (انوار الايضاح)

﴿۴۲۹﴾ سُنَّ سُنَّةً مُؤَكَّدَةً رَكْعَتَانِ قَبْلَ الْفَجْرِ سنت مؤکده (کړ څول سوي) دي دوه رکعته د سهار تر لمانځه (فرضو) مخکي وَ رَكْعَتَانِ بَعْدَ الظُّهْرِ وَ بَعْدَ الْمَغْرِبِ وَ بَعْدَ الْعِشَاءِ او دوه رکعته د ماپښين او ماښام او ماخوستن تر لمانځه وروسته وَ أَرْبَعٌ قَبْلَ الظُّهْرِ وَ قَبْلَ الْجُمُعَةِ وَ بَعْدَهَا بِتَسْلِيْمَةٍ او څلور رکعته د ماپښين او جمعې تر لمانځه مخکي او د جمعې تر لمانځه وروسته په يوه سلام سره.

**تشريح:** په دې عبارت کي څو مسئلو ذکر سوي دي: ① د سهار تر لمانځه مخکي دوه رکعته کول سنت مؤکده دي، نبي کريم ﷺ به په دې دوو رکعتو باندي ډېر ټينګار او پابندي کول. ② د ماپښين تر لمانځه وروسته دوه رکعته کول سنت مؤکده دي، ③ د ماښام تر لمانځه وروسته هم دوه رکعته سنت مؤکده دي ④ همدارنګه د ماخوستن تر لمانځه وروسته هم دوه رکعته سنت مؤکده دي.

⑤ د ماپښين تر لمانځه مخکي څلور رکعته په يوه سلام سره کول سنت دي، ⑥ همدارنګه د جمعې تر لمانځه مخکي څلور رکعته سنت مؤکده دي، همداسي د جمعې تر لمانځه وروسته.

ښکاره دي وي چي په کومو لمنځونو کي څلور رکعته سنت مؤکده دي، په هغوی کي سنت همغه وخت اداء کيږي کله چي څلور سره رکعته په يوه سلام سره وکړي، که بېله عذره هر دوه رکعته جلا، جلا وکړي، نو سنت نه اداء کيږي. (شامي ج۱، ص۶۳۰)

**فايده:** د سنت مؤکده وو د اداء کولو په هکله په حديثو کي ډېر فضيلتونه وارد سوي دي، په يوه حديث کي دي چي کوم څوک په ورځ او شپه کي له فرائضو څخه بغير ۱۲ رکعته سنت کوي، د هغه لپاره به په جنت کي محل تعمير کړل سي. (رواه مسلم، مراقی الفلاح ص۲۱۳)



## د سنتو نيت

**مسئله:** په سنتو او نفلو کي مطلق نيت کافي دی، يعني که محض دا نيت وکړي چي زه دومره رکعته لمونځ کوم، نو هم دا مذکوره سنت اداء کيږي، په جلا توګه "سنت" ويل يا وخت ذکر کول او داسي نور څه ضروري نه دي، او که څوک دا تفصيلات په نيت کي ذکر کړي، نو هم څه حرج نسته.

په بعضي خلکو کي دا خبره مشهوره ده چي فرض لمنځونه د الله لپاره کول کيږي، دا خبره محض پر جهالت مبني ده، لمنځونه خو ټول صرف د الله لپاره کول کيږي، برابره ده فرائض وي او که سنن او نوافل وي، او سنت لمنځونو ته فقط په دې وجه سنت ويل کيږي چي د هغوی د کولو ثبوت او حکم د نبي کريم ﷺ له طرفه سوی دی. (فتاوی دار العلوم ج۴، ص۲۰۲)

## د سنن غير مؤکده بيان

﴿۶۳۰﴾ وَنُدِبَ أَرْبَعٌ قَبْلَ الْعَصْرِ وَالْعِشَاءِ وَبَعْدَهَا او مستحب دي څلور رکعته د مازيګر او ماخوستن تر لمانځه مخکي وَسِتٌّ بَعْدَ الْمَغْرِبِ او شپږ د ماښام تر لمانځه وروسته.

**تشريح:** ① د مازيګر تر لمانځه مخکي څلور (۴) رکعته سنت غير مؤکده دي، که د څلورو رکعتو موقع نه وي، نو لږ تر لږه دي دوه رکعته وکړي، ② د ماخوستن تر لمانځه مخکي څلور (۴) رکعته سنت غير مؤکده دي، ③ همدارنګه د ماخوستن تر لمانځه وروسته څلور (۴) رکعته سنت غير مؤکده دي، خو په دې کي اختلاف دی چي په دغه څلورو کي د ماخوستن دوه رکعته سنت مؤکده هم داخل دي او که هغه جلا دي؟ د بعضي حضراتو رايه دا ده چي په دغه څلورو رکعتو کي دوه رکعته مؤکده هم شامل دي، او بعضو هغوی جلا کړي دي او د شپږو رکعتو قائل دي. دوه رکعته مؤکده او څلور رکعته غير مؤکده (حلبی کبير:۳۷۸)، ④ د نبي کريم ﷺ فرمان دی چي کوم څوک د ماښام تر

لمانځه وروسته شپږ رکعته (داوابین لمونځ) وکړي او د هغوی په مینځ کي څه غلطه خبره تر خوله نه وباسي، نو دا شپږ رکعته په ثواب کي د هغه لپاره د دولسو کالو د عبادت برابر ګرځول کیږي. (ترمذي شریف ج:۱، ص:۹۸)

**فایده:** د ماښام تر لمانځه وروسته دغه شپږ رکعته نفلو ته "صلوة الاوابين" وايي (يعني الله ته د رجوع کونکو خلکو لمونځ [توبه او استغفار کونکو لمونځ]). دغه لمونځ ټوله په يوه سلام يا په دوو سلامو سره کول هم جائز دي، لېکن په دريو سلامو سره يعني پر هرو دوو رکعتو سلام ګرځول افضل دي. د دې په فضيلت کي ذکر سوه چي د شپږو رکعتو ثواب د دولسو کالو د عبادت برابر دي.

او د علماؤ په نېز صحيح او متحقق دا ده چي دغه شپږ رکعته له دوه رکعته سنت مؤکده وو څخه بغير دي، نو ځکه دوه رکعته سنت مؤکده دي په جلا سلام سره وکړي. لېکن د حديثو په الفاظو کي د دې هم ګنجايش سته چي دوه رکعته سنت مؤکده هم په دې لمانځه کي شامل کړل سي او د هغه سره شپږ رکعته وشمېرل سي. (شفاء الارواح بحوالۀ عمدة الفقه. و درس ترمذي)

## د سنن مؤکده په اوله ناسته (قعدهٔ اولی) کي به درود شريف نه وايي

﴿۶۳۱﴾ وَيَقْتَصِرُ فِي الْجُلُوسِ الْأَوَّلِ مِنَ الرُّبَاعِيَّةِ الْمُؤَكَّدَةِ عَلَى التَّشَهُّدِ او اكتفاء دي کوي د څلور رکعتيز سنت مؤکده وو په اوله ناسته کي صرف پر تشهد وَلَا يَأْتِي فِي الثَّالِثَةِ بِدُعَاءِ الْاِسْتِفْتَاحِ او په دريم رکعت کي دي د ثناء دعاء (سبحانك اللهم) نه وايي بِخِلَافِ الْمَنْدُوبَةِ په خلاف (د څلور رکعتيز) مستحب لمانځه.

**تشريح:** د څلور رکعتيز سنت مؤکده لمونځ (لکه د ماپښين د لمانځه څخه مخکي څلور رکعته او د جمعې د لمانځه څخه مخکي او وروسته څلور رکعته) په اوله ناسته کي به فقط تشهد وايي يعني تر تشهد وروسته به درود شريف او دعاء نه وايي، همدا حکم په درې رکعتيز لمنځونو کي د اولي ناستي دي. همدارنګه د دريم رکعت په شروع کي به ثناء نه وايي. په خلاف د نفلو چي د نوافلو او سنن غيره مؤکده وو په هر ناسته کي تشهد، درود او دعاء ټوله ويل کيږي. همدارنګه په دريم رکعت کي ثناء، تعوذ او تسميه هم ويل کيږي؛ ځکه نوافل او سنن شفعه دي. يعني د دوی هر دوه رکعته يو لمونځ (جلا لمونځ) دی، خو که صرف تشهد ووايي (لکه په فرضي لمانځه کي). نو هم صحيح دي، خو زياتر خلک په دې مسئله خبره نه دي، هغوی د هر لمانځه په اوله ناسته کي صرف تشهد وايي او درود شريف او دعاء نه وايي حتیٰ که په هېره څه ووايي. نو سجدهٔ سهو کوي. دا غلط فهمي ده. (مراقي الفلاح)

**یادونه**: د مذکوره مسئلې خاص خیال ساتل پکار دي. والنّاس عنها غافلون.

## د قعده اولیٰ د پاته کېدلو حکم

﴿۴۳۲﴾ وَإِذَا صَلّٰى نَافِلَةً أَكْثَرَ مِنْ رَكْعَتَيْنِ وَلَمْ يَجْلِسْ إِلَّا فِيْ آخِرِهَا او کله چې نفلي لمونځ له دوو رکعتو څخه زیات وکړي (مثلاً څلور رکعته وکړي) او نه کښېني مګر د هغه په آخر کې صَحَّ اِسْتِحْسَانًا نو صحیح کېږي د استحسان پر بناء لِأَنَّهَا صَارَتْ صَلٰوةً وَاحِدَةً ځکه چې دا (څلور رکعته نفل) یو لمونځ وګرځېدی وَفِيْهَا الْفَرْضُ الْجُلُوْسُ آخِرَهَا او په دې (څلور رکعتیز لمانځه) کې فرض (صرف) د هغه په آخر کې کښېنستل دي (یعني په دې کې فرض صرف آخره ناسته ده).

**تشریح**: که یو څوک څلور رکعتیز نفلي لمونځ شروع کړي او پر دویم رکعت نه کښېني، بلکې په آخر کې پر څلورم رکعت ناسته وکړي، نو د قیاس تقاضا دا ده چې د هغه لمونځ فاسدېږي. او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی؛ د قیاس دلیل دا دی چې د نفلي لمانځه هر دوه رکعته جلا لمونځ دي (یا په بله وینا هره شفعه یې مستقل لمونځ دی. همدا وجه ده که په درېیم یا څلورم رکعت کې څه د فساد خبره راسي. نو صرف دا آخري دوه رکعته فاسدېږي چې هغه به راګرځول کېږي. اول دوه رکعته صحیح پاتېږي. انو کله چې هر دوه رکعته یې مستقل لمونځ دی او د لمانځه آخره ناسته فرض ده)، لهذا د څلور رکعتیز نفلي لمانځه هره ناسته فرض سوه. او هغه دلته پرېښوول سوې ده. نو اول دوه رکعته فاسد سوه. کله چې اول دوه رکعته فاسد سوه، نو د آخري دوو رکعتو شروع هم صحیح نه سوه، نو ځکه ټوله لمونځ فاسد سو. خو فتویٰ پر قیاس نه ده. بلکې فتویٰ پر استحسان ده. او د استحسان تقاضا دا ده چې د هغه لمونځ نه فاسدېږي؛ د استحسان دلیل دا دی چې کله ده اوله ناسته پرېښووله او د درېیم رکعت لپاره ولاړ سو، نو ده خپل ټوله لمونځ صلاة واحده (یو لمونځ) وګرځوي. لهذا اوس هغه لمونځ د فرضي لمانځه مشابه سو او د هغه د مېنځ ناسته (اوله ناسته) واجب وګرځېده او د آخري دوو رکعتو ناسته قعدهٔ اخیره وګرځېده او فرض سوه. لهذا اوس د سجدهٔ سهوې په کولو سره د هغه لمونځ بېله کراهته صحیح کېږي (ځکه په سجدهٔ سهوې سره د پرېښوول سوي واجب "اولې ناستې" تلافي وسوه). او که سجدهٔ سهو نه وکړي، نو د کراهت تحریمه سره اداء کېږي، لېکن د هغه راګرځول به واجب وي (د قیاس او استحسان پوره بحث به د اصولو په کتابونو کې راسي). (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

## خومره رکعته نفل په یوه سلام سره کول افضل دي

﴿۴۳۳﴾ وَكُرِهَ الزِّيَادَةُ عَلٰى أَرْبَعٍ بِتَسْلِيمَةٍ فِي النَّهَارِ او مکروه دي زیاتوب کول پر څلورو رکعتو په یوه سلام سره په ورځ کي وَعَلٰى ثَمَانٍ لَيْلًا او (زیاتوب کول) پر اته رکعتو د شپې وَالْأَفْضَلُ فِيهِمَا رُبَاعٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او افضل په ورځ او شپه دواړو کي څلور. څلور رکعته (په یوه سلام سره کول) دي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز وَعِنْدَهُمَا الْأَفْضَلُ فِي اللَّيْلِ مَثْنٰى مَثْنٰى او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز افضل په شپه کي دوه دوه رکعته دي وَبِهِ يُفْتٰى او پر همدې فتویٰ ورکول کیږي.

**لغات:** ﴿رُبَاعٌ﴾ غیرِ منصرف دی د وصفیت او عدل په وجه. دا له "أَرْبَعٌ أَرْبَعٌ" څخه معدول دی چي هغه معنیٰ ده: څلور، څلور. لکه جَاءَ الْقَوْمُ رُبَاعَ خلک راغله څلور. څلور. ﴿مثنٰی﴾ دوه. دوه. دا هم غیر منصرف دی او د مذکر او مؤنث دواړو لپاره استعمالیږي.

**تشریح:** د ورځي په نفلو کي په یوه سلام سره څلور رکعته کولای سي او له دې څخه زیات کول مکروه دي، همدارنګه د شپې په نفلو کي تر اتو رکعتو پوري په یوه سلام سره کولای سي. له دې څخه زیات په یوه سلام سره کول مکروه دي.

والأفضل إلخ: خو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز افضل دا ده چي که ورځ وي او که شپه. څلور رکعته دي په یو سلام سره کوي؛ ځکه په دې کي (د دوو رکعتو په نسبت) تحریمه تر ډېر وخته پوري پاتیږي. نو په دې کي به مشقت زیات وي، لهذا فضیلت به یې هم زیات وي. او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز افضل دا ده چي د ورځي پر مهال دي څلور رکعته په یو سلام سره کوي او د شپې پر مهال دي دوه رکعته په یوه سلام سره کوي او فتویٰ د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله پر قول ده. (شفاء الارواح)

## د شپې نفل د ورځي له نفلو څخه افضل دي

﴿۴۳۴﴾ وَصَلٰوةُ اللَّيْلِ أَفْضَلُ مِنْ صَلٰوةِ النَّهَارِ او د شپې لمونځ د ورځي له لمانځه څخه افضل دی.

**تشریح:** یعني د شپې نوافل د ورځي له نوافلو څخه افضل او غوره دي. خصوصاً د شپې په آخره حصه کي؛ ځکه د دې ډېر فضیلت وارد سوی دی او بل ځکه چي شپه د تنهائي وخت دی. انسان له

ټولو شیانو څخه فارغه وي، د هغه ذهن او توجّه برابره وي، همدارنګه هلته بل څوک هم نه وي چې د رياء پیدا کېدلو خطره وي، په خلاف د ورځې. (شفاء الارواح، انوار الايضاح)

## په لمانځه کې زیاته ولاړه (دربدل) له زیاتو سجدو څخه افضل دي

| |
|---|
| ﴿۴۳۵﴾ وَ طُوْلُ الْقِيَامِ أَحَبُّ مِنْ كَثْرَةِ السُّجُوْدِ او ولاړه اوږدول د سجدو له ډېروالي څخه خوښ (افضل) دي (يعني په رکعت کې قرائت اوږدول او ډېر وخت دربدل له زیاتو رکعتو کولو څخه افضل دي). |

**لغات**: ﴿أَحَبُّ﴾ د نصر له بابه اسم تفضيل دی: زیات محبوب، خوښ.

**تشريح**: د "طول القيام" مطلب دی "قرائت اوږدول" او د "كثرة السجود" مطلب دی "زيات ركعتونه كول" (يعني مختصره قرائت كول او ركعتونه ډېر كول).

مسئله دا ده چې طول القيام له كثرة السجود والركوع څخه افضل دی؛ ځکه د طولُ القیام په صورت کې به د قرآن قرائت زیات وي او د کثرةُ السجود په صورت کې به تسبیحات زیات وي، او ښکاره خبره ده چې د قرآن قرائت له تسبيحاتو څخه ډېر افضل دی، چې د قرآن فضائل د تسبيحاتو په مقابله کې زیات دي، نو ځکه ولاړه اوږدول او کم رکعتونه کول افضل دي له دې څخه چې ولاړه کمه کړل سي او د رکعتونو شمېر زیات کړل سي (مثلاً په دوو رکعتو کې زیات قرائت. اوږده ولاړه کول او دومره وخت پکښې صرفول افضل دي چې په هغومره وخت کې څلور رکعته کېدلای سي). (شفاء الارواح، عون الفتاح، تکميل الايضاح)

او صاحب د "انوار الايضاح" صورت د مسئلې داسي بیان کړی دی چې د شپې په نفلو کې طول القيام افضل دی او د ورځو په نفلو کې كثرة السجود؛ ځکه له نبي ﷺ څخه د ورځې پر مهال اوږده نفلونه کول منقول نه دي، حال دا چې په شپه کې به نبي ﷺ اوږده نفلونه کول، همدا زموږ د اکابرو معمول دی، او د دې وجه دا ده چې د ورځې په مزاج کې انقباض دی، که بنده اوږد قرائت کوي، نو طبیعت ملګري نه ور سره کوي او د شپې په مزاج کې انبساط دی (همدا وجه ده چې تفريحي مجلسونه لکه مشاعره او داسي نور د شپې کول کېږي)، نو ځکه د شپې په نفلو کې طول قیام افضل دی، خو دېو عارض په وجه د دې برعکس هم کېدلای سي، مثلاً د روژې په میاشته کې یو حافظ یا بل څوک د ورځې په نفلو کې یاده سوې سپاره وایي، نو په طول قیام کې هیڅ حرج نسته، مطلب دا چې د عوارضو خبره جلا ده، په عامو حالاتو کې د ورځې پر مهال د كثرة السجود په روایت باندي او د شپې پر مهال د طول القيام په روایت باندي عمل کول پکار دي؛ ځکه په روایاتو کې د دواړو فضیلت راغلی دی. (انوار الايضاح)



# فَصْلٌ فِيْ تَحِيَّةِ الْمَسْجِدِ وَصَلَاةِ الضُّحٰى وَإِحْيَاءِ اللَّيَالِيْ

(دا) فصل د تحية المسجد، د څاښت د لمانځه او د شپو رونولو (رښېدلو (شب بيداری)) په بيان کې دی

## د تحية المسجد بيان

﴿۶۳۶﴾ سُنَّ تَحِيَّةُ الْمَسْجِدِ بِرَكْعَتَيْنِ قَبْلَ الْجُلُوْسِ سنت دي (سنت کړی سوي دي) د مسجد تحيه اداء کول په دوه رکعتو سره مخکې تر کښېنستلو.

**لغات:** ﴿تحيّة﴾ سلام کول. ﴿تحيّة المسجد﴾ مسجد ته داول داخلېدلو پر مهال په مسجد کې دوه رکعته لمونځ کول، دې ته تحية المسجد وايي.

**تشريح:** مسجد ته د داخلېدلو سره سمدستي دوه رکعته تحيّة المسجد کول سنت دي (په دې شرط چې هغه مکروه وخت نه وي)، نبي کريم ﷺ د تحيّة المسجد اداء کولو حکم کړی دی. مسجد ته له داخلېدلو څخه وروسته که يو مانع نه وي، نو تر کښېنستلو مخکې تحية المسجد اداء کول پکار دي، دا د بنده له طرفه و رب المسجد ﷻ ته د سلام کولو طريقه ده. يا په بله وينا دا چې تحيّة المسجد اداء کول د مسجد د تعظيم لپاره دي او د مسجد له تعظيم کولو څخه مراد د ربُ المسجد تعظيم دی. او کوم کس چې مسجد ته ورسيږي او کښېني، بيا پورته سي او د تحيّة المسجد دوه رکعته وکړي، نو دا هم تحيّة المسجد دی، د کښېنستلو په وجه تحية المسجد نه فوتيږي. خو که ډېر کړی کښېني، نو په دې سره د تحيّة المسجد وخت د لاسه وځي، او د لږ او زيات وخت تعيين د مبتلیٰ به رايي ته پرېښوول سوی دی. (مراقي الفلاح مع الطحطاوي)

## د تحية المسجد قائم مقام لمنځونه

﴿۶۳۷﴾ وَأَدَاءُ الْفَرْضِ يَنُوْبُ عَنْهَا او فرض لمونځ اداء کول قائم مقام کيږي (پر ځای درېږي) د تحية المسجد وَكُلُّ صَلٰوةٍ أَدَّاهَا عِنْدَ الدُّخُوْلِ بِلَانِيَّةِ التَّحِيَّةِ او هر هغه لمونځ (د تحية المسجد قائم مقام کيږي) کوم چې يې اداء کړي (مسجد ته) د داخلېدلو په وخت کې بېله د تحية المسجد له نيت څخه.

**لغات:** ﴿ينوب﴾ د نصر له بابه مضارع معلومه ده. د دې باب په صله کې چې عَنْ راسي. نو معنی يې ده: نائب کېدل، قائم مقام کېدل (پر ځای درېدل). ﴿التحيّة﴾ سلامي، جمع: تَحِيّات. عنها: د ضمير مرجع تحية المسجد دی. أدّاها: د ضمير مرجع صلوٰة دی.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چې که مسجد ته د داخلېدلو سره سملستي يو لمونځ يعني فرض يا سنت يا نفل وکړي، نو هغه د تحيّة المسجد هم قائم مقام کېږي (يعني د هغه لمانځه ځخه بغير د تحية المسجد ثواب هم ورته حاصلېږي)، که څه هم په هغه کې يې د تحيّة المسجد نيت نه وي کړی، خو غوره دا ده چې په زړه کې د تحيّة المسجد نيت هم وکړي. (شامي ج:۲، ص:۴۵۹)



**مسئله:** له صبح صادق څخه تر لمر راختو پورې تحية المسجد او تحية الوضوء يا يو بل نفلي لمونځ کول جائز نه دي، په دې وخت کې د سهار له دوه رکعته سنت مؤکده څخه بغير بل نفلي لمونځ کول مکروه دي، همدارنګه د مازيګر تر لمانځه وروسته تر لمر لوېدلو پورې به هم يو نفل نه کول کيږي. همدارنګه دا خبره هم ياد ساتل پکار دي چې کوم څوک بار، بار مسجد ته ځي، نو صرف دوه رکعته د تحيّة المسجد په نيت سره د ټولي ورځي لپاره کافي دي. (مراقي الفلاح مع الطحطاوي)

## د تحيّة الوضوء بيان

﴿۶۳۸﴾ وَنُدِبَ رَكْعَتَانِ بَعْدَ الْوُضُوْءِ قَبْلَ جَفَافِهٖ او مستحب دي دوه رکعته له اوداسه څخه وروسته مخکې تر وچېدلو د اوداسه (د اوبو).

**لغات:** ﴿جفاف﴾ د ضرب د باب مصدر دی: وچېدل.

**تشريح:** تر اودس کولو وروسته د اندامونو تر وچېدلو مخکې دوه رکعته تحية الوضوء (يعني د اوداسه شکرانه) اداء کول مستحب دي، که چيرې تر اوداسه وروسته يو فرض يا سنت يا نفلي لمونځ وکړي، نو د تحية الوضوء قائم مقام کيږي او د هغه ثواب ورته حاصليږي.



## د تحيّة الوضوء فضيلت

په حديث شريف کې تر اودس کولو وروسته د تحيّةُ الوضوء کولو ډېر فضيلت راغلی دی، په يوه حديث شريف کې د نبي ﷺ فرمان دی چې کوم کس هم په ښه توګه اودس وکړي او بيا په پوره خشوع وخضوع سره دوه رکعته تحية الوضوء وکړي، نو الله تبارک و تعالیٰ د هغه لپاره جنت واجب ګرځوي. (مسلم شريف ج:۱، ص:۱۲۲، کتاب المسائل ص:۴۶۰)

## د ځاښت د لمانځه بیان

﴿۴۳۹﴾ وَأَرْبَعٌ فَصَاعِدًا فِي الضُّحٰى او (مستحب دي) څلور رکعته یا تر دې زیات د ځاښت په وخت کې.

**لغات:** ﴿فصاعدًا﴾ یا تر دې زیات، زائد. ﴿الضُّحٰى﴾ د ځاښت وخت (یعني کله چې لمر ښه روښانه سي او ورځ وغوړیږي)، صاحب د معجم یې داسې تعریف کړی دی: الضحٰی: انبساط الشمس وامتداد النهار، أول وقت الضحٰی من ارتفاع الشمس مقدار رمح إلی أن یبقٰی لاستوائها فی کبد السماء مقدار رمح ویقدر ذلك بنحو عشرین دقیقة ، والضحوة الکبرٰی: منتصف النهار الشرعی من الفجر إلی الغروب. (معجم لغة الفقهاء)

**تشریح:** د ځاښت لمونځ له دوو رکعتو څخه تر دوولسو رکعتو پوري ثابت دی، که څوک په دوو رکعتو باندې اکتفاء وکړي، نو هم هغه ته د ځاښت د لمانځه ثواب حاصلیږي او افضل دا ده چې څلور رکعته یا اته رکعته وکړل سي. (در مختار ج:۲، ص:۴۶۵)



### د ځاښت د لمانځه وخت

**مسئله (۱):** کله چې لمر ښه روښانه سي، بیا تر زوال پوري د ځاښت وخت دی، په دې وخت کې دې د ځاښت لمونځ اداء کول کیږي (پورتنی حواله)، که څه هم د دې اول وخت هلته شروع کیږي کله چې لمر یوه نیزه را پورته سي (تقریباً تر لمر راختلو شل [۲۰] دقیقې وروسته)، لیکن غوره وخت یې د ورځې دویمه رُبع ده کوم چې غالباً د لسو، یوولسو بجو +وله دوران څخه شروع کیږي (مثلاً که ورځ دوولس ساعته (ګینټې) وي، مثلاً د سهار لمر په شپږ بجې راخیږي او ماښام په شپږ بجې لویږي، نو دا وخت د لسو بجو څخه شروع کیږي). (شفاء الارواح)

### د ځاښت د لمانځه فضیلت

له حضرت انس بن مالک څخه روایت دی چې نبي کریم ﷺ وفرمایل: کوم څوک چې د ځاښت دوولس (۱۲) رکعته لمونځ کوي، نو الله تعالیٰ د هغه لپاره په جنت کې یو د سرو زرو محل تیاروي. (ترمذی شریف ج:۱، ص:۱۰۸)

### د ځاښت په لمانځه کې کوم سورتونه ویل مستحب دي؟

**مسئله (۲):** کوم چا ته چې سورة الشمس او سورة الضحیٰ یاد وي، نو د ځاښت په لمانځه کې دا دوه سورتونه ویل غوره دي، کنې ورته اختیار دی، کوم سورت چې هم ورته یاد وي، هغه دې وایي، ان شاء الله په ثواب کې یې هیڅ کمي نه راځي. (شامي ج:۲، ص:۴۶۵)

## د اشراق او د څاښت وضاحت

**مسئله**(۳): اشراق او څاښت دوه جلا لمنځونه دي که یو لمونځ دی؟ د فقهاوو او محدثینو په نیز دواړه یو لمونځ دی که د لمر راختلو څخه وروسته نفل وکړي، نو دا اشراق دی او که څه نا وخته یې وکړي (مثلا د نهو، یا لسو، یوولسو بجو پر مهال یې وکړي) نو څاښت دی، او صوفیاء کرام وایي چي دا دواړه جلا لمنځونه دي، د اشراق د لمانځه کم عدد دوه رکعته دی او زیات یې څلور رکعته دی، او د څاښت د لمانځه کم عدد اته رکعته دي او زیات یې دوولس رکعته دی، په دې سلسله کې د فقهاوو او محدثینو رایه صحیح ده. (تحفة الالمعي ج۲، ص،۳۲۹، بحوالۀ انوار الایضاح)

## د تهجّدو بیان

﴿۶۳۰﴾ وَنُدِبَ صَلوٰةُ اللَّيْلِ او مستحب دي د شپې لمونځ (تهجد).

**تشریح**: د صلاة الليل یو قسم عام دی یعني "د شپې نفلي لمونځ" چي که د ماخوستن تر لمانځه وروسته کوم نفلي لمونځ هم وکړل سي، هغه صلاة اللیل دی او د صلاة اللیل دویم قسم خاص دی او هغه د تهجدو لمونځ دی، د تهجّدو لمونځ دا دی چي د ماخوستن تر لمانځه وروسته بیده سي او له نیمي شپې څخه وروسته پا پورته سي او نفل وکړي، د تهجّدو وخت د ماخوستن له لمانځه څخه وروسته تر صبح صادق پوري دی (خو افضل وخت یې له نیمي شپې څخه وروسته او آخر د شپې دی). لهذا کوم څوک چي له بیدېدو څخه وروسته په را ویښېدلو عادت نه وي، هغه دي له بیدېدو څخه مخکي څه نفل د تهجّدو په نیت سره وکړي، نو هغه ته د تهجّدو ثواب حاصلیږي، که څه هم داسي ثواب به نه وي لکه څرنګه له خوب څخه تر ویښېدو وروسته وي (د هغه ثواب ډېر زیات دی. د تهجد معنیٰ همدا "ترك الهجور" ده یعني خوب پرېښوول)، او د تهجدو د لمانځه کم شمېر دوه رکعته دي او زیات یې اته رکعته دي او د لسو او دوولسو رکعتو ثبوت هم ترلاسه کیږي، لېکن د نبي کریم ﷺ اکثره عادت به اته رکعته وو، او د موقع مطابق به یې کله کم یا زیات کول.

د تهجّدو فضائل ډېر شمېره دي، دا لمونځ له صحابه وو څخه واخله تر نن سبا پوري د ټولو نېکانو معمول دی او صوفیاء کرام فرمایي: چي له تهجّدو څخه بغیر څوک د ولایت درجې ته نه سي رسېدلای. (شفاء الارواح)

## د "صلاة الاستخاره" بیان

﴿۶۳۱﴾ وَصَلوٰةُ الْإِسْتِخَارَةِ او (مستحب دی) د استخارې لمونځ.

**لغات**: ﴿الاستخارة﴾ د استفعال د باب مصدر دی، طلب د خیر کول (خیر غوښتل)، اصطلاحي معنیٰ یې ده: تر مخصوص لمانځه وروسته دا دعاء کول چي په فلانکي معامله کي چي ... په کوم څه کي زما

خير وي، اې الله تعالیٰ د هغه وطرف ته زما لارښوونه وکړې! (هغه را نصيب کړې!). په دې سلسله کې له حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه څخه مختصره دعاء دا منقوله ده "اَللّٰهُمَّ خِرْ لِيْ وَاخْتَرْ لِيْ" (اې الله زما لپاره خير متعين کړه! او زما لپاره يې خوښ کړه!).

**تشريح**: د استخارې لمونځ يعني د خير د طلب کولو لمونځ هغه وخت کول مستحب دي کله چې يو چا ته کوم جائز مهم کار پېښ سي، مثلاً يو ځای د کوزدې کولو يا سفر کولو اراده لري او د هغه په کولو يا نه کولو کې شکمن وي يا په دې باره کې شکمن او مترددوي چې دا کار بايد څه وخت وکړم (نو په دې وخت کې د استخارې لمونځ سنت دی)، ها! د عبادت او د نېک کار مثلاً د حج، جهاد، همدارنګه د فرض، واجب، سنت او مستحب کار د کولو او د حرام او مکروه کار د پرېښوولو لپاره استخاره نه کېږي؛ ځکه د دې کارو لپاره خو هغه ته حکم سوی دی (در کار خير هيچ حاجت استخاره نيست). خو د وخت د تعين يا د مخصوص حالت لپاره په دوی کې هم استخاره کولای سي. مثلاً په دې باره کې شکمن وي چې حج ته په جهاز (طياره) کې سفر وکړم او که د سمندر د لارې په بېړۍ (کښتۍ) کې سفر وکړم، يا مثلاً د کمپنۍ د لارې حج ته ولاړ سم او که د حکومت (سرکار) د لارې. يا مثلاً نن سفر وکړم او که سبا، يا مثلاً (په جهاد يا حج يا داسې نورو کې) فلانکی کس د سفر ملګری جوړ کړم او که نه کړم او داسې نور، نبي کريم ﷺ به په دومره اهتمام سره د استخارې د لمانځه تعليم ورکوی لکه د قرآن مجيد تعليم (خو افسوس زموږ پر حال! چې نن موږ دغه اهم سنت پرې اېښې دی او ځان ته مو ګران کړی دی. حال دا چې د دې طريقه آسانه ده او بيدېدل يا خوب ليدل او داسې نور پکښې شرط نه دي. بلکې محض تر پوره استخاره کولو وروسته چې د زړه د ميلان مطابق کوم کار وکړي، نو ان شاء الله پښېمانه به نه سي).

د استخارې د لمانځه طريقه دا ده چې تر اودس کولو وروسته دوه رکعته لمونځ د استخارې په نيت سره وکړي، ښه دا ده چې په اول رکعت کې سورة الکافرون او په دوهم رکعت کې سورة الاخلاص ووايي (او له بعضې سلفو څخه منقول دي چې په اول رکعت کې دې دا آيتونه ووايي: ﴿وَرَبُّكَ يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ وَيَخْتَارُ مَا كَانَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ، وَرَبُّكَ يَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُورُهُمْ وَمَا يُعْلِنُونَ﴾ (سورة القصص ۶۸، ۶۹) او په دوهم رکعت کې دې دا آيتونه ووايي: ﴿وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَمْرًا أَنْ يَكُونَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ وَمَنْ يَعْصِ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا مُبِينًا﴾ (سورة الاحزاب ۳۶)). له سلام ګرځولو څخه وروسته دې د استخارې دعاء ووايي او د دې دعاء په اول او آخر کې حمد او درود شريف ويل مستحب دي. د استخارې دعاء دا ده:

"اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَسْتَخِيْرُكَ بِعِلْمِكَ وَأَسْتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ وَأَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ الْعَظِيْمِ فَإِنَّكَ تَقْدِرُ وَلَا أَقْدِرُ وَتَعْلَمُ وَلَا أَعْلَمُ وَأَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ، اَللّٰهُمَّ إِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هٰذَا الْأَمْرَ خَيْرٌ لِّيْ

فِيْ دِيْنِيْ وَمَعَاشِيْ وَعَاقِبَةِ أَمْرِيْ (وَعَاجِلِهٖ وَآجِلِهٖ) فَاقْدِرْهُ لِيْ وَيَسِّرْهُ لِيْ ثُمَّ بَارِكْ لِيْ فِيْهِ وَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هٰذَا الْأَمْرَ شَرٌّ لِيْ فِيْ دِيْنِيْ وَمَعَاشِيْ وَعَاقِبَةِ أَمْرِيْ (وَعَاجِلِهٖ وَآجِلِهٖ) فَاصْرِفْهُ عَنِّيْ وَاصْرِفْنِيْ عَنْهُ وَاقْدِرْ لِيَ الْخَيْرَ حَيْثُ كَانَ ثُمَّ رَضِّنِيْ بِهٖ".

دواړه ځایه د "هٰذَا الْأَمْرَ" د ویلو په وخت کي دي خپل کار په زړه کي یاد کړي. یا په ژبه سره دي خپل مقصد ذکر کړي، مثلاً د سفر لپاره دي "هٰذَا السَّفَرَ" ووایي، په یو ځای کي د پاتېدلو لپاره دي "هٰذَا الْإِقَامَةَ" ووایي، د کوزدې او نکاح لپاره دي "هٰذَا النِّكَاحَ" ووایي او د یو شي د رانیولو یا خرڅولو لپاره دي "هٰذَا الْبَيْعَ" ووایي عـلیٰ هٰذا القیاس، او غوره دا ده چي تر اُوو ورځو پوري استخاره وکړي، او که تر اُوو ورځو وروسته هم یو طرف ته د زړه میلان نه وي، نو مسلسل دي استخاره کوي (تر دې چي یو طرف ته یې د زړه میلان برابر سي)، صاحب د شفاء الأرواح (حفظه الله) تر اُوو ورځو پوري د استخاره کولو په هکله دا حدیث نقل کړی دی چي نبي کریم ﷺ و حضرت انس ؓ ته وفرمایل "یا أنس إذا هممت بأمر فاستخر ربك فيه سبع مرات. ثم انظر إلى الذي سبق قلبك؛ فإن الخير فيه" (ای انس! کله چي ته د یو کار قصد وکړې، نو له رب تعالیٰ څخه د هغه په باره کي اُوه واره استخاره وکړه!. بیا هغه څه ته وګوره! اعملي یې کړه! اد کوم څه و طرف ته چي ستا زړه ورانډیتوب کوي آیا په بله ورنا کوم څه چي ستا په زړه کي القاء سي اچي په هماغه کي ستا لپاره خیر او ښېګڼه ده) (شفاء الارواح. انوار الایضاح)

او که څوک دا عربي دعاء نه سي یادولای، نو په پښتو یا په خپله مورنۍ ژبه دي د همدغه مفهوم دعاء غواړي. (شامي ج:۲، ص: ۲۷۰)



## که د لمونځ کولو موقع نه وي، نو استخاره په څنګه کوي؟

که د لمونځ کولو موقع نه وي، مثلاً د وخت د کموالي او تلوار په وجه، یا بله وجه وي مثلاً ښځه د حیض او نفاس په وجه د استخارې لمونځ نه سي کولای، نو صرف د دعاء په ذریعه هم استخاره کېدلای سي، یعني په پوره توجه سره دي د استخارې دعاء ووایي (شامي. شفاء الارواح).

په یوه روایت کي دا مختصره استخاره منقوله ده چي که تلواریې وي او ډېر وخت انتظار نه سي کولای، نو دا دعاء دي مسلسله ووایي ""اَللّٰهُمَّ خِرْ لِيْ وَاخْتَرْ لِيْ وَلَا تَكِلْنِيْ إِلَى اخْتِيَارِيْ" (ان شاء الله خیر به ورلره متعین سي). (شفاء الارواح بحواله عمدة الفقه)

## له استخارې څخه وروسته اصل د زړه میلان او رجحان دی

اصل مدار د زړه میلان دی، تر استخارې وروسته دې انسان خپل د زړه میلان ته ګوري چې کوم ته طرف ته یې زړه مائل سي، ان شاء الله په هغه کې به یې خیر وي.

بعضي مشایخو لیکلي دي چې تر استخاره کولو وروسته دې مخ پر قبله په اوداسه بیده سي، که په خوب کې سپینوالی یا زرغونوالی (یا په بله وینا سپین شی یا زرغون شی مثلاً روښي اوبه یا شنې درختې) ووینی، نو پوه دې سي چې په دې کار کې زما خیر دی، او که تور یا سور شی ووینې، نو پوه دې سي چې دا کار ښه نه دی او له دې څخه بچ کېدل پکار دي، خو دا صرف یو اټکلي (تخمیني) شی دی، اصل مدار د زړه پر میلان دی. نه پر خوبونو، بلکې خوب د زړه د میلان لپاره معاون ثابتیږي. (کتاب المسائل ص: ۴۷۵، شامي ج: ۲، ص: ۴۷۱)

## آیا تر استخارې وروسته یوه طرف ته عمل ضروري دی ؟

له استخاره کولو څخه وروسته چې کوم طرف ته د زړه میلان (قلبي رجحان) وي، پر هغه عمل کول غوره دي، لېکن که یو څوک په یوه وجه د هغه په خلاف عمل وکړي، نو شرعاً هیڅ ګناه نسته؛ ځکه چې د زړه میلان یو شرعي دلیل نه دی، خو په هر صورت کې له الله تعالیٰ څخه د خیر طالب کېدل پکار دي. (امداد الفتاوی ج: ۱، ص: ۵۹۹)

## د استخارې حکمت

د استخارې غټه فایده دا ده چې انسان فرشتهٔ صفته جوړیږي، چې استخاره کونکی له خپل ذاتي رایې څخه وځي او خپله خوښه د رب تعالیٰ د خوښې تابع کوي او په پوره توګه د رب تعالیٰ و طرف ته خپل سر کږوي (او مخکې مو وویل چې استخاره ډېره آسانه ده، خو موږ ځان ته ګرانه کړې ده او د ځان لپاره مو خاص د شپې کول یا په اوداسه بیده کېدل او خوب لیدل او داسې نور زائد شیان شرط ګرځولي دي، حال دا چې په حدیثو کې دا منقول نه دي صرف بعضي مشایخو غوره ګڼلي دي، لهذا که چا ته داسې کول مشکل وي، نو د هغه په وجه دې دا اهم سنت نه پرېږدي، بلکې په خپل هر خصوصي کار کې دې استخاره او د خیر دعاء کوي، ان شاء الله په هغه کار کې به یې خیر او ښېګڼه په نصیب سي او خدای تعالیٰ به یې له شر څخه ساتي).

## د "صلاة الحاجة" بیان

| |
|---|
| ﴿۶۴۳﴾ وَصَلٰوةُ الْحَاجَةِ او (مستحب دي) د حاجت لمونځ. |

**تشریح:** کله چې یو حاجت او ضرورت پېښ سي، برابره ده د هغه تعلق د الله تعالیٰ سره بلا واسطه وي یا بالواسطه وي یعني د یو بنده سره د هغه پوره کېدل متعلق وي مثلاً د یو سرکاري او حکومتي کس په واسطه یو کار کول مطلوب وي (چې هغه زما لپاره دا کار وکړي) یا د یو چا سره نکاح کول غواړي یا له یو چا څخه قرض غواړي، نو د هغه لپاره مستحب ده چې په ښه توګه اودس وکړي او دوه رکعته

نفل وکړي او له سلام ګرځولو څخه وروسته دي حمد او ثناء او درود شریف ووایي بیا دي دا دعاء ووایي (کوم چې په حاشیه کې هم مذکوره ده):

"لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ الْحَلِيْمُ الْكَرِيْمُ سُبْحَانَ اللّٰهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ أَسْئَلُكَ مُوْجِبَاتِ رَحْمَتِكَ وَعَزَائِمَ مَغْفِرَتِكَ وَالْغَنِيْمَةَ مِنْ كُلِّ بِرٍّ وَالسَّلَامَةَ مِنْ كُلِّ إِثْمٍ لَا تَدَعْ لِيْ ذَنْبًا إِلَّا غَفَرْتَهُ وَلَا هَمًّا إِلَّا فَرَّجْتَهُ وَلَا حَاجَةً هِيَ لَكَ رِضًا إِلَّا قَضَيْتَهَا يَا أَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ"، تر دې وروسته چې کوم څه حاجت ورته پېښ وي، له الله تعالیٰ څخه دې د هغه سوال او غوښتنه وکړي، ان شاء الله تعالیٰ حاجت به یې پوره سي. (شفاء الارواح)

د صلاة الاستخاره او صلاة الحاجة تر مینځ فرق دا دی چې د استخارې لمونځ د آینده حاجت لپاره دی او د حاجت لمونځ د موجوده حاجت لپاره دی. (عمدة الفقه)

**فایده:** علامه شامي رَحِمَهُ الله د "تجنیس" په حواله سره ذکر کړي دي چې د حاجت لمونځ د ماخوستن تر لمانځه وروسته څلور رکعته دی چې د هغه ترتیب له یوه مرفوع حدیث څخه دا معلومیږي چې په اول رکعت کې دي تر سورة الفاتحه وروسته درې واره آیت الکرسي وویل سي او په پاته دریو رکعتونو کې دي تر سورة الفاتحه وروسته سورة الاخلاص او معوذتین یو، یو وار وویل سي. (بعضي) مشایخ فرمایي چې موږ دا لمونځ وکړی، نو زموږ ضرور تونه پوره سول. (شامي ج:۱، ص: ۴۷۳ طبع: زکریا)

## د صلاة الحاجة حکمت

کله چې یو بنده له بل بنده څخه د یو حاجت طلب کوي، نو په هغه کې دا احتمال راځي چې (ګواکې) هغه له غیرُ الله څخه استعانت (مدد غوښتل) په یو درجه کې جائز ګڼي، نو دا حاجت طلب کول د هغه د توحید او استعانت په عقیده کې خلل اچوي، نو ځکه شریعت دا لمونځ مقرر کړی دی او تر هغه وروسته یې دا دعاء ښوولې ده چې په عقیده کې فساد رانه سي؛ ځکه کله چې حاجت مند تر لمونځ کولو وروسته الله پاک ته دعاء کوي چې زما دا حاجت د فلانکي په ذریعه پوره کړه!، نو د هغه دا عقیده او یقین پوخ او مستحکم سي چې کونکی ذات صرف الله تعالیٰ دی. هم هاغه کار ساز دی، بنده محض واسطه ده بلکې د کار یو آله ده. د هغه په اختیار کې هیڅ نسته، ټول له څه د الله ﷻ په لاس کې دي. (تحفة الألمعي ج:۲، ص:۳۲۵)

## د روژې د میاشت د آخري لسو ورځو فضیلت

﴿۴۳﴾ وَنُدِبَ إِحْيَاءُ لَيَالِ الْعَشْرِ الْأَخِيْرِ مِنْ رَمَضَانَ او مستحب دي د رمضان آخري لس شپې روڼول (په وینه تېرول او په عبادت سره).

**لغات:** ﴿احیاء﴾ د افعال د باب مصدر دی، ژوندي کول، مراد ځنې شپې روڼول (په وینه تېرول)، یعني د خوب او بیدېدو پر ځای عبادت کول.

**تشریح:** د رمضانُ المبارک اوله عشره یعني اولې لس ورځې د رحمت نازلېدلو ورځې دي، دویمه عشره یعني دویمې لس ورځې د مغفرت حاصلېدلو ورځې دي او دریمه عشره سي. له دوږخ څخه د

خلاصون او نجات ورځې دي (مشكاة شريف ج:١، ص:١٧)، يعني كه ديو څانوم په دوږخيانو كې درج وي، نو د آخري لسو ورځو د اخلاص په عبادت سره يې (ان شاء الله) له دوږخيانو څخه نوم ليرې كول كيږي، نو معلومه سوه د آخري لسو ورځو فضيلت ښځي زيات دي، او شب قدر چې په هغه كې د عبادت كولو دومره اندازه ثواب دي چې په نورو ورځو كې د زرو مياشتو په عبادت كولو سره هم دومره ثواب نه حاصليږي، دا مباركه شپه مشايخ فرمايي چې په همدې شپو كې ده، نو ځكه د هغه په اُميد سره په همدې شپو كې ويښ پاتېدل او عبادت كول پكار دي او كه ټوله شپه روښول چا ته حاصل نه سي، نو څومره چې يې وس او طاقت وي، هغومره دې ويښ پاته سي، چې د "ما لايُدرك كله لايترك كله" په مصداق سره څومره اندازه فضيلت حاصلولای سي، حاصل يې كړي.

## د اختر د شپې فضيلت

﴿ ۶۲۴ ﴾ وَاِحْيَاءُ لَيْلَتِي الْعِيْدَيْنِ او (مستحب دي) روښول د دواړو اخترونو شپې.

**تشريح**: د كوچني اختر او لوی اختر شپه ډېر زيات فضيلت لري، په يوه روايت كې د نبي ﷺ فرمان چې كوم څوك په اخلاص او احتساب سره د اختر شپه په عبادت تېره كړي، د ده زړه به په هغه ورځ ژوندی پاته وي په كومه ورځ چې د ټولو خلكو زړونه مړه وي (ابن ماجه، حديث رقم: ١٧٨٢)، يعني په دې شپه كې عبادت كونكي حضرات به د محشر په سخته ورځ مطمئن او بې خوفه وي، او په بعضي رواياتو كې دي چې د اختر شپه په آسمانو كې په "ليلة الجائزة" يعني د انعام په شپه سره پېژندل كيږي، نو ځكه په دې شپه كې د فضول او عبث شيانو، بې ځايه ګرځېدلو او تفريحاتو پر ځای عبادت كول پكار دي او له دې خير څخه نه محرومېدل پكار دي.

## د ذی الحجې د اولو لسو شپو فضيلت

﴿ ۶۲۵ ﴾ وَلَيَالِي عَشْرِ ذِي الْحَجَّةِ او (مستحب دي روښول) د ذی الحجې د (اولو) لسو شپو.

**لغات**:

**تشريح**: په حديث كې دي چې د الله تعالىٰ د عبادت لپاره د ذی الحجې د لسو شپو څخه غوره زمانه نسته، په هغوی كې د يوې ورځې روژه نيول د يوه كال د روژو سره برابر دي او د يوې شپې عبادت كول يې د شب قدر د عبادت سره برابر دي (ترمذی. ابن ماجه بحوالة مراقی الفلاح ص: ٢١٠)، په قرآن كريم كې په سورة الفجر كې الله تعالىٰ په لسو شپو قسم كړی دی، هغه لس شپې د جمهورو په نيز همدا د ذی الحجې لس شپې دي، لهذا دا شپې روښول او په عبادت مشغولېدل ډېر زيات فضيلت او د زيات ثواب موجب دي.

## د برات د شپې فضيلت

﴿۳۲۶﴾ وَلَيْلَةِ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ او (مستحب دي روښول) د شعبان د پنځلسم د شپې.

**تشريح:** همدارنګه د شعبان د پنځلسم په شپه کي عبادت کول مستحب دي، په دې شپه کي له ضعيفو رواياتو څخه درې خبرې ثابتې دي: ① اول دي په دغه شپه کي د ځان لپاره او د مړو لپاره د مغفرت او بخښني دعاء وکړل سي، هديرې ته تلل ضروري نه دي، ② دويم د شعبان په پنځلسمه روژه نيول، او دا صرف مستحب دي، ③ دريم په دې شپه په انفرادي توګه د خپل وس مطابق يو نېک کار کول. د شمېر له تعين څخه بغير نفلونه کول او داسې نور. (شفاء الارواح، انوار الايضاح)

﴿۳۲۷﴾ وَيُكْرَهُ الْاِجْتِمَاعُ عَلٰى اِحْيَاءِ لَيْلَةٍ مِنْ هٰذِهِ اللَّيَالِيْ فِي الْمَسَاجِدِ او مکروه دي جمع کېدل په روښولو باندي ديوې شپې له دغو شپو څخه په مسجدونو کي.

**تشريح:** په مذکوره پورتنيو شپو کي محض ويښ پاتېدل د ثواب کار نه دی. بلکي ثواب همغه وخت حاصلېږي، کله چي په يو عبادت مشغوله سي، او د عبادت هم څه تخصيص نسته. بلکي په کوم عبادت کي چي يې زړه او خشوع او خضوع پاتېږي، هغه اختيارول کېدلای سي، او په دې شپو کي په مساجدو کي جمع کېدل، تولی جوړول او هسي بې ځايه خبري کول او فضول وخت تېرول، په عبثو کارو اخته کېدل او مېله جوړول محض د خپل وخت ضياع ده، چي له هغه څخه بچ کېدل ضروري دي. (امداد المفتيين ص: ۲۱۰، فتاویٰ محموديه ج: ۱۲، ص: ۴۰۵)

**يادونه:** بعضي خلک دا عذر پېشوي چي که موږ په تنهايي کي عبادت کوو، نو خوب راځي، په مسجد کي شبينه او رڼا وي او د خلکو تولی جوړه وي چي د هغه په وجه خوب قابو کېدلای سي. اې پر دې خبره يقين وکړه! چي که ته څه ګړی يو ځای په تنهايي کي د الله ﷻ مخ ته ژړا او زاري وکړې او په عبادت مشغوله سې، نو دا څه ګړی له هغه تولي شپې څخه ډېر غوره دي کوم چي يې ته په مېله کي تېر کړې، ځکه په مېله کي چي کوم وخت تېر سو، هغه خلاف سنت تېر سو، او په تنهايي کي چي کوم وخت تېر سو، هغه د سنت مطابق تېر سو او په اخلاص سره بېله رياء تېر سو. (اصلاحي خطبات بتغير ج۴)



# فَصْلٌ فِيْ صَلَاةِ النَّفْلِ جَالِسًا وَالصَّلٰوةِ عَلَى الدَّابَةِ

(دا) فصل دی په ناسته د نفل کولو او پر سپارلي د لمونځ کولو په بیان کې

## نفلي لمونځ په ناسته کول

﴿ ۶۴۸ ﴾ يَجُوْزُ النَّفْلُ قَاعِدًا مَعَ الْقُدْرَةِ عَلَى الْقِيَامِ جائز دي نفل کول په ناستي د قدرت لرلو سره پر ولاړي لٰكِنْ لَهٗ نِصْفُ أَجْرِ الْقَائِمِ إِلَّا مِنْ عُذْرٍ لیکن د هغه لپاره دولاړ ځـس (په ولاړه لمونځ کونکي) نیم ثواب دی مګر د عذر په وجه (یعني که یو عذر وي. نو د هغه ثواب نه کمیږي).

**تشریح**: د سهار له سنتو څخه بغیر نور سنتونه (که څه هم تراویح وي) بېله عذره په ناستي کول جائز دي، لېکن د سلفو د عمل خلاف دي. او بېله عذره په ناسته کونکي ته د ولاړ (درېدونکي) کس نیم ثواب حاصلیږي، خو د که د یو عذر په وجه په ناسته لمونځ وکړي. نو په ثواب کې یې کمي نه راځي، بلکې د ولاړ کس په اندازه ثواب ور ته حاصلیږي. (شفاء الارواح)

## نفلي لمونځ کونکي به څه ډول کښېني؟

﴿ ۶۴۹ ﴾ وَيَقْعُدُ كَالْمُتَشَهِّدِ او کښېني به د تشهد وېونکي په څېر فِي الْمُخْتَارِ د مختار (اختیار سوي) قول مطابق.

**تشریح**: علماؤ د نفلو د ناستي په کیفیت کې اختلاف کړی دی: یو قول دا دی چې څه ډول د نفل کونکي خوښه وي، هغسي دي کښېني، دوېم قول د چار زانو کښېنستلو دی. لېکن غوره مذهب همدا دی چې د تشهد پر کیفیت به کښېني. (شفاء الارواح)

## نفلي لمونځ څه په ولاړه او څه په ناسته کول

﴿ ۶۵۰ ﴾ وَجَازَ إِتْمَامُهٗ قَاعِدًا بَعْدَ افْتِتَاحِهٖ قَائِمًا بِلَا كَرَاهَةٍ او جائز دي هغه (نفل) په ناستي پوره کول وروسته د هغه له شروع کولو څخه په ولاړي بېله کراهته (یعني په ولاړي سره د نفلو له شروع کولو څخه وروسته بیا په ناستي نفل پوره کول بېله کراهته جائز دي) عَلَى الْأَصَحِّ د صحیح ترین قول مطابق.

بلکې لاندې شوه کېدل او پر ځمکه اداء کول ضروري دي؛ ځکه د سهار د سنتو ډېر تأکید راغلی دی. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

## د نفل کولو په دوران کې پر یو شي تکیه کول

﴿ ۶۵۳ ﴾ وَجَازَ لِلْمُتَطَوِّعِ الْاِتِّكَاءُ عَلٰى شَيْءٍ إِنْ تَعِبَ بِلَا كَرَاهَةٍ او جائز دي د نفل کونکي لپاره پر یو شي تکیه کول که چیرې ستړی سي بېله کراهته وَإِنْ كَانَ بِغَيْرِ عُذْرٍ او که بغیر له عذره وي (یعني هېڅ عذر یې نه وي) كُرِهَ فِي الْأَظْهَرِ نو مکروه دي په ظاهر روایت کې لِإِسَاءَةِ الْأَدَبِ د بې ادبۍ له وجهې څخه.

**لغات:** ﴿الاتکاء﴾ د افتعال د باب مصدر دی: تکیه کول (تکیه لګول)، ﴿تعب﴾ د سمع د باب ماضي ده: ستړی کېدل، په تکلیف کېدل.

**تشریح:** که څوک نفلي لمونځ په ولاړه شروع کړي، بیا ستړی سي او پر دېوال یا لکړه وغیره باندې تکیه وکړي، نو بلا کراهته جائز دي، او بغیر له ستړي کېدو داسې کول مکروه تنزیهي دي؛ ځکه چې د ادب خلاف دي.

## پر سپارلي د نجاست سره لمونځ کول

﴿ ۶۵۵ ﴾ وَلَا يَمْنَعُ صِحَّةَ الصَّلٰوةِ عَلَى الدَّابَّةِ نَجَاسَةٌ عَلَيْهَا او نه منع کوي د لمانځه صحیح والی پر سپارلي د نجاست موجودېدل وَلَوْ كَانَتْ فِي السَّرْجِ وَالرِّكَابَيْنِ که څه هم نجاست په زین (څین) او رکابو کې وي عَلَى الْأَصَحِّ د صحیح ترین قول مطابق.

**لغات:** ﴿السّرج﴾ زین (څین)، د لرګي او څرمنې څخه جوړه سوې هغه آله چې د انسان د سپرېدلو لپاره د آس په ملا باندې اېښوول کېږي، ﴿رکابین﴾ تثنیه د رِکَابٌ ده؛ هغه د اوسپنې یا بل څه حلقه (کړی) ته وایي کوم چې د آس د زین دواړو خواوو ته راځړېږي چې په هغه کې پښې اېښوول کېږي.

**تشریح:** یعني که د سپارلۍ پر څاروي نجاست لګېدلی وي برابره ده په زین باندې وي یا د پښو اېښوولو په ځای (رکاب) باندې وي، نو هم د هغه لمونځ صحیح کېږي، او د دې نجاست او مرداری په

وجه د هغه په لمانځه باندي څه اثر نه پرېوځي، بس! د لمونځ گزار بدن او جامه پاکېدل پکار دي. (شفاء الارواح، مراقی الفلاح)

## د تګ په حالت کي لمونځ کول

﴿۶۵۲﴾ وَلَا تَصِحُّ صَلٰوةُ الْمَاشِيْ بِالْإِجْمَاعِ او نه صحيح كيږي د پياده تګ كونكي لمونځ په اجماع سره (بالاتفاق).

**تشريح**: يعني د پياده تللو (تګ كولو) په وخت كي لمونځ كول كه څه هم نفلي لمونځ وي بالاجماع صحيح نه دی؛ ځكه په لمانځه كي په عملِ كثير سره لمونځ فاسديږي. او تګ كول هم يو عمل دی، لهذا په لمانځه كي په زيات تګ كولو سره لمونځ فاسديږي. برابره فرض وي او كه نفل. د دواړو حكم يو دی، او په لمانځه كي د عملِ قليل گنجايش سته، لهذا كه لږ ولاړ سي. نو لمونځ نه فاسديږي. فقهاؤ دا مسئله داسي بيان كړې ده چي كه لمونځ گزار پرله پسې درې قدمه يا تر درې زيات ولاړ سي، نو لمونځ يې فاسديږي او كه تر دريو قدمو كم ولاړ سي، يا ځلور. پنځه قدمه ولاړ سي خو په وقفه، وقفه سره ولاړ سي، نو لمونځ يې نه فاسديږي، د فرضو او نفلو دواړو همدغه حكم دی، خو فرض د الله ﷻ په دربار كي خاص حاضري ده، نو ځكه لږ غوندي هم تلل پكار نه دي او نفلي لمونځ خصوصي معامله ده، نو ځكه د لږ تللو گنجايش سته. (شفاء الارواح، انوار الايضاح بحوالة حلبي كبير و شامي)



## فَصْلٌ فِيْ صَلَاةِ الْفَرْضِ وَالْوَاجِبِ عَلَى الدَّابَّةِ

(دا) فصل پر سپارلي د فرضي لمانځه او واجب لمانځه د اداء كولو په بيان كې دى

﴿۶۵۷﴾ لَا يَصِحُّ عَلَى الدَّابَّةِ صَلٰوةُ الْفَرَائِضِ نه صحيح كيږي پر سپارلي فرض لمنځونه وَالْوَاجِبَاتِ كَالْوِتْرِ وَالْمَنْذُوْرِ واجب لمنځونه لكه وتر او نذر كړى سوى لمونځ.

﴿۶۵۸﴾ وَ مَا شَرَعَ فِيْهِ نَفْلًا فَأَفْسَدَهٗ او هغه لمونځ كوم چي يې د نفلو په توګه شروع كړي بيا هغه فاسد كړي (يعني هغه نفلي لمونځ چي تر شروع كولو وروسته يې بيرته مات كړي).

**لغات:** ﴿المنذور﴾ نذر كړى سوى لمونځ، مثلاً يو سړي داسي ويلي وي چي د الله تعالىٰ لپاره پر ما څلور ركعته نذر دي چي سبا به يې كوم، نو پر هغه دا څلور ركعته واجب دي.

**تشريح:** بېله عذره فرضي لمونځ د سپرتيا په حالت كي كول جائز نه دي، بلكي را شوه كېدل او لاندي اداء كول ضروري دي، همدارنګه واجب لمونځ مثلاً وتر او نذر كړى سوى لمونځ پر سپارلي كول جائز نه دي، ځكه په دې كي قيام، ركوع، سجود او استقبال القبلة (مخ پر قبله كېدل) شرط دي. همدارنګه هغه سنت يا نفلي لمونځ چي له شروع كولو څخه وروسته مات كړل سي، نو څرنګه چي د هغه قضاء هم واجب ګرځي، نو ځكه هغه هم د سپرتيا په حالت كي اداء كول جائز نه دي (چي په را روان عبارت كي به هم د دې تذكره وسي). (شفاء الارواح، انوار الايضاح)

### د فاسد كړل سوي نفلي لمانځه حكم

وَمَا شَرَعَ فِيْهِ: سنت او نفلي لمنځونه په شروع كولو سره واجبيږي، لهذا كه څوک په هغه شروع وكړي او بيا په يو وجه هغه مات وكړي، نو وروسته د هغه قضاء واجبيږي. او د واجب لمنځونو حكم پورته ذكر سو چي بېله عذره پر سپارلي اداء كول جائز نه دي. (مراقى الفلاح)

## د جنازې د لمانځه صحیح کېدلو شرط

﴿۶۵۹﴾ وَلَا صَلٰوةُ الْجَنَازَةِ او نه (صحیح کیږي پر سپارلي) د جنازې لمونځ.

**تشریح:** د جنازې د لمانځه د صحیح کېدلو څو شرطونه دي، له هغوی څخه یو شرط دا دی چې مړی او جنازه به پر ځمکه وي، لهذا که بېله عذره مړی خلکو پورته کړی وي، یا مړی پر سپارلي وي، نو لمونځ نه صحیح کیږي. (در مختار الشامي ج۲، ص۱۰۳، ۱۰۴)

## پر سپارلي سجدهٔ تلاوت کول

﴿۶۶۰﴾ وَسَجْدَةٌ تُلِيَتْ آيَتُهَا عَلَى الْأَرْضِ او هغه سجدهٔ تلاوت چې د هغې آیت پر ځمکه تلاوت کړی سوی وي.

**لغات:** ﴿تليت﴾ د نصر له بابه ماضي مجهوله ده: لوستل (قرآن ویل)، تلاوت کول.

**تشریح:** مسئله دا ده چې که څوک د سجدې آیت پر ځمکه ووایي او تر دې وروسته سپور سي، نو دا سجدهٔ تلاوت پر سپارلي نه سي اداء کولای، خو که د سپرتیا په حالت کې پر سپارلي د سجدې آیت ووایي، نو دا سجدهٔ تلاوت پر سپارلي اداء کول صحیح دي. (طحطاوي على مراقي الفلاح)

## د عذر په وجه فرض او واجب لمونځ پر سپارلي کول

﴿۶۶۱﴾ إِلَّا لِضَرُوْرَةٍ مګر د یو ضرورت (عذر) په وجه (پر سپارلي فرض او واجب کولای سي) كَخَوْفِ لِصٍّ عَلٰى نَفْسِهٖ أَوْ دَابَّتِهٖ أَوْ ثِيَابِهٖ لَوْ نَزَلَ لکه د غله بېره (له غله څخه بېرېدل) پر خپل ځان یا پر خپل سپارلي یا پر خپلو جامو که چیرې هغه را شوه سي وَخَوْفِ سَبُعٍ او (لکه) د درنده بېره وَطِيْنِ الْمَكَانِ او د ځای ختې (یعني چې ځای ټوله ختې وي) وَجُمُوْحِ الدَّابَّةِ او د سپارلي سرکښي (ترهېدل) وَعَدَمِ وِجْدَانِ مَنْ يُرْكِبُهٗ لِعَجْزِهٖ او داسې کس نه موجودېدل کوم چې دئ سپور کړي د ده د عاجز والي په وجه.

**لغات:** ﴿سَبُعٌ﴾ درنده، شیرونکی حیوان لکه زمری، پړانګ، لېوه. جمع: سِبَاعٌ و سُبُوْعٌ. ﴿جموح﴾ د فتح د باب مصدر دی؛ سر کښه کېدل، ترهېدل چې د سپور کس له قابو څخه ووځي. ﴿عجز﴾ د ضرب د باب مصدر دی؛ عاجزه کېدل، له یو شي څخه بې وسه کېدل.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چي که یو عذر وي، نو بیا فرائض او واجبات وغیره د سپرتیا په حالت کي پر سپارلي اداء کول صحیح دي، او معقول عذرونه دا دي: ① که دا بېره او خطره وي چي که له سپارلي ځنځه شوه سم، نو غل به مي ووژني، یا زما مال او سامان به یووسي، یا سپارلي به بوځي. ② یا دا بېره وي چي یو درنده به پر ما یا زما پر سپارلي حمله وکړي، ③ یا ټوله ځای او ځمکه لنده خیشته خټه وي (په دې توګه چي که سجده پرې وکړل سي، نو سر په ننوځي او جامه په خټو ککړېږي)، او وچ ځای د لمانځه لپاره نه پیدا کیږي، ④ یا سپارلي (چارپای) داسي سرکښه وي چي که له هغه ځنځه شوه سي، نو بیا هغه ته نه سي ختلای او هلته هیڅ کومکي موجود نه وي.

نو د دې عذرونو په وجه فرض او واجب لمنځونه پر سپارلي کولای سي او وروسته یې اعاده هم نسته، لیکن حتی الامکان د مخ پر قبله کېدلو خیال ساتل ضروري دي. (انوار الایضاح. شفاء الارواح)

﴿ ۲۶۲ ﴾ وَالصَّلٰوةُ فِي الْمَحْمَلِ عَلَى الدَّابَّةِ كَالصَّلٰوةِ عَلَيْهَا او لمونځ کول په هغه کجاوه کي کوم چي پر سپارلي (پرته) وي داسي دی لکه پر (خودي) سپارلي لمونځ کول سَوَاءٌ كَانَتْ سَائِرَةً أَوْ وَاقِفَةً برابره ده سپارلي تلونکې (روانه) وي او که ولاړه وي.

**لغات:** ﴿المحمل﴾ کجاوه (هودج)، د لښتو او لرګیو ځنځه جوړ سوی هغه ځای کوم چي به پر اوښ د سپرېدلو او کښېستلو لپاره اېښوول کېدی (چي هغه به د کوچنۍ خوني په ډول وو چي سر به یې د ګومټي په شېر وو. او غالبًا په هغه کي به ښځي (زنانې) اسپرول کېدې)، جمع: محامل، ﴿سائرة﴾ د ضرب له بابه د واحد مؤنث فاعل صیغه ده، مصدر: سَيْرًا: تلل، روانېدل.

**تشریح:** مسئله دا ده چي کجاوه کوم چي پر سپارلي اېښوول کیږي، په هغه کي لمونځ کول داسي دي لکه پر سپارلي لمونځ کول، یعني په دواړو کي هیڅ فرق نسته. (انوار الایضاح)

﴿ ۲۶۳ ﴾ وَلَوْ جَعَلَ تَحْتَ الْمَحْمَلِ خَشَبَةً حَتّٰى بَقِيَ قَرَارُهُ إِلَى الْأَرْضِ او که له کجاوې ځنځه لاندي یو لرګی ودروي تر دې چي د کجاوې قرار پر ځمکه پاته سي (یعني پر ځمکه قرار ونیسي) كَانَ بِمَنْزِلَةِ الْأَرْضِ نو بیا هغه د ځمکه په درجه کي ده فَتَصِحُّ الْفَرِيْضَةُ فِيْهِ قَائِمًا نو په هغې کي فرضي لمونځ په ولاړه کول صحیح کیږي.

**لغات:** ﴿خشبة﴾ لرګی (د لرګي تخته یا لوېه ټوټه)، ﴿بقي﴾ د سمع د باب ماضي ده: پاتېدل (باقي پاتېدل).

**تشريح**: مسئله دا ده چي کجاوه کوم چي پر سپارلي پرته وي که تر هغه لاندي لرګی داسي ودرول سي او پر ځمکه تکيه کړل سي چي کجاوه حرکت نه کوي او پر ځمکه قرار ونيسي، نو داسي کجاه د ځمکي او د تخت او کټ په حکم کي ده چي څرنګه پر ځمکه او پر تخت وغيره فرضي لمونځ په ولاړي کول صحيح دي، همداسي په دغه کجاوه کي هم فرضي لمونځ په ولاړي کول صحيح دي. او په دې کي هم بېله عذره فرضي لمونځ په ناستي کول صحيح نه دي. (شفاء الارواح، انوار الايضاح)



## فَصْلٌ فِي الصَّلَاةِ فِي السَّفِيْنَةِ

(دا) فصل دی په کښتۍ کي دلمونځ کولو په بيان کي

## په کښتۍ کي د لمونځ کولو بيان

﴿۶۶۳﴾ صَلٰوةُ الْفَرْضِ فِيْهَا وَهِيَ جَارِيَةٌ قَاعِدًا بِلَا عُذْرٍ صَحِيْحَةٌ په کښتۍ کي فرض لمونځ کول په داسي حال کي چي هغه روانه وي بېله عذره (هم) صحيح دی عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز بِالرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ په رکوع او سجده سره وَقَالَا: لَا تَصِحُّ إِلَّا مِنْ عُذْرٍ او صاحبين (ياران) رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي نه صحيح کيږي مګر د عذر په وجه وَهُوَ الْأَظْهَرُ او همدا اظهر قول دی.

**لغات**: ﴿جارية﴾ د ضرب له بابه د واحد مؤنث فاعل صيغه ده، مصدر: جَرْيًا: روانېدل، تلل.

**تشريح**: که کښتۍ روانه وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز بېله عذره هم په ناستي فرض او واجب لمونځ کول صحيح دي، خو په دې صورت کي دا ضروري ده چي په رکوع او سجده سره به لمونځ اداء کوي، يعني رکوع او سجده په اشاره سره نه صحيح کيږي، او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي بېله عذره په ناستي لمونځ پکښي کول جائز نه دي او همدا ظاهر مذهب دی. ها! که يو عذر وي. نو په داسي صورت کي بالاتفاق په ناستي لمونځ کول صحيح دي (عذرونه په راروان عبارت کي بيان سي).

﴿۲۶۵﴾ وَالعُذْرُ كَدَوَرَانِ الرَّأْسِ او عذر لکه سر ګرځېدل (د سر چکر کول) وَعَدَمِ الْقُدْرَةِ عَلَى الْخُرُوْجِ او (لکه) قدرت نه لرل (له کښتۍ څخه) پر وتلو.

**لغات:** ﴿دوران﴾ د نصر د باب مصدر دی: سر ګرځېدل (چکر باندې راتلل).

**تشریح:** او هغه عذر چې د هغه په وجه په کښتۍ کې په ناستې لمونځ کول جائز دي مثلاً په ولاړه د لمونځ کولو په صورت کې د لمونځ ګزار سر ګرځي، یا د لمونځ ګزار پښې پر یوه ځای قرار نه نیسي، او له کښتۍ څخه بهر نه سي وتلای.

﴿۲۶۶﴾ وَلَا تَجُوْزُ فِيْهَا بِالْإِيْمَاءِ اِتِّفَاقًا او جائز نه دي په کښتۍ کې په اشاره سره لمونځ کول (د تولو) په اتفاق.

**تشریح:** یعني که لمونځ ګزار په رکوع او سجده کولو باندې قادر وي، نو د هغه لپاره په کښتۍ کې په اشاره سره لمونځ کول جائز نه دي (لکه مخکې چې مو ورته ذکر کړه)، دا حکم بالاتفاق دی.

﴿۲۶۷﴾ وَالْمَرْبُوْطَةُ فِيْ لُجَّةِ الْبَحْرِ وَتُحَرِّكُهَا الرِّيْحُ شَدِيْدًا كَالسَّائِرَةِ او هغه کښتۍ کوم چې ترل سوې وي د سمندر (دریاب) په مینځ کې او باد هغې ته سخت حرکت ورکوي (نو) هغه د روانې کښتۍ په څېر ده وَإِلَّا فَكَالْوَاقِفَةِ کنې (یعني که هغې ته باد حرکت نه ورکوي) نو د ولاړې (درېدلې) کښتۍ په څېر ده عَلَى الْأَصَحِّ د صحیح ترین قول مطابق.

**لغات:** ﴿المربوطة﴾ د نصر له بابه د واحد مؤنث مفعول صیغه ده: ترل سوې، مصدر: رَبْطًا: ترل (غوټه کول)، ﴿لجة البحر﴾ د سمندر (دریاب) هغه حصه چې هلته اوبه زیاتې وي، ﴿تحرك﴾ د تفعیل له بابه د واحد مؤنث غائب مضارع صیغه ده: حرکت ورکول، ښورول.

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چې هغه کښتۍ کوم چې د سمندر په مینځ کې درول سوې او ترل سوې وي، خو د باد (هوا) د سمندري څپو په وجه هغه حرکت کوي، نو د هغې حکم د روانې کښتۍ په څېر دی چې په هغه کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز بېله عذره هم په ناستې لمونځ کول صحیح دي او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز صحیح نه دی، او که باد هغې ته حرکت نه ورکوي، بلکې هغه پر خپل ځای ثابته ولاړه وي، نو بیا د هغې حکم د ولاړې او ترل سوې کښتۍ په څېر دی چې د هغه حکم به په را روان عبارت کې ذکر سي.

**تشريح:** يعني کله چي په کښتۍ کي لمونځ شروع کړي، نو دلمونځ ګزار مخ پر قبله کېدل ضروري دي، برابره ده فرض لمونځ وي او که نفل وي (ځکه په هغه کي عموماً مخ ګرځول ممکن دي. په خلاف د څارپای او په خلاف د موټر وغيره چي په هغه کي په نفلو کي حکم جلا دی کوم چي په ﴿۶۵۱﴾ نمبر مسئله کي تېر سو چي "إلى أيّ جهة توجهت دابته". د تفصيل لپاره د هغه عبارت تشريح وګورئ!). او که دلمانځه په دوران کي کښتۍ وګرځي او دلمونځ ګزار مخ له قبلې څخه واوړي، نو هغه دي بيرته خپل مخ د قبلې طرف ته وګرځوي (همدا حکم په طياره او رېل ګاډي کي دلمونځ کولو دی... کله چي مخ ګرځول ممکن وي).

﴿۶۷۱﴾ وَكُلَّمَا اسْتَدَارَتْ عَنْهَا او هر کله چي هم کښتۍ له قبلې څخه وګرځي (له قبلې څخه يې مخ واوړي) ١ يَتَوَجَّهُ إِلَيْهَا فِيْ خِلَالِ الصَّلٰوةِ نو لمونځ ګزار دي هم د قبلې وطرف ته مخ کوي دلمانځه په مينځ (دوران) کي حَتّٰى يُتِمَّهَا مُسْتَقْبِلًا تر دې چي لمونځ په داسي حال کي پوره کړي چي هغه مخ پر قبله وي.

**لغات:** ﴿استدارت﴾ داستفعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي معلومي صيغه، مصدر: إِسْتِدَارَا: ګرځېدل. ﴿خلال﴾ د دوو شيانو تر مينځ خالي ځای، مينځ. لکه په دې آيت کي چي دی ﴿جَاسُوْا خِلَالَ الدِّيَارِ﴾ (هغوی د کورونو په مينځ کي وګرځېدل را وګرځېدل. "في خلال الصلاة" (په مينځ دلمانځه کي يعني د لمانځه په دوران (جريان) کي).

**تشريح:** يعني که دلمانځه په دوران کي کښتۍ له قبلې څخه واوړي (او لمونځ ګزار ته علم وي)، نو لمونځ ګزار دي په لمانځه کي دننه د قبلې وطرف ته ګرځي، تر دې چي لمونځ د قبلې وطرف ته پوره کړي. يعني کله چي هغه لمونځ پوره کوي. په هغه وخت کي د ده مخ پر قبله کېدل ضروري دي. او دا د مخ ګرځول لمونځ نه باطلوي، او که بلاوجود د علم او قدرت د قبلې وطرف ته مخ نه وګرځوي، نو لمونځ يې نه صحيح کيږي. (همدا حکم د طيارې او رېل ګاډي دی چي که دلمانځه په دوران کي د طيارې يا رېل ګاډي وغيره مخ له قبلې څخه واوړي او لمونځ ګزار په پوهېږي او پر مخ اړولو قادر هم وي، نو هغه دي هم وګرځي او خپل مخ دي د قبلې وطرف ته کړي. خو که د ګرځېدلو علم ورته نه وي، نو همداسي يې لمونځ صحيح کيږي). (شفاء الارواح، انوار الايضاح)

**يادونه:** دا پورتنی حکم (چي په کښتۍ وغيره کي به مخ پر قبله ګرځي) په هغه صورت کي دی کله چي د قبلې وطرف ته پر مخ ګرځولو قادر وي يا په بله وينا قبلې ته مخامخ کېدل ممکن وي (کماز کرنا)، او که هغه پر دې قدرت نه لري او وخت هم ډېر پاته نه وي، نو څرنګه چي ممکنه وي، لمونځ دي اداء کړي (ځکه له کښتۍ، رېل ګاډي او طيارې څخه شوره کېدل ممکن نه دي چي فرض لاندي اداء کړي)، که وخت ډېر پاته وي، نو انتظار دي وکړي، څرنګه چي قادر سي، نو مخ پر قبله دي لمونځ اداء کړي. (عون الفتاح)



# فَصْلٌ فِي التَّرَاوِيْحِ

## (دا) فصل په (بيان د) تراويحو کي دی

**تشريح**: جمع د ترويحةٌ ده، د ترويحة معنیٰ ده: إيصال الرّاحة آرام رسول (هوسا کول). او په اصطلاح کي ترويحه هرو څلورو رکعتو ته وايي؛ ځکه چي لمونځ ګزار په تروايحو کي تر هر څلورو رکعتو وروسته د ځان هوسايني او استراحت لپاره کښيني، نو ځکه هرو څلورو رکعتو ته ترويحة ويل کيږي. او ټولو شلو رکعتو ته تراويح ويل کيږي. (عنايه ج:۱، ص:۲۸۴)

تراويح د صحيح روايت مطابق سنتِ مؤکده دي. ځکه خلفاء راشدينو (حضرت ابوبکر، عمر، عثمان او علي رَضِيَ اللهُ عَنهُمْ) پر تراويحو همېشتوب کړی دی، او نبي ﷺ فرمايلي دي: «عَلَيْكُمْ بِسُنَّتِيْ وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الْمَهْدِيِّيْنَ الرَّاشِدِيْنَ». [ابوداؤد شريف، باب في لزوم السنة، حديث شمېره: ۴۶۰۹]. (پر تاسو لازم دی! زما او د خلفاءِ راشدينو طريقه)، يعني زما او د خلفاءِ راشدينو پر لاره به ځئ! او زموږ پر طريقه به عمل کوئ!. او خلفاءِ راشدينو پر تراويحو همېشتوب کړی دی. نو ځکه سنتِ مؤکده به وي.

او تراويح زموږ په نيز شل رکعته دي، دليل د سائب بن يزيد ﷺ دا رايت دی: «كَانُوْا يَقُوْمُوْنَ عَلٰى عَهْدِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ ﷺ فِيْ شَهْرِ رَمَضَانَ بِعِشْرِيْنَ رَكْعَةً وَعَلٰى عَهْدِ عُثْمَانَ وَ عَلِيٍّ مِثْلَه وَكَانُوْا يَتَوَكَّئُوْنَ عَلٰى عُصِيِّهِمْ فِيْ عَهْدِ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ ﷺ مِنْ شِدَّةِ الْقِيَامِ». [سنن بيهقي، باب ما جاء في عدد ركعات القيام، حديث شمېره: ۴۸۰۱]. (يعني خلکو به د حضرت عمر، حضرت عثمان او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُمْ په زمانه کي شل رکعته تراويح کولې، او د عثمان ﷺ په زمانه کي به يې د ولاړي (دربېلو) د سختۍ په وجه پر لکړو تکيه کوله. [يعني کله چي به په تراويحو کي ولاړه پر خلکو درنه سوه. نو بيا به يې پر لکړو تکيه کوله. او مخکي ذکر سوه چي په تطوع لمانځه کي پر يو شي تکيه کول جائز دي]). له دې روايت څخه معلومه سوه چي تراويح شل رکعته دي.

## د تراویحو شرعي حیثیت

﴿۶۷۲﴾ اَلتَّرَاوِيحُ سُنَّةٌ لِلرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ تراویح سنت دي د سړیو او ښځو لپاره.

**لغات:** ﴿تراویح﴾ مخکي یې وضاحت وسو چي تراويح جمع د تَرْوِيحَةٌ ده، اصل معنیٰ یې د استراحت ده کوم چي له راحت څخه مأخوذ دی، له څلورو رکعتو څخه وروسته چي کوم دلږ وخت لپاره ناسته کول کیږي، هغه ناستي ته ترويحه وايي، څرنګه چي په شلو رکعتو کي پنځه ترويحې دي، نو ځکه دغه لمانځه ته تراویح وایي.

**تشریح:** په رمضانُ المبارک کي شل (۲۰) رکعته تراويح کول د سړيو او ښځو په حق کي بالاجماع سنتِ مؤکده علی العین دي؛ ځکه مخکي ذکر سوه چي خلفاء راشدینو او عامو صحابه وو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ پر تراويحو همېشتوب کړی دی، تراویح (په اصل کي) د نبي کريم ﷺ سنت دي او بعضي حضراتو هغه ته د حضرت عمر ﷛ سنت ويلي دي، لېکن اول قول اصح دی. کوم څوک چي هم تراويح پرېږدي، هغه د سنت پرېښوولو ګناهګاره کیږي او د مکروه مرتکب کیږي. د تراويحو له سنت کېدو څخه د اسلام هيڅ فرقه منکر نه ده، ماسوا له روافضو څخه. (شفاء الارواح بحوالة عمدة الفقه)

## د تراويحو د جماعت حکم

﴿۶۷۳﴾ وَصَلٰوتُـهَا بِالْجَمَاعَةِ سُنَّـةُ كِفَايَةٍ او د تراويحو لمونځ په جماعت سره اداء کول سنت کفايي دی.

**تشریح:** په جماعت سره د تراويحو اداء کول هم سنتِ مؤکده دي بناء پر کفایت، يا په بله ورنا کفايي سنتِ مؤکده دي، حتیٰ که د محلې يو څو خلک په کور کي تراويح وکړي او نور يې په مسجد کي په جماعت سره وکړي، نو د کور والا وو غاړه خلاصيږي، او سنت يې اداء کيږي، خو د جماعت له فضيلت څخه بې برخي کيږي، او که د کلي ټوله خلک يې په کورونو کي وکړي او جماعت يې پرېږدي، نو ټوله کلي والا يې د جماعت پرېښوولو په وجه ګنهګاره کيږي.



## په نارينه امام پسي د ښځو تراويح کول

**مسئله (۱)،** که سړی د تراويحو امامت کوي او شا ته يې خلک وي او تر هغو شا ته په پرده کي ښځي وي او دا امام د ښځو نيت هم وکړي، نو دا لمونځ شرعاً صحيح دی. په دې کي څه قباحت سته. او که امام يوازې وي او نور ټوله ښځي وي، نو د امامت د نيت کولو سره دا هم ضروري ده چي په

دې اقتداء کونکو ښځو کې به د امام یوه محرمه قریبه ښځه یا خپله ښځه (زوجه) هم شامله وي. کنې تنها صرف د اجنبیا تو امامت کول مکروه دي. (شامي ج۲، ص: ۳۰۷، کتاب المسائل ص: ۴۸۵)

## په یوه مسجد کې د تراویحو دوه جماعتونه

**مسئله (۲)**: په یوه مسجد کې په یوه وخت کې دوه ځایه جلا د تراویحو جماعت کول (مثلا یو جماعت لاندې او بل په لوړ منزل کې کول، همدارنګه پرلپسې یعنې د جماعت له ختمېدو څخه وروسته بل د تراویحو جماعت کول) مکروه دي. (فتاوی خانیه ج۱، ص: ۲۳۴، کتاب المسائل ص: ۴۸۵)

## د تراویحو وخت

﴿۶۷۴﴾ وَوَقْتُهَا بَعْدَ صَلٰوةِ الْعِشَاءِ او د تراویحو وخت د ماخوستن تر لمانځه وروسته دی، وَيَصِحُّ تَقْدِيْمُ الْوِتْرِ عَلَى التَّرَاوِيْحِ وَتَأْخِيْرُهُ عَنْهَا او صحیح دي د وترو مخکې کول پر تراویحو او د وترو وروسته کول له تراویحو څخه.

**تشریح**: د تراویحو وخت د ماخوستن تر لمانځه وروسته تر صبح صادقه (سپېده چاوده) پورې دی. او په وترو کې افضل دا ده چې له تراویحو څخه وروسته اداء کړل سي. لېکن که وتر له تراویحو څخه مخکې اداء کړل سي او بیا تراویح، نو هم شرعاً صحیح دي. (البحر الرائق ج: ۲، ص: ۷۳)

**فایده**: د تراویحو د وخت په سلسله کې درې قوله دي: ① ټوله شپه د تراویحو وخت دی، د ماخوستن تر لمانځه مخکې او وروسته، له وترو څخه مخکې او وروسته (په دې هر وخت کې تراویح اداء کولای سي)، ② د ماخوستن د لمانځه او د وترو په مینځ کې د تراویحو وخت دی، ③ د تراویحو وخت د ماخوستن تر لمانځه وروسته تر صبح صادقه پورې دی. همدا قول صاحب د کتاب رحمه الله غوره کړی دی، وصححه في الهداية والخانية والمحيط. (البحر الرائق ج: ۲، ص: ۷۳)

## د تراویحو مستحب وخت

﴿۶۷۵﴾ وَيُسْتَحَبُّ تَأْخِيْرُ التَّرَاوِيْحِ إِلٰى ثُلُثِ اللَّيْلِ أَوْ نِصْفِهِ او مستحب دي د تراویحو ځنډول تر درېیمې حصې د شپې یا نیمې شپې پورې وَلَا يُكْرَهُ تَأْخِيْرُهَا إِلٰى مَا بَعْدَهُ او مکروه نه دي د تراویحو ځنډول له دې (نیمې شپې) څخه تر وروسته پورې (هم) عَلَى الصَّحِيْحِ د صحیح قول مطابق.

**تشریح**: یعنې تراویح دومره ځنډول چې د شپې درېیمه حصه یا نیمه شپه راسي دا مستحب دي او تر نیمې شپې وروسته په اداء کولو کې یې اختلاف دی، بعضو دې ته مکروه ویلي دي. لېکن صحیح

دا ده چي تر نيمې شپې وروسته هم تراويح کول مکروه نه وي، بلکي د بعضو په نيز مستحب او افضل دي؛ ځکه چي دا قيامُ الليل دی، لېکن کوم چا ته چي د تراويحو په ځنډولو سره د تراويحو د فوت کېدلو ببره وي، نو د هغه لپاره غوره دا ده چي تراويح نه ونځنډوي. (شفاء الارواح بحوالهٔ عمدة الفقه)

## د تراويحو رکعات

﴿٦٧٦﴾ وَهِيَ عِشْرُوْنَ رَكْعَةً بِعَشْرِ تَسْلِيْمَاتٍ او تراويح شل رکعته دي په لسو سلامونو سره.

**تشريح:** فرمايي چي د تراويحو شل رکعته دي په لسو سلامونو سره، نه تر دې کم او نه تر دې زيات، يعني پر هرو دوو رکعتو به سلام ګرځول کيږي، لاندي يو څو مسئلې ملاحظه کړئ!:



**مسئله (۱):** که څوک درې رکعته وکړي، خو پر دويم رکعت کښېني، نو د شروع دوه رکعته صحيح کيږي او آخري رکعت باطليږي، په آخري رکعت کي لوستل سوی قرآن (په راروان رکعت کي) راګرځول لازم دي، او که پر دويم رکعت يې قعده (ناسته) نه وي کړې، نو درې سره رکعته باطليږي، په هغوی کي لوستل سوی قرآن به راګرځول کيږي. (ايضاح المسائل ص:۱۲۹، امداد الفتاویٰ ج:۱، ص:۴۹۸)

**مسئله (۲):** که په يوه سلام سره څلور رکعته وکړي او پر دويم رکعت قعده وکړي، نو څلور سره رکعته صحيح کيږي او سجدهٔ سهو نه لازميږي. (حاشيه امداد الفتاویٰ ج:۱، ص:۴۹۸)

**مسئله (۳):** که په يوه سلام سره څلور رکعته وکړي او پر دويم رکعت نه کښېني (يا په بله وينا قعدهٔ اولیٰ نه وکړي)، نو صرف آخري دوه رکعته معتبر دي او د شروع دوه رکعتونه باطليږي، لهذا په اولو دوو رکعتونو کي لوستل سوی قرآن به راګرځول کيږي، کنې قرآن کريم به مکمّل نه سي؛ ځکه دا دوه رکعته په تراويحو کي شمار نه دي. (امداد الفتاویٰ مطبوعه ديوبند ج:۱، ص:۲۹۷، کفايت المفتي ج:۳، ص:۳۴۹)

## تر هر څلورو رکعتو وروسته کښېنستل

﴿٦٧٧﴾ وَيَسْتَحِبُّ الْجُلُوْسُ بَعْدَ كُلِّ أَرْبَعٍ بِقَدْرِهَا او مستحب دي کښېنستل تر هرو څلورو رکعتو وروسته د هغوی (څلورو رکعتو) په اندازه وَكَذَا بَيْنَ التَّرْوِيْحَةِ الْخَامِسَةِ وَالْوِتْرِ او همدارنګه (مستحب دي کښېنستل) د پنځمې ترويحې او وترو په منځ کي.

**تشريح:** فرمايي له هرو څلورو رکعتو څخه وروسته دومره وخت کښېنستل مستحب دي په څومره وخت کي چي څلور رکعته سوي دي، که په دومره وخت کښېنستلو کي خلکو ته تکليف

وي او د جماعت د کمېدلو بېره وي، نو تر هغه دي کم کېږي، او د پنځمې ترويحې او وترو په مينځ کې هم دومره اندازه کېښستل مستحب دي، لېکن که دا هم پر خلکو درنه وي، نو نه دي کېږي.

او د ناستې په دوران کې خلکو ته اختيار دی، برابره ده تسبيح وايي، يا قرآن کريم وايي، يا يو بل ورد وايي، بعضې فقهاؤ ليکلي دي چې دري واره دي دا تسبيح وايي:

"سُبْحَانَ ذِی الْمُلْكِ وَالْمَلَكُوْتِ سُبْحَانَ ذِی الْعِزَّةِ وَالْعَظَمَةِ وَالْقُدْرَةِ وَالْكِبْرِيَاءِ وَالْجَبَرُوْتِ سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْحَيِّ الَّذِیْ لَا يَنَامُ وَلَا يَمُوْتُ سُبُّوْحٌ قُدُّوْسٌ وَرَبُّ الْمَلَائِكَةِ وَالرُّوْحِ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ نَسْتَغْفِرُ اللهَ نَسْأَلُكَ الْجَنَّةَ وَنَعُوْذُبِهٖ مِنَ النَّارِ". (شفاء الارواح بحوالة عمدة الفقه)

## د قرآن ختمولو حکم

| |
|---|
| ﴿٦٧٨﴾ وَ سُنَّ خَتْمُ الْقُرْآنِ فِيْهَا مَرَّةً فِي الشَّهْرِ او سنت دي د قرآن ختمول په تراويحو کې يو وار په مياشته کې عَلَى الصَّحِيْحِ د صحيح قول مطابق. |

**تشريح:** په تراويحو کې قرآن کريم په ټوله مياشته کې يو وار په ترتيب سره ختمول سنت مؤکده دي، او د خلکو د غفلت او سستۍ په وجه يو وار ختم نه سي پرېښوول کېدلای او نه د خلکو رعايت په دې کې لازم دی، که په ټوله رمضانُ المبارک کې يو ختم کوي، نو دا وورشتم په شپه ختم کو[ل] مستحب او افضل دي. دلته دا خبره هم يادلرئ! چې په رمضانُ المبارک کې تراويح مستقل سنت [...] او په تراويحو کې لږ تر لږه يو وار قرآن ختمول جلا سنت دی، لهذا د "الم ترکيف" په تراويحو سر[ه] خو پر يوه سنت عمل کيږي، لېکن د دويم سنت ترک لازميږي.

| |
|---|
| ﴿٦٧٩﴾ وَإِنْ مَلَّ بِهِ الْقَوْمُ او که په تکليف کېدل (تنګېدل) په دې (يو وار قرآن ويلو) سره خلک قَرَأَ بِقَدْرِ مَا لَا يُؤَدِّيْ إِلَى تَنْفِيْرِهِمْ نو دومره اندازه دي وايي کوم چې د هغو متنفر کولو لره رسول نه کوي (يعنې چې د هغو د نفرت او زړه تنګې سبب نه ګرځي) فِي الْمُخْتَارِ د مختار (خوښ کړی سوي) قول مطابق. |

**لغات:** ﴿مَلَّ﴾ د سمع له بابه ماضي معلومه ده؛ مصدر: مَلَلًا و مَلَالًا، مَلَالَةً؛ له يو شي څخه ستړي کېدل، په تکليف کېدل، تنګېدل (زړه توربدل)، ﴿تنفير﴾ د تفعيل د باب مصدر دی؛ نفرت پيدا کول، متنفر کول.

**تشريح:** صورت د مسئلې دا دی چې که خلک دومره اندازه سُست وي چې دا بېره وي چې که په تراويحو کې ټوله قرآن مجيد ويل کېږي او قرائت اوږدول کېږي، نو خلک به متنفر سي او تراويح به پرېږدي او جماعت به مات سي، نو بيا غوره دا ده چې څومره اندازه قرائت پر خلکو نه بوج کېږي، هغومره دي ويل کېږي او د قرآن ختمولو سنت دي پرېږدي، يا دي په "ألم تركيف" سره تراويح ورکول کېږي.

صاحب د "انوارالايضاح" (غفرالله له) وايي چې نن سبا چې په تراويحو کې پاؤ بالا يوه سپاره يا يوه نيمه سپاره ويل کېږي، زما په خيال د خلکو زړونه په دومره قرائت سره نه متنفر کېږي: ځکه د ټولو په ذهن کې دا خبره ده چې په (٢٧) د رمضان قرآن شريف ختمېږي، او که په دومره قرائت سره هم خلک ستړي کېږي، نو بيا دي قرآن ختمولو سنت پرېږدي. (شفاء الارواح، انوار الايضاح)

## سنت اوراد پرېښوول

﴿٦٨٠﴾ وَلَا يَتْرُكُ الصَّلٰوةَ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ فِيْ كُلِّ تَشَهُّدٍ مِنْهَا او نه دي پرېږدي پر نبي کريم ﷺ درود د تراويحو په هر تشهد (التحيات) کې وَلَوْ مَلَّ الْقَوْمُ که څه هم خلک په تکليف کېږي عَلَى الْمُخْتَارِ د مختار قول مطابق وَلَا يَتْرُكُ الثَّنَاءَ وَتَسْبِيْحَ الرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ او نه دي پرېږدي ثناء (سبحانك اللهم وبحمدك الخ) او د رکوع او سجدې تسبيح وَلَا يَأْتِيْ بِالدُّعَاءِ إِنْ مَلَّ الْقَوْمُ او (تر درود شريف وروسته) دعاء دي نه وايي که خلک په تکليف کېدل.

**تشريح:** له تکبيرِ تحريمه څخه وروسته ثناء (يعني سُبحانك اللهم وبحمدك...) ويل سنت دي او له ثناء څخه وروسته او تر سورة الفاتحه مخکې "أعوذ بالله..." او "بسم الله..." ويل هم سنت دي. په رکوع کې لږ تر لږه درې واره "سبحان ربّي العظيم" ويل سنت دي او په سجده کې لږ تر لږه درې واره "سبحان ربّي الأعلى" ويل سنت دي او په آخره ناسته کې له التحيات (تشهد) څخه وروسته درود شريف ويل سنت دي، همدارنګه له درود شريف څخه وروسته او تر سلام مخکې مأثوره دعاګانې ويل سنت دي.

مسئله دا ده چې دغه سنتونه به په هيڅ حال کې هم نه پرېښوول کېږي يعني د خلکو د ستړي کېدو له بېرې څخه به امام دغه شيان نه پرېږدي، ها! دا خبره ياد ساتل پکار دي چې که خلک

ستړي کېږي، نو له درود شریف څخه وروسته دي اوږده دعاء نه ویل کېږي، بلکي یو مختصره دعاء (لکه "ربّنا آتنا في الدنیا حسنة الخ") دي ویل کېږي. یا دي دعاء پرېښوول کېږي (د دې ګنجائش سته). (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

## د تراویحو قضاء نسته

﴿۶۸۱﴾ وَلَا تُقْضَى التَّرَاوِيحُ بِفَوَاتِهَا او قضاء به نه راوړل کېږي د تراویحو د هغوی په فوتېدلو (تېرېدلو) سره (یعني که له یو چا څخه تراویح پاته او تېري سي، نو نه به راګرځول کېږي) مُنْفَرِدًا وَلَا بِجَمَاعَةٍ نه یوازي (انفرادي) او نه په جماعت سره.

**تشریح:** که له یو چا څخه د تراویحو پوره لمونځ پاته سي او وخت یې ووځي، نو اوس د هغه قضاء نسته، نه په جماعت سره او نه بغیر له جماعته، که یې قضاء راګرځوي، نو هغه محض نفل ګرځي. نه سنت تراویح.



## د تراویحو بعضي رکعتونه تېرېدل

که له یو چا څخه د تراویحو بعضي رکعتونه تېر سي، نو هغه دي د ترویحه په وقفو کي رکعتونه پوره کړي، که بیا هم پاته سي او امام تر آخري ترویحې وروسته د وترو لپاره ولاړ سي، نو د امام سره دي اولاً وتر اداء کړي، تر هغه وروسته دي خپل پاته رکعتونه راوګرځوي. (درمختار ج:۱. ص:۴۳۶)

## بېلابېلي مسئلې

**مسئله (۱):** په تراویحو کي د نا بالغه کس امامت د مفتیٰ به قول مطابق جائز نه دی. (حلبي کبیر ص:۴۰۸)

**مسئله (۲):** کوم چا چي د ماخوستن لمونځ تنها کړی وي، نو هغه د تراویحو او وترو په جماعت کي شریک کېدلای سي، په دې کي څه شرعي ممانعت نسته. (در مختار ج:۲. ص:۴۳۶ ط: بیروت)

**مسئله (۳):** په کوم مسجد کي چي د ماخوستن لمونځ په جماعت سره نه وي سوی، بلکي ټولو تنها، تنها لمونځ کړی وي، نو اوس که هغوی (فقط) تراویح په جماعت سره کوي، دا د هغو لپاره به نه دي. (پورتنی حواله)

**مسئله (۴):** کوم چا چي یو وار تراویح کړي وي، یا یې د تراویحو امامت کړی وي، نو بل ځای که بیا د نفلو په نیت سره د تراویحو په جماعت کي شامل سي، نو په دې کي څه شرعي حرج نسته. (حلبي کبیر ص:۴۰۸)

**مسئله (۵)**: په ټوله تراویحو کي فقط یو وار بسم الله جهراً (په لوړ آواز سره) ویل لازم دي، کنې قرآن به ناقص پاته سي، خو د هر سورت په شروع کي بسم الله جهراً ویل له نبي کریم ﷺ او له خلفاء راشدینو څخه ثابت نه دي، نو ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز په هر سورت کي بسم الله جهراً ویل سنت نه دي. (انوار الایضاح)

## په تراویحو کي د قرآن پر ختم پیسې اخیستل

**مسئله (۶)**: د قرآن کریم تلاوت او د هغه ختم مستقل عبادت دی، د هغه په ذریعه دنیا حاصلول یا په معروفه (مروجه) طریقه باندي د قرآن پر ختم اُجرت اخیستل جائز نه دي، صاحب د انوار الایضاح (غفر الله له) په دې هکله تفصیلي بحث کړی دی (او کومو حضراتو چي د تراویحو د اُجرت جواز د امامت او تعلیم پر اجرت قیاس کړی دی، هغه یې په دلیل سره قیاس مع الفارق ګرځولی دی) او ویلي یې دي: په اوسني دَور کي مشرانو مفتیانو دا فتویٰ جاري کړې ده چي په تراویحو کي د قرآن کریم پر ختم په ټاکلې توګه یا په نا ټاکلې توګه اُجرت اخیستل جائز نه دي، په ټوله معتبرو فتاویٰ وو کي د دې صراحت موجود دی (اوګورئ: فتاویٰ رشیدیه ص:۳۹۲، فتاویٰ مظاهر علوم ج:۱، ص:۴۸، امداد الفتاویٰ ج:۱، ص:۴۸۱، کفایت المفتي ج:۳، ص:۲۶۵، فتاویٰ دار العلوم ج:۴، ص:۲۴۶، جواهر الفقه ج:۱، ص:۳۸۲، فتاویٰ محمودیه ج:۷ ص:۱۷۱، احسن الفتاویٰ ج:۳، ص:۵۱۴، فتاویٰ رحیمیه ج:۱، ص:۳۴۹ [په مذکوره فتاویٰ وو کي بعضي پښتو ته هم ترجمه سوي دي]).

**مسئله (۷)**: که یو حافظ صاحب ته دیوه وخت یا یوې میاشتي د مسجد امامت وسپارل سي، نو هغه د تراویحو پر ختم اُجرت اخیستلای سي، که نه؟، د دې جواب حضرت تهانوي رَحِمَهُ الله داسي لیکلی دی چي دلته مقصود په تراویحو کي قرآن ویل دي، امامت مقصود نه دی، نو ځکه دا هم جائز نه دي. (امداد الفتاویٰ ج:۱، ص:۳۲۲، ایضاح المسائل ص:۲۸)

**مسئله (۸)**: حافظ صاحب ته د تګ راتګ کرایه ورکول او د حافظ صاحب میلمستیا کول شرعاً په اُجرت کي داخل نه دي، نو ځکه دا جائز دي. (فتاویٰ دار العلوم ج:۴، ص:۲۹۴، ایضاح المسائل ص:۲۸)



# بَابُ الصَّلَاةِ فِي الْكَعْبَةِ

(دا) باب دی (په بیان کې) دلمونځ کولو په کعبه شریفه کې

**تشریح:** یو لفظ کعبه ده او بل لفظ قبله ده، کعبه د هغه خاص ځای نوم دی کوم چې د مکې په ښار په مسجد حرام کې واقع دی (او چاپېره دېوال پرې را ګرځېدلی دی، کوم چې عموماً په تور مبارک پوښ سره پوښل سوی وي)، او قبلة الصلاة د احنافو په نېز په حقیقت کې هغه فضا ده کوم چې د څلورو طرفونو په اعتبار سره د دې کعبې په حد کې محدوده ده او د لاندې او لوړ په اعتبار سره له تحت الثری څخه تر آسمانه پورې ده. (لهذا که دا د کعبې کوټه او دېوالونه پاته نه سي، بیا هم قبله باقي پاتېږي). (در مختار ج۱، ص۲۰۱، ۲۰۲)

## په کعبه کې دننه یا پر کعبې د پاسه لمونځ کول

﴿۶۸۲﴾ صَحَّ فَرْضٌ وَنَفْلٌ فِيهَا صحیح دي فرض او نفل په کعبه شریفه کې وَكَذَا فَوْقَهَا او همداسې د کعبې شریفې د پاسه (هم صحیح دي) وَإِنْ لَمْ يَتَّخِذْ سُتْرَةً که څه هم سُتره یې نه وي درولې لٰكِنَّهُ مَكْرُوْهٌ لیکن دا مکروه دي لِإِسَاءَةِ الْأَدَبِ بِاسْتِعْلَائِهِ عَلَيْهَا د بې ادبۍ له وجهې پر کعبې شریفې د پاسه ختلو په سبب.

**لغات:** ﴿لم يتخذ﴾ د افتعال له بابه د واحد مذکر غائب نفي جحد بلم صیغه ده، د دې باب څو معناوې دي چې د صلې په بدلون سره یې معنیٰ هم بدلیږي: دلته په معنیٰ د درولو (قائمولو) سره دی. ﴿استعلاء﴾ پورته کېدل، ختل.

**تشریح:** په کعبه شریفه کې دننه فرض او نفل هر قسم لمونځ کول بلا کراهته صحیح دي، برابره ده تنها لمونځ کوي یا په جماعت سره، که څه هم خپل مخ ته یې یو سُتره نه وي درولې، همدارنګه د کعبې شریفې پر بام (چت) هم لمونځ کول جائز دي، خو په کراهت تنزیهي سره او بعضو ویلي دي چې په کراهت تحریمي سره. یعني پر کعبې شریفې د پاسه لمونځ کول مکروه تحریمي دي: ځکه دا د کعبې د تعظیم خلاف دي. ښکاره دې وي چې په کعبه شریفه کې دننه یا پر هغې د پاسه تنها لمونځ کونکی هر طرف ته مخ کولای سي، ځکه هر طرف د هغه لپاره قبله ده. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

## په کعبه کې په جماعت سره د لمونځ کولو یو صورت

﴿۶۸۳﴾ وَ مَنْ جَعَلَ ظَهْرَهٗ إِلٰى غَيْرِ وَجْهِ إِمَامِهٖ فِيْهَا أَوْ فَوْقَهَا او څوک چې وګرځوي خپله شا د خپل امام له مخ څخه بغیر و بل طرف ته په کعبه کې دننه یا پر کعبې د پاسه صَحَّ نو (دده لمونځ) صحیح کیږي وَإِنْ جَعَلَ ظَهْرَهٗ إِلٰى وَجْهِ إِمَامِهٖ او که وګرځوي خپله شا د خپل امام د مخ وطرف ته لَا يَصِحُّ نو نه صحیح کیږي.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې که په کعبه کې دننه یا پر کعبې د پاسه په جماعت سره لمونځ اداء کول کیږي او خلک په امام پسې داسې ودریږي چې د کعبې وطرف ته په مخ کولو کې د ټولو مقتدیانو مخونه جلا، جلا طرف ته وي، نو په دې صورت کې چې د کوم مقتدي شا د امام د مخ وطرف ته وي، د هغه لمونځ نه صحیح کیږي، له دې څخه بغیر نور چې څومره صورتونه جوړیږي. مثلاً د مقتدي شا د امام راسته یا چپه طرف ته وي، یا د مقتدي مخ د امام راسته یا طرف ته وي، یا د مقتدي مخ د امام د شا وطرف ته وي او داسې نور، په دې ټولو صورتونو کې بلا کراهته لمونځ جائز صحیح کیږي، صرف په یوه صورت کې کراهت سته او هغه دا دی چې د مقتدي مخ د امام د مخ وطرف ته وي. (شفاء الارواح بحوالة عمدة الفقه)

﴿۶۸۴﴾ وَصَحَّ الْاِقْتِدَاءُ خَارِجَهَا بِإِمَامٍ فِيْهَا وَالْبَابُ مَفْتُوْحٌ او صحیح دي اقتداء کول له کعبې څخه د باندې په هغه امام پسې کوم چې په کعبه کې دننه وي، په داسې حال کې چې (د کعبې شریفې) دروازه خلاصه وي.

**تشریح**: اولاً په دې خبره پوهېدل پکار دي چې په یو امام پسې د اقتداء د صحیح کېدلو لپاره ډېر شرطونه دي چې له هغوی څخه یو شرط دا دی چې مقتدی به د خپل امام په نقل او حرکت خبرېږي چې اوس هغه ولاړ دی یا رکوع یا سجدې ته ولاړ ی...

صورت د مسئلې دا دی چې که امام په کعبه کې دننه وي او دروازه خلاصه وي، نو کوم مقتدیان چې له کعبې څخه د باندې په امام پسې ولاړ وي، د هغو لمونځ صحیح کیږي، همدارنګه که دروازه بنده وي، خو مقتدیان د امام په نقل او حرکت خبریږي، نو په دې صورت کې هم اقتداء صحیح کیږي. معلومه سوه چې د "الباب مفتوح" قید اتفاقي دی. (مراقي الفلاح)

## په مسجد حرام کې مقتدی له امام څخه مخکې کېدل

﴿۶۸۵﴾ وَإِنْ تَحَلَّقُوْا حَوْلَهَا وَالْإِمَامُ خَارِجَهَا او که حلقه جوړه کړي (راوګرځي) مقتدیان

پر کعبې شا وخوا او امام (هم له کعبې څخه) دباندي وي صَحَّ نو (اقتداء يې) صحيح کېږي إِلَّا لِمَنْ كَانَ أَقْرَبَ إِلَيْهَا مِنْ جِهَةِ إِمَامِهِ مگر د هغه کس (اقتداء نه صحيح کېږي) کوم چي (له خپل امام څخه) کعبې ته زيات نژدې وي د خپل امام په طرف کي.

**لغات:** ﴿تحلّقوا﴾ د تفعل له بابه د جمع مذکر غائب ماضي معلومي صيغه ده: حلقه جوړول (څمک د حلقې په توګه شا وخوا (چاپېره) کښېنستل يا دربدل). ﴿حَول﴾ د دې لفظ له معناوو څخه يوه معنى ده: شا وخوا(چاپېره)، چار طرفه.

**تشريح:** که امام له کعبې څخه دباندي ولاړ وي، او مقتديان چار طرفه (شا وخوا) پر کعبې راګرځېدلي وي، نو د ټولو لمونځ صحيح کېږي، ماسوا د هغه مقتدي کوم چي د امام په طرف کي د امام په نسبت کعبې ته زيات نژدې وي: ځکه داسي کس تر امام مخکي شمېرل کېږي. خو کوم مقتدي چي د امام نه طرف څخه بغير په بل طرف کي د امام په نسبت کعبې ته زيات نژدې وي، نو د هغه لمونځ صحيح کېږي: ځکه هغه حکماً د امام شاته دی: ځکه چي له امام څخه مخکي کېدل هغه وخت راځي کله چي د دواړو جهت يو وي او دلته جهت مختلف دی.



# بَابُ صَلَاةِ الْمُسَافِرِ

(دا) باب د مسافر د لمانځه (داحکامو په بیان) کې دی

**تشریح:** په دې باب کې مصنف رَحِمَهُ الله د مسافر د لمانځه احکام او مسائل بیانوي.

**د سفر لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** د سفر لغوي معنیٰ ده: مسافه او فاصله پرېکول. د سفر اصطلاحي معنیٰ ده: دومره تګ کول چې په هغه سره احکام بدل سي، د مثال په توګه په لمانځه کې د قصر حکم، په روژه کې د روژې ماتولو حکم، د جمعې لمونځ او د اختر لمونځ ساقطېدل. د مسح موده تر دریو ورځو او دریو شپو پورې رسېدل. اوس شرعي سفر چې په هغه سره احکام بدلېږي او سړی د شریعت په نظر کې مسافر ګرځي، هغه به په عبارت کې بیان سي.

**د سفر آداب:** صاحب د "انوار الایضاح" دلته د "کتاب المسائل" په حواله سره د سفر شو آداب لیکلي دي چې هغه په لاندې ډول دي:

① سهار وختې سفر کول مبارک دي، ② د پنجشنبې (جمعرات) په ورځ د سفر شروع کول به دي، ③ کله چې په سفر کې څو ملګري وي، نو بنه دا ده چې په هغوی کې یو مناسب کس د سفر امیر جوړ کړی سي، ④ د سفر لپاره له کور څخه تر وتلو مخکې دوه رکعته نفل کول سنت دي. ⑤ که څه ستونزه او عذر نه وي، نو په سفر کې خپله ښځه د ځان سره بېول سنت دي، ⑥ کله چې کار پوره سي، نو ژر تر ژره له سفر څخه واپس کېدل پکار دي، ⑦ له سفر څخه د واپس کېدلو پر موقع د خپلې کورنۍ لپاره څه تحفه وړل سنت دي، ⑧ له سفر څخه د واپس کېدلو او رسېدلو په وخت کې معانقه سنت ده، ⑨ د واپس کېدلو پر مهال اولاً مسجد ته تلل یا په خپل کور کې دوه رکعته لمونځ کول سنت دي، ⑩ د سفر په حالت کې په اذکارو، تلاوت او په دیني مشغله کې وخت تېرول پکار دي، تلك عشرة كاملة. (کتاب المسائل ص: ۵۱۰)

## د شرعي سفر اندازه

﴿۶۸۶﴾ اَقَلُّ سَفَرٍ تر تولو کم سفر (یعني د سفر کمه اندازه) تَتَغَيَّرُ بِهِ الْاَحْكَامُ چې په هغه سره احکام بدلېږي مَسِيْرَةُ ثَلَاثَةِ اَيَّامٍ مِنْ اَقْصَرِ اَيَّامِ السَّنَةِ هغه مسافه (فاصله) د دریو ورځو ده د کال له ټولو څخه د کوچنیو ورځو بِسَيْرٍ وَسَطٍ مَعَ الْاِسْتِرَاحَاتِ په مینځوي

مزل(تګ) سره د استراحتونو سره وَالْوَسَطُ او مېنځوی (مینه) مزل سَيْرُ الْإِبِلِ وَمَشْيُ الْأَقْدَامِ فِي الْبَرِّ داوښانو مزل دی او پیاده (په پښو) مزل دی په وچه کې وَفِي الْجَبَلِ بِمَا يُنَاسِبُهُ اوپه غرونو کې په هغه مزل سره کوم چې ور سره مناسب وي (د غرنی علاقې سره) وَفِي الْبَحْرِ اِعْتِدَالُ الرِّيحِ اوپه دریاب (سمندر) کې د هوا په معتدل کېدو سره (چې هوا معتدله وي).

**لغات:** ﴿تتغير﴾ د تفعّل له بابه د واحد مؤنث غائب مضارع معلومي صيغه ده: بدلېدل، متغير کېدل. ﴿مسيرة﴾ د ضرب له بابه مصدر میمي دی: تګ، تلل، مراد مسافه ده. ﴿سَيْر﴾ دا هم د ضرب د باب مصدر دی: مزل (تګ)، رفتار. ﴿أقصر﴾ د نصر له بابه اسم تفضيل دی: تر ټولو لنډی (کوچنی). ﴿استراحات﴾ جمع د إستراحةٌ ده کوم چې د استفعال له بابه مصدر دی: آرام کول، ځان هوساینه او بیدېدنه. ﴿مشي﴾ د ضرب د باب مصدر دی. مشي الأقدام: په پښو (پیاده) تګ کول.

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چې په کوم سفر سره احکام بدلیږي او په لمانځه کې قصر په ثابتیږي، له هغه ځنې مراد مطلق سفر نه دی، بلکې هغه سفر مراد دی چې انسان درې ورځې د تګ اراده وکړي (یا په بله وینا: چې له خپل کوره څنګه د دومره لیرې تللو په اراده ووځي چې هلته انسان په دریو ورځو کې رسېدلای سي)، هغه که داوښ په مزل (رفتار) سره وي، یا د پیاده تلونکو په مزل سره وي، او په کال کې له ټولو ځنځه کوچنۍ ورځ معتبره ده (لکه ژمی په هیوادو کې چې په سخت ژمي کې تر ټولو کوچنۍ ورځ راځي)، همدارنګه شپه او ورځ (۲۴ ساعته) مزل کول مراد نه دي، بلکې له سهار ځنځه تر زواله پورې تلل مراد دي، هغه هم په دې توګه چې په مینځ کې د استراحاتو (یعنې د خوراک، څښاک وغیره) لپاره دومره اندازه ودرېږي څومره چې عادتاً درېږي؛ ځکه چې ۲۴ ساعته مسلسل مزل نه د انسان په وس کې دی او نه د یو سپارلۍ په طاقت کې دی، او له مزل (تګ) ځنځه مراد مېنځوی مزل دی او هغه په وچه کې د اوښانو او د پیاده تلونکو مزل دی.

لنډه دا چې هره ورځ له سهاره ځنځه تر زواله پورې چې په دریو کوچنیو ورځو کې کومه مسافه پرېکړل سي، هغه د سفر مسافه ده. د عوامو د آسانۍ لپاره د سفر مسافه د میل په اعتبار سره اته ځلوېښت (۴۸) شرعي میله تاکل سوې ده چې د فرسخ په اعتبار سره شپاړس (۱۶) فرسخه کېږي. او د انګریزي میل په اعتبار سره ځلور پنځوس (۵۴) میله کېږي، ځکه انګریزي میل تر شرعي میل کوچنی دی. په یوه ورځ کې په مېنځوي مزل سره عموماً شپاړس شرعي میله مسافه قطع کېږي، نو په دریو ورځو کې اته ځلوېښت میله مسافه سوه. لهذا که یو څوک اته ځلوېښت میله سفر وکړي، نو د سفر احکام به جاري کېږي. (شفاء الارواح ص: ۲۵۵، العار الهدایه ج: ۲، ص: ۲۱۵)

ولي الجبل: او په غرني لاره کي د سفر کولو په صورت کي د هغه غرني لاري د دريو ورځو تګ او مسافي لره اعتبار دی: ځکه په غرنی لاره کي پورته او کښته ځايونه راځي. يعني د غره په لاره کي بعضي ځايونه داسي وي چي هلته سړی پورته ځي او په تګ کي زيات وخت لګيږي او بعضي ځايونه داسي وي چي هلته انسان لاندي طرف ته شوه کېدونکی ځي او تېز سي چي مسافه ژر پرېکيږي، لهذا په داسي لاره کي هغه تګ لره اعتبار دی کوم چي ور سره مناسب وي يعني چي هلته په مناسب تګ سره په دريو ورځو کي کومه مسافه پرېکړل سي، هغه د سفر مسافه ده او د سفر حکم په ثابتيږي، که څه هم په هواره ځمکه کي هغه مسافه تر دريو ورځو په کم وخت کي پرېکول کيږي.

ولي البحر: که په سمندر کي د کښتۍ (بېړۍ) د لاري سفر کوي، نو درې ورځي د کښتۍ په تګ (رفتار) سره معتبره دي، کله چي هوا معتدله وي يعني نه ډېره تېزه وي او نه درېدلې وي په داسي صورت کي چي په دريو ورځو کي کښتۍ څومره مسافه پرېکړي، هغه د سمندري لاري د سفر مسافه ده.

خلاصه دا چي په هر ځای کي هغه تګ لره اعتبار دی کوم چي د هغه ځای د حالت لائق وي. لهذا په سمندري سفر او غرني سفر کي د دوچي هواري ځمکي مزل لره اعتبار نسته، مثلاً يو ښار ته د رسېدلو لپاره دوې لاري دي: يوه د سمندر (اوبو) لاره ده او بله د وچي لاره ده، د وچي د لاري څخه سړی هغه ځای ته په دريو ورځو کي رسيږي او د سمندر د لاري څخه په دوو ورځو کي رسيږي، نو په داسي صورت کي که د وچي لاره اختيار کړي، نو هغه مسافر ګرځي او که د سمندري لاري څخه ولاړ سي، نو مسافر نه ګرځي. (شفاء الارواح، انوار الايضاح)

## د شرعي ميل، انګريزي ميل، ميټر او کيلو ميټر اندازه د لاس او ګز په اعتبار سره

| څه شي؟ | څومره؟ کيږي |
|---|---|
| يو شرعي ميل | څلور زره (۴۰۰۰) لاسه کيږي |
| يو شرعي ميل | دوه زره (۲۰۰۰) ګزه کيږي |
| يو شرعي ميل | تقرباً (څه د پاسه) اتلس سوه اته ويشت (۷۹۸، ۱۸۲۸) ميټره کيږي |
| يو شرعي ميل | تقرباً (څه د پاسه) يو کيلو ميټر کيږي |
| ۴۸ شرعي ميله | تقرباً اووه اتيا (۷۸۲، ۸۷) کيلو ميټره کيږي |
| يو کيلو ميټر | زر (۱۰۰۰) ميټره کيږي |
| يو ميټر | له يوه ګز څخه لږ زيات کيږي |
| يو انګريزي ميل | درې زره پنځه سوه شل (۳۵۲۰) لاسه کيږي |

| | |
|---|---|
| يو انګريزي ميل | اوولس سوه شپېته (۱۷۶۰) ګزه کيږي |
| ۴۸ شرعي ميله | تقريباً څلور پنځوس (۵۴) انګريزي ميله کيږي |

## د قصر حکم

﴿۶۸۷﴾ فَيَقْصُرُ الْفَرْضَ الرُّبَاعِيَّ مَنْ نَوَى السَّفَرَ نو قصر به کوي په څلور رکعتيز فرضي لمانځه کي هغه کس کوم چي د سفر نيت کړی وي

﴿۶۸۸﴾ وَلَوْكَانَ عَاصِيًا بِسَفَرِهٖ که څه هم هغه په خپل سفر کي ګنهګاره وي (يعني د جرم لپاره سفر کونکی وي).

**لغات:** ﴿يقصر﴾ د نصر له بابه د واحد مذکر غائب مضارع معلومي صيغه ده، مصدر: قَصْرًا: قصر کول. د شرعي رخصت پر بناء څلور رکعتيز لمونځ دوه رکعته کول. (انوار الايضاح)

**تشريح:** يعني کله چي انسان د سفر په نيت سره ووځي، نو د هغه لپاره په څلور رکعتيز فرضو (يعني دماپښين، مازيګر او ماخوستن په لمنځونو) کي قصر کول يعني دوه رکعته کول واجب دي، که پوره يې وکړي، نو ګنهګاره کيږي او له څلور رکعتيز لمنځونو څخه بغير په نورو کي (يعني د سهار او ماښام په لمنځونو) کي قصر نشته، همدارنګه په سنتو کي هم قصر نشته. بعضي فقهاؤ د مسافر لپاره مؤکده سنتونه پرېښوول جائز ليکلي دي، لېکن مختار قول دا دی چي که د تلوار يا د بېړي حالت وي، نو سنت دي نه کوي او که د امن او قيام حالت وي، مثلاً پر يو منزل او پروا بانـدي درېدلی وي، نو هغه دي کوي، لېکن د سهار د سنتو دي خاص خيال ساتي دي او هغه دي نه پرېږدي. (شفاء الارواح بحوالة عمدة الفقه)

## د ګناه په اراده سره سفر کونکي لره هم د قصر حکم دی

وَلَوْكَانَ عَاصِيًا بِسَفَرِهٖ: يعني د سفر په وجه چي کوم د قصر کولو حکم دی، دا حکم د هر مسافر لپاره دی، برابره ده د هغه سفر د طاعت لپاره وي يعني د يو مشروع کار لپاره ځي لکه حج او عمره يا تجارت وغيره، يا د معصيت يعني د غير مشروع کار لپاره ځي لکه ډاکه ماري، سينما يا ساقي خانې ته ځي، نو د مسافر احکام د هغه لپاره هم ثابتيږي. (شفاء الارواح)

## د سفر د مسافي اعتبار له کومه ځايه کيږي

﴿۶۸۹﴾ إِذَا جَاوَزَ بُيُوتَ مَقَامِهٖ وَجَاوَزَ أَيْضًا مَا اتَّصَلَ بِهٖ مِنْ فِنَائِهٖ کله چي تېر شي د خپل ځای (استوګنځي) له کورونو څخه او همدارنګه تېر شي له هغه (ځايونو) څخه کوم چي د ده د

ځای سره متصل دی یعني د هغه فناء (اطراف) وَإِنِ انْفَصَلَ الْفِنَاءُ بِمَزْرَعَةٍ أَوْ قَدْرِ غَلْوَةٍ او که جلا (لیرې) وي فناء د يوه کښت (کښتی) یا د يوه غلوي په اندازه (تقريباً د څلور سوه شرعي ګزو په اندازه) لَا يُشْتَرَطُ مُجَاوَزَتُهُ نو (د قصر کولو لپاره) له هغه څخه تېرېدل شرط نه دي (بلکې صرف د خپل ځای او علاقې له کورونو او ودانیو څخه تر تېرېدلو وروسته قصر کولای سي، ځکه اوس فناء د دې ځای او علاقې سره متصل پاته نه سوه).

**لغات:** ﴿جاوز﴾ د مفاعلې د باب ماضي معروفه ده، تېرېدل، (پورې وتل، اوښتل، عبور کول). ﴿انفصل﴾ د افتعال له بابه ماضي معلومه ده، متصل کېدل، جوختېدل. ﴿الفناء﴾ د يو ځای اطراف. په را روان عبارت کې به د دې تفصيلي معنیٰ ذکر سي. ﴿مزرعة﴾ کښت، کښتی، کرل کېدونکې ځمکه. جمع: مَزَارِعُ. ﴿غَلْوَة﴾ له ۳۰۰ لاسو څخه تر ۴۰۰ لاسو پورې فاصله (یا له ۳۰۰ څخه تر ۴۰۰ ګامو پورې فاصله). یعني آخر حد یې څلور سوه (۴۰۰) لاسه یعني څلور سوه شرعي ګزه کېږي. کوم چې د اوسني ګز په اعتبار سره دوه سوه ګزه کېږي. جمع: غِلَاءٌ وغَلَوَاتٌ.

**تشريح:** یعني کله چې مسافر د سفر په نیت د خپل استوګنځي له آبادۍ او د هغه له ملحقاتو څخه تېر سي، نو پر هغه د قصر حکم شروع کېږي، محض له کور څخه په وتلو هغه مسافر نه شمېرل کېږي، لهذا تر څو چې د خپل ځای په آبادۍ کې دننه روان وي، نو قصر به نه کوي.

وجاوز أيضاً: یعني که د استوګنځي فناء (یعني په اطرافو کې چې کوم ځایونه د دې علاقې د کارو لپاره جوړ سوي وي مثلاً کارخانه، د لوبو او بازۍ میدان، هدیره او داسې نور که) متصله وي، نو د قصر کولو لپاره له هغه څخه هم بهر وتل ضروري دي.

وان انفصل الخ: یعني که د ده د علاقې او فناء تر مینځ يو کښت وي، یا د دوی په مینځ کې (د اوسني ګز په اعتبار سره) دوه سوه ګزه یا تر دې زیات خالي ځای وي، نو اوس له فناء څخه بهر کېدل ضروري نه دي، او که له دې څخه کمه فاصله وي، نو هغه فناء د علاقې سره د متصل په حکم کې ده او له هغه څخه بهر کېدل شرط دي. (شفاء الارواح، انوار الايضاح)



## د لويو ښارونو حکم

له لوی ښار څخه چې څوک سفر شروع کړي (یعني داسې ښار چې د هغه آبادي تر څو میلو پورې پرته وي، لکه نن سبا چې زیاتره ښارونه همدې حد ته رسېدلي دي)، نو هغه وخت مسافر شمېرل کېږي کله چې د دې ښار له عُرفي او حکومتي حدودو څخه ووځي (یعني په عُرف کې یا د حکومت له طرفه چې د دې ښار کوم حدود ټاکل سوي وي لکه نن سبا چې د ښار شروع کېدلو پر ځای بورډ یا داسې بل شی درول سوی وي چې

پر هغه نوشته سوي وي)، نو هغه مسافر شمېرل کيږي، که څه هم د ښار آبادي لا ختمه سوې نه وي. مثلاً له يو ولسوالۍ څخه چې انسان و بلې داسې نژدې علاقې ته د سفر په اراده ووځي چې هغه علاقه د دوه له کور څخه د سفر پر مسافه (يعني ۴۸ ميله ليرې) واقع وي، نو هغه مسافر شمېرل کيږي که څه هم د ولسوالۍ آبادي هغه علاقې ته رسېدلې وي. (انوار الايضاح بتغير بحوالهٔ فتاوی رحيميه ص: ۳۶۳، احسن الفتاوی ج۴، ص۷۳)

او دا خبره هم ياد ساتئ! چې د ښار سره ملحق هوايي ډګر، يا اډه يا استېشن او داسې نور تول د ښار په حکم کې دي، لهذا له ښار څخه سفر کونکی يا ښار ته واپس راتلونکی په هغه اډه وغيره کې قصر نه سي کولای، لېکن که دا ځايونه له ښار او آبادۍ څخه ليرې وي، لکه نن سبا چې په بعضې ښارو کې هوايي ډګر له ښار څخه ډېر ليرې وي، نو بيا انسان د ښار له حدودو څخه په وتلو مسافر ګرځي او هوايي ډګر وغيره کې به قصر کوي. (انوار الايضاح شرح اردو نور الايضاح)

## د ښار د فناء تعريف

﴿۶۹۰﴾ وَالْفِنَاءُ الْمَكَانُ الْمُعَدُّ لِمَصَالِحِ الْبَلَدِ او فناء هغه ځای دی کوم چې تيار سوی وي د ښار د مصلحتونو (او ضرورتونو) لپاره كَرَكْضِ الدَّوَابِّ وَدَفْنِ الْمَوْتَىٰ مثلاً د څارويو (آسونو) د ځغلولو او د مړو (مړګانو) د ښخولو لپاره.

**لغات:** ﴿الفناء﴾ د دې لفظ څو معناوې نقل سوې دي: ① د يو ځای اطرف. مثلاً "فناء الدار" د کور څنګ والا اطرافو ځمکې ته وايي. ② د يو ځای د مېنځ خالي ساحه. مثلاً "فناء الدار" د کور د مېنځ خالي ميدان (غولې) ته هم وايي. ③ د يو ځای مخ ته خالي ساحه. مثلاً د "فناء المسجد" معنیٰ ده: د مسجد مخ ته خالي ميدان. جمع: أَفْنِيَة (معجم لغة الفقهاء). او دلته مراد معنیٰ به په تشريح کې ذکر سي.

**تشريح:** د ښار د فناء اطلاق د ښار د اطرافو پر هغه ځايو کيږي چې د هغه سره د ښار ضروريات متعلق وي مثلاً صنعتي کارخانه، متصل هوايي ډګر، د آس ځغلولو يا د لوبې او بازۍ ميدان، هديره او داسې نور. او د ښار د فناء ساحه د ښار د لوی والي او کوچني والي په اعتبار سره مختلفه کېدلای سي. (شامي ج۱، ص۷۴۹، طبع: مصري، کتاب المسائل ص: ۴۲۲)

## د سفر د نيت شرائط

﴿۶۹۱﴾ وَيُشْتَرَطُ لِصِحَّةِ نِيَّةِ السَّفَرِ ثَلَاثَةُ أَشْيَاءَ او شرط دي د سفر د نيت د صحيح والي لپاره درې شيان الْإِسْتِقْلَالُ بِالْحُكْمِ په حکم کې مستقل کېدل وَالْبُلُوْغُ او بالغ کېدل وَعَدَمُ

نُقْصَانِ مُدَّةِ السَّفَرِ عَنْ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ او د سفر موده له دريو ورځو څخه نه کمېدل.

**لغات:** ﴿الاستقلال﴾ د استفعال د باب مصدر دی: مستقل کېدل، خود مختاره کېدل، خود مختاري.

**تشريح:** د سفر د نيت او ارادې د صحيح کېدو لپاره درې شيان شرط دي، که هغه موجود سي، نو د سفر نيت معتبر او صحيح دی، کنې اعتبار ور لره نسته: ① يو دا چي سفر کونکی به په خپله اراده کي مستقل او خود مختاره وي يعني د چا تابع نه وي، نو که څوک د يو چا تابع وي، د هغه نيت لره اعتبار نسته. ② سفر کونکی به بالغ وي، نو د نابالغه هلک نيت لره اعتبار نسته. ③ د سفر کونکي اراده به لږ تر لږه د دريو ورځو د سفر کولو وي، لهذا که له دريو ورځو څخه د کم سفر کولو په نيت له کور څخه ووځي، نو مسافر نه ور ته ويل کېږي.

﴿ ۶۹۲ ﴾ فَلَا يَقْصُرُ مَنْ لَمْ يُجَاوِزْ عُمْرَانَ مَقَامِهِ نو قصر به نه کوي هغه کس کوم چي تېر سوی نه وي د خپل ځای له آبادۍ څخه.

**تشريح:** مخکي د شرعاً مسافر کېدو لپاره څلور شرائط ذکر سول: درې شرطونه په تېر عبارت کي ذکر سول او يو شرط مخکي په "إذا جاوز بيوت مقامه إلخ" سره ذکر سو. اوس نو دې ځايو د هغه شرائطو تفريعات بيانوي، مذکوره مسئله پر اول شرط "إذا جاوز بيوت مقامه إلخ" باندي تفريع ده، نو تر څو چي انسان د خپل استوګنځي له آباديو (کورونو) او د هغه له محلقاتو څخه تېر نه سي. تر هغه وخته پوري نه مسافر کېږي او د هغه لپاره د قصر حکم نه ثابتېږي.

﴿ ۶۹۳ ﴾ أَوْ جَاوَزَ وَكَانَ صَبِيًّا يا تېر سوی وي (د خپل ځای له آبادۍ څخه) او هغه بچی وي.

**تشريح:** دا عبارت پر دريم شرط "البلوغ" باندي متفرع دی، يعني که يو څوک د خپل استوګنځي له آباديو او ملحقاتو څخه تېر خو سي، لېکن هغه بچی او نابالغه هلک وي، نو هغه نه مسافر کېږي او که دا نابالغه هلک د سفر په دوران کي بالغ سي، نو په کوم ځای کي چي بالغ سوی وي، له هغه ځايه به د سفر د ځای مسافه ته کتل کېږي، که هغه مسافه د سفر په اندازه وي، نو دا هلک شرعاً مسافر کېږي، کنې نه کېږي. (خانية على الهندية ج۱، ص۱۶۸، حلبي كبير ص۵۴۲)

﴿ ۶۹۴ ﴾ أَوْ تَابِعًا لَمْ يَنْوِ مَتْبُوعُهُ السَّفَرَ يا (تېر سوی وي خو) تابع وي چي نيت نه وي کړی د ده متبوع د سفر (يعني د چا چي دی تابع وي، هغه د سفر نيت نه وي کړی) كَالْمَرْأَةِ مَعَ زَوْجِهَا لکه ښځه د

خپل خاوند سره وَ الْعَبْدِ مَعَ مَوْلَاهُ او غلام د خپل مالک سره وَ الْجُنْدِيِّ مَعَ أَمِيْرِهٖ او پوځي د خپل امیر (مشر) سره.

**تشریح**: دا عبارت پر دویم شرط "الاستقلال بالحکم" باندي متفرع دی، یعني هغه کس هم مسافر نه شمېرل کیږي کوم چي په خپله اراده کي مستقل او خود مختار نه وي، بلکي هغه په حکم کیږدیو چا تابع وي مثلاً ښځه د خپل خاوند سره، یا غلام د خپل مالک سره او پولیس یا نوکر د خپل مشر سره سفر وکړي، نو دا خلک په خپل نیت سره نه مسافر کیږي، تر څو چي د دوی متبوع (یعني خاوند، مالک او مشر) د سفر نیت نه وکړي.

﴿۶۹۵﴾ أَوْ نَاوِيًا دُوْنَ الثَّلَاثَةِ یا له دریو ورځو څخه د کم نیت کونکی وي.

**تشریح**: د دې عبارت تعلق د څلورم شرط سره دی، یعني چي د سفر موده به له دریو ورځو څخه کمه نه وي، لهذا که د سفر موده له دریو ورځو څخه کمه وي، نو هغه مسافر نه شمېرل کیږي.

﴿۶۹۶﴾ وَ تُعْتَبَرُ نِيَّةُ الْإِقَامَةِ وَالسَّفَرِ مِنَ الْأَصْلِ دُوْنَ التَّبَعِ او معتبر دی د اقامت او سفر کولو نیت له اصل (متبوع) څخه، نه له تابع څخه (یعني اعتبار د متبوع نیت لره دی، نه د تابع نیت لره) إِنْ عُلِمَ نِيَّةُ الْمَتْبُوْعِ که چیري د متبوع نیت (تابع ته) معلوم سي فِي الْأَصَحِّ د صحیح ترین قول مطابق.

**تشریح**: یعني کوم کس چي د یو چا تابع وي او د هغه تابعداري او پیروي پر ده لازمه وي، نو دیٔ د هغه د سفر په نیت سره مسافر کیږي او د هغه د اقامت په نیت سره مقیم کیږي: ځکه نیت د اصل یعني د متبوع معتبر دی، د تابع نیت معتبر نه دی.

إن علم الخ: اوس ذکر سوه چي د تابع مسافر کېدل یا مقیم کېدل د متبوع پر نیت موقوف دي، لهذا کله چي تابع ته د متبوع د سفر نیت یا د اقامت نیت معلوم سي، نو د متبوع سره دا تابع هم مسافر یا مقیم کیږي، لېکن که د اصل (متبوع) نیت تابع ته معلوم نه وي، مثلاً اصل د اقامت نیت کړی وي او تابع ته د دې علم نه وي، نو تابع به قصر کوي، خو پر تابع واجب دي چي د اصل د نیت معلومولو کوښښ به کوي، لېکن د دې باوجود که تابع د هغه نیت معلوم نه کړی سي او بیا د اصل د ارادې په خلاف تابع خپل قصر کوي، نو د ده لمونځ صحیح دی.

## قصر عزیمت دی که رخصت

﴿۶۹۷﴾ وَ الْقَصْرُ عَزِيْمَةٌ عِنْدَنَا او قصر زموږ په نېز عزیمت (اصل حکم اصل مشروع) دی (یعني په

سفر کې د شريعت اصل حکم قصر کول دي. لکه څرنګه چې په غير سفر کې د شريعت حکم پوره لمونځ کول دي).

**لغات:** ﴿عزيمةٌ﴾ د ضرب د باب مصدر دی، د رخصةٌ ضد دی، د عزيمة لغوي معنیٰ ده: پخه اراده (ټينګه اراده)، اصطلاحي معنیٰ يې ده: اصل مشروع، صاحب د تعريفات يې اصطلاحي معنیٰ داسې ذکر کړې ده: "وفي الشريعة اسم لما هو أصل المشروعات غير متعلق بالعوارض".

**تشريح:** قصر عزيمت يعني اصل مشروع او اصلي فريضه ده، يا په بله وينا د سفر د لمانځه لپاره مشروع همدا دوه رکعته دي يعني په شريعت کې همدا دوه رکعته د سفر د لمانځه لپاره تاکل سوي دي. داسې نه ده چې اول څلور رکعتونه مشروع وه، بيا وروسته تخفيف پکښې وسو او دوه رکعتونه کم کړل سوه، بلکې په سفر کې د څلورو پر ځای صرف دوه رکعته فرض دي، لېکن څرنګه چې دا په ظاهره تخفيف دی، نو ځکه مجازاً رخصت ورته ويل کيږي (تفصيل به په نور الانوار کې راسي).

## که مسافر څلور رکعته وکړي، نو څه حکم دی؟

﴿۶۹۸﴾ فَإِذَا أَتَمَّ الرُّبَاعِيَّةَ وَقَعَدَ الْقُعُوْدَ الْأَوَّلَ بيا که چې (مسافر) پوره کړي څلور رکعتيز لمونځ او کښيني په اوله ناسته کې صَحَّتْ صَلوٰتُهٗ مَعَ الْكَرَاهَةِ نو صحيح کيږي د ده لمونځ د کراهت سره وَإِلَّا فَلَا تَصِحُّ کنې (يعني که نه کښيني نو) نه صحيح کيږي إِلَّا إِذَا نَوَى الْإِقَامَةَ لَمَّا قَامَ لِلثَّالِثَةِ مګر دا چې کله نيت وکړي د اقامت کله چې د درېيم رکعت لپاره ولاړ سي.

**تشريح:** يعني که مسافر په څلور رکعتيز لمانځه کې قصر نه وکړي، بلکې پوره څلور رکعته وکړي، نو که په دويم رکعت کې يې د تشهد په اندازه ناسته کړې وي، نو د هغه لمونځ صحيح کيږي او په دې صورت کې اول دوه رکعته فرض او آخري دوه رکعته نفل شمېرل کيږي، لېکن قصداً داسې کول مکروه تحريمي دي، او که په دويم رکعت کې د تشهد په اندازه ناسته نه وکړي، نو د هغه دا لمونځ نه صحيح کيږي او باطليږي. لېکن که درېيم رکعت ته د ولاړيدلو په وخت کې د اقامت (مقيم والي) نيت وکړي، نو لمونځ يې صحيح کيږي او دا څلور رکعتونه اوس د فرضو له طرفه اداء کيږي. (شفاء الارواح)

## د قصر حکم تر کومه وخته پاتې کيږي؟

﴿۶۹۹﴾ وَلَا يَزَالُ يَقْصُرُ حَتّٰى يَدْخُلَ مِصْرَهٗ او مسلسل به قصر کوي (قصر به نه پرېږدي) تر

دې چې وخپل ښار ته داخل سي (يعني تر هغه وخته به قصر کوي تر څو چې خپل ښار ته داخل سي) أَوْيَنْوِيَ إِقَامَتَهُ نِصْفَ شَهْرٍ بِبَلَدٍ أَوْ قَرْيَةٍ يا (تر څو چې) نيت وکړي د نيمي مياشتي (پنځلسو ورځو) د پاتېدلو په يو ښار يا په يو کلي کي وَقَصَرَ إِنْ نَوَىٰ أَقَلَّ مِنْهُ او قصر به کوي که له دې څخه (د کم وخت) نيت وکړي أَوْلَمْ يَنْوِ وَبَقِيَ سِنِيْنَ يا (کرد سره) نيت نه وکړي او څو کاله (همداسي) پاته سي (يعني د نيت کولو په صورت کي که څه هم څو کاله يو ځای پاته سي، نو هم به قصر کوي).

**لغات:** ﴿الْقَرْيَةِ﴾ قصبه، لوی کلی او علاقه کوم چي د ښار په اطرافو (صحراء) کي وي، چي هغه ته زموږ په اصطلاح کي د صحرا کلی او علاقه وايي.

**تشريح:** صورت د مسئلې دا دی چي کله سړی د سفر په نيت سره له خپل ښار يا له خپلي آبادۍ څخه ووځي، نو اوس به هغه قصر لمونځ شروع کوي او تر څو چي په سفر کي وي، قصر به مسلسل کوي، لېکن کله چي خپل ښار او علاقې ته واپس راسي، نو تر څو چي آبادۍ ته دننه داخل نه سي، تر هغه وخته پوري مسافر پاتېږي او قصر به کوي او کله چي وهغه آبادۍ ته داخل سي له کومي آبادۍ څخه پر وتلو چي يې قصر شروع کړی وي (يعني د خپل ښار او علاقې آبادۍ ته)، نو هلته مقيم کېږي او پر هغه پوره لمونځ کول لازمېږي.

أوينوي إلخ: يعني تر هغه وخته پوري به قصر لمونځ کوي، تر څو چي په يو ښار يا په يو کلي او علاقه کي د پنځلسو ورځو يا تر دې د زيات پاتېدلو (اوسېدلو) نيت نه وکړي، لهذا کله چي د پنځلسو ورځو پاتېدلو نيت وکړي، نو د سفر حکم ختمېږي او هغه مقيم ګرځي، اوس پر هغه پوره لمونځ کول لازمېږي.

وقصر إلخ: او که تر پنځلسو ورځو د کم پاتېدلو نيت وکړي، يا هيڅ نيت هم نه وکړي بلکي يو ښار ته په دې اراده سره داخل سي چي که په څلور، پنځه ورځو کي زما کار وسي، نو بېرته ځم، لېکن کار پوره نه سي، بيا يې همدا خيال وي چي څلور، پنځه ورځي يا مثلاً لس ورځي به نوري واخلي، خو بيا هم کار پوره نه سي او په دې ډول پنځلس ورځي يا تر دې زيات وخت تېر سي بلکي که کال يا څو کاله تېر سي هم، نو هم به هغه په قصر سره لمونځ کوي.

﴿٤٠٠﴾ وَلَا تَصِحُّ نِيَّةُ الْإِقَامَةِ بِبَلْدَتَيْنِ لَمْ يُعَيِّنِ الْمَبِيْتَ بِأَحَدِهِمَا او نه صحيح کېږي د اقامت (پاتېدلو) داسي نيت په دوو ښارونو کي چي متعين کړی يې نه وي شپه تېرول په يوه ښار کي د دې دواړو ښارونو (يعني که په دوو ښارونو کي د پاتېدلو په وخت کي يې په يوه کي شپه تېرول متعين کړي نه

وي اچي شپه به په دې ښار کي کوم)، تر هغه وخت پوره د ده د اقامت نیت صحیح نه دی).

**لغات:** ﴿بدلتین﴾ تثنیه د بَلْدَةٌ ده: دوه ښارونه (ښار گوټي). له دې څخه مراد دوې داسې علاقې او آبادۍ دي کوم چي یوه له بلي څخه جلا شمېرل کېږي، خو که یوه علاقه او آبادي د بلي علاقې حصه شمېرل کېږي، نو هلته دا مسئله نه جاري کېږي.

**تشریح:** مسئله دا ده چي که یو سړی په دوو جلا، جلا نژدې ښارونو او علاقو کي د پنځلسو ورځو د پاتېدلو نیت داسې وکړي چي د ورځي به په دې ښار کي یم او شپې به په دې بل ښار کي تېروم، نو دا ډول خو د اقامت نیت صحیح دی، چي په کوم ښار کي یې د شپې تېرولو اراده ده، د هغه په حساب د پنځلسو ورځو په نیت سره مقیم گرځي او دواړه ځایونه به پوره لمونځ کوي. لېکن که په دوو جلا، جلا ښارونو کي د پنځلسو ورځو د پاتېدلو نیت داسې وکړي چي مستقل په یوه ښار کي هم پنځلس شپې نه پاتېږي، بلکي دواړه ځایونه به شپې تېروي، مثلاً یو ځای لس شپې او بل ځای پنځه شپې، نو په دې صورت کي هغه نه مقیم کېږي بلکي مسافر پاتېږي او قصر به کوي.



## د شپې قیام لره اعتبار دی

**مسئله:** که یو څوک دا نیت وکړي چي زه به پنځلس شپې دلته تېروم او د هغه اراده دا وي چي د ورځي به شا وخوا علاقو ته هم ځم، نو داسې کس شرعاً مقیم شمېرل کېږي: ځکه چي د اقامت په نیت کي د شپې قیام لره اعتبار دی. (عالمگیري ج:۱، ص:۱۴۰، کتاب المسائل ص:۵۲۲)

## په دښت کي د اقامت نیت کول (او د کوچیانو حکم)

﴿۵۱﴾ وَلَا فِيْ مَفَازَةٍ لِغَيْرِ أَهْلِ الْأَخْبِيَةِ او نه (صحیح کېږي د اقامت نیت) په دښت کي له خېمو والا (کېږدیو والا اکرچیترا) څخه بغیر د بل چا لپاره.

**لغات:** ﴿مفازة﴾ دښت، بیابان. ﴿أخبية﴾ جمع د خِبَاءٌ ده، له وړیو یا وژغنو او داسې نورو څخه جوړه سوې خېمه، أهل أخبية خېمو (کېږدیو) والا کوچیان.

**تشریح:** اول په دې پوهېدل پکار دي چي په کوم ځای کي د اقامت او پاتېدلو نیت کول کېږي، هلته به د قیام او اوسېدلو صلاحیت وي (لکه ښار، کلی او علاقه)، لهذا په دښت او بیابان کي د اقامت نیت کول صحیح او معتبر نه دي، لېکن خېمو او کېږدیو والا یعني کوچیان کوم چي له آبادۍ څخه د باندي په دښت او صحرا کي خېمې دروي او پکښې اوسي، نو دا خلک چي په کوم ځای کي هم اوسېږي، هلته مقیم شمېرل کېږي، ها! که دوی د خپل اوسېدلو له ځای څخه داسې ځای ته د تللو

نیت وکړي کوم چې له هغه ځایه د سفر پر مسافه وي، نو مسافر ګرځي. بیا که په هغه ځای کې هم پنځلس ورځې یا زیات وخت د اقامت نیت وکړي، نو مقیم ګرځي، او که هغه د سفر له مسافې څخه پر کمه فاصله وي، نو مقیم پاتېږي.

## په دار الحرب کې د اقامت نیت کول

﴿۴۰۲﴾ وَلَا لِعَسْكَرِنَا بِدَارِ الْحَرْبِ او نه (صحیح کیږي د اقامت نیت) زموږ د لښکر (مجاهدینو) لپاره په دارُ الحرب کې.

**لغات:** ﴿عسکر﴾ لښکر، پوځ.

**تشریح:** یعني که اسلامي لښکر دارُ الحرب ته داخل سي او هلته د پنځلسو ورځو د قیام او پاتېدلو نیت وکړي، نو د هغو نیت هم معتبر نه دی، ځکه د اقامت نیت په هغه ځای کې معتبر دی چیري چې د اقامت (پاتېدلو) صلاحیت او قدرت وي، ځرنګه چې د دښمن په ځمکه کې د اقامت او سېدلو صلاحیت نسته، چې ممکنه ده همدا نن به دښمن غالب سي او اسلامي لښکر به شاته سي یا فتح به حاصله کړي او مخ ته به ولاړ سي، نو ځکه د پنځلسو ورځو د اقامت د نیت کولو باوجود هم حکم دا دی چې اسلامي لښکر به قصر کوي. (البحر الرائق ج:۲، ص:۱۴۴)

﴿۴۰۳﴾ وَلَا بِدَارِنَا فِيْ مُحَاصَرَةِ أَهْلِ الْبَغْيِ او نه (صحیح کیږي د اقامت نیت) زموږ په دار (دار الاسلام) کې په (وخت کې د) محاصره کولو د باغیانو.

**لغات:** ﴿محاصرة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: محاصره کول. له څلورو سره طرفونو څخه نیول. چاپېره پرې راګرځېدل. ﴿اهل البغي﴾ باغیان. د امام او اسلامي حکومت له اطاعت کولو څخه وتونکي او مخالفت کونکي.

**تشریح:** که اسلامي لښکر په دارُ الاسلام کې له ښار څخه دباندې باغیان محاصره کړي او هلته پنځلس ورځې د پاتېدلو نیت وکړي، نو د هغو دا نیت هم معتبر نه دی، للتردد کما ذکرنا في المسئلة السابقة. نو ځکه دلته به هم اسلامي لښکر قصر کوي.

## د مقیم کس د اقتداء حکم

﴿۴۰۴﴾ وَإِنِ اقْتَدٰى مُسَافِرٌ بِمُقِيْمٍ فِي الْوَقْتِ او که اقتداء وکړي مسافر په مقیم پسې په وخت کې دننه صَحَّ نو صحیح کیږي وَأَتَمَّهَا أَرْبَعًا او پوره کوي به مسافر دا لمونځ څلور

رکعته وَبَعْدَهٗ لَا يَصِحُّ او تر وخت وروسته (يې اقتداء) نه صحيح کيږي وَ بِعَكْسِهٖ صَحَّ فِيْهِمَا او دې په برعکس صورت کې په دواړو (يعنې په وخت کې دننه او تر وخت وروسته) دواړو وختونو کې صحيح کيږي.

**تشريح:** که يو مسافر په مقيم امام پسې اقتداء وکړي په وخت کې دننه (مثلا د ماپښين په وخت کې امام د ماپښين لمونځ ورکوي او مسافر د ماپښين په لمانځه کې اقتداء پسې وکړي)، نو هغه به د امام په اقتداء کې پوره لمونځ اداء کوي، قصر به نه کوي. او که مقيم کس په مسافر امام پسې اقتداء وکړي، نو پر دويم رکعت د امام له سلام ګرځولو څخه وروسته به مقيم خپل دوه رکعته جلا کوي او لمونځ به پوره کوي.

وبعده لا يصح: او که د لمانځه وخت وتلی وي يعنې امام او مقتديان د لمانځه قضاء راګرځوي (قضائي لمونځ اداء کوي)، نو په داسې صورت کې په مقيم امام پسې د مسافر اقتداء صحيح نه ده (د ماپښين، مازيګر او ماخوستن په لمنځونو کې، او د سهار او مابنام په لمانځه کې اقتداء پسې کولای شي).

وبعکسه إلخ: يعنې که امام مسافر وي او اقتداء کونکی مقيم وي، نو برابره ده وخت پاته وي او که وتلی وي، په دواړو صورتونو کې اقتداء صحيح ده (يعنې په اداء او قضاء دواړو کې د مقيم اقتداء په مسافر امام پسې صحيح کيږي).



**مسئله:** که مسافر امام په هره څلور رکعته لمونځ وکړي، نو د مقتديانو لمونځ باطليږي، او مسافر امام که قعدۀ اولیٰ (اوله ناسته) کړې وي او په آخر کې سجدۀ سهو هم وکړي، نو خپله د هغه فرض اداء کيږي، او که قعدۀ اولیٰ يې پرې ايښې وي، نو د امام فرض هم نه اداء کيږي. (شامي ج: ۲، ص: ۶۱۲)

## مسافر امام ته هدايت

﴿۵۰۵﴾ وَنُدِبَ لِلْإِمَامِ أَنْ يَّقُوْلَ او مستحب دي د امام لپاره چې (تر سلام وروسته) ووايي أَتِمُّوْا صَلٰوتَكُمْ فَإِنِّيْ مُسَافِرٌ چې تاسې خپل لمونځ پوره کړئ! زه مسافر يم وَيَنْبَغِيْ أَنْ يَّقُوْلَ ذٰلِكَ قَبْلَ شُرُوْعِهٖ فِي الصَّلٰوةِ او ښکاره ده چې ووايي دا (چې زه مسافر يم) مخکې تر شروع کولو په لمانځه.

**تشريح:** که امام مسافر وي، نو د هغه لپاره مستحب دي چې دواړو طرفونو ته له سلام ګرځولو څخه وروسته سملستي خپلو مقتديانو ته ووايي چې "تاسې حضرات خپل لمونځ پوره کړئ! زه مسافر

یم". او زیاته غوره داده چې د لمانځه له شروع کولو څخه مخکې دا ووایې. او که په شروع کې یې ویلې وي، نو بیا هم تر لمانځه وروسته ویل غوره دي، د دې لپاره چې کوم خلک په هغه وخت کې موجود نه وي، هغوته هم معلومه سي.

## په مسافر امام پسې لمونځ کونکی مقیم به په خپل پاته لمانځه کې قرائت نه کوي

﴿۵۰۶﴾ وَلَایَقْرَأُ الْمُقِیْمُ فِیْمَا یُتِمُّهٗ بَعْدَ فَرَاغِ إِمَامِهِ الْمُسَافِرِ او قرائت به نه کوي مقیم په هغو رکعتونو کې کوم چې د خپل مسافر امام تر فارغېدلو وروسته پوره کوي فِي الْأَصَحِّ د صحیح ترین قول مطابق.

**تشریح**: کله چې مسافر امام سلام وګرځوي او مقیم کس د خپل پاته دوو رکعتو لپاره ولاړ سي، نو په هغوی کې به قرائت نه کوي، نه به سورة الفاتحه "الحمد لله..." وایې او نه یو سورت. بلکې په دواړو رکعتونو کې به د سورة الفاتحه ویلو په اندازه چوپ درېږي، پر همدې قول فتوی ده. (کفایت المفتي ج: ۳. ص: ۳۲۳). وقال بعض المشائخ: یقرأ کالمسبوق. (طحطاوي علی مراقي الفلاح ص: ۴۳۳)

﴿۵۰۷﴾ وَفَائِتَةُ السَّفَرِ وَالْحَضَرِ تُقْضٰی رَکْعَتَیْنِ وَأَرْبَعًا او د سفر او غیر سفر د فوت سوی (قضائي) لمانځه قضاء به راوړل کېږي دوه رکعته او څلور رکعته وَالْمُعْتَبَرُ فِیْهِ آخِرُ الْوَقْتِ او معتبر په دې کې آخري وخت دی (یعني د لمانځه د وخت په آخر کې چې پر انسان څومره رکعته لمونځ لازم سوی وي، هغه لره اعتبار دی. که څلور لازم سوي وي، نو وروسته به هم څلور رکعته راګرځول کېږي، او که دوه لازم سوي وي، نو وروسته هم دوه لازمېږي).

**تشریح**: په دې عبارت کې لف و نشر مرتب دی. حاصل د عبارت دا دی چې که د سفر په حالت کې رباعي (څلور رکعتیز) لمونځ قضاء سي (مثلاً د ماپښین یا مازیګر لمونځ قضاء سي). او په حضر کې د هغه قضاء راوړي، نو دوه رکعته به اداء کوي، او که د حضر په زمانه کې یو رباعي لمانځ قضاء سي او بیا د سفر په حالت کې د هغه قضاء راوړي، نو څلور رکعته به اداء کوي.

والمعتبر الخ: یعني د قضائي لمانځه د څلورو رکعتو یا دوو رکعتو په واجبېدلو کې آخري وخت لره اعتبار دی. مطلب دا چې که له یو چا څخه لمونځ قضاء سي. نو اوس د دې لمانځه د وخت په آخر کې که هغه مسافر وو، نو دوه رکعته به قضاء راوړي او که مقیم وو، نو څلور رکعته به قضاء راوړي. مثلاً د ماپښین په اول کې مقیم وو، بیا یې سفر شروع کړی او د وخت په آخر کې له ښار او آبادۍ څخه

ووتی، نو پر هغه دوو رکعتو قضاء واجب ده چي دمابښين لمونځ به دوه رکعته راګرځوي؛ ځکه په آخري وخت کي مسافر سو. (شفاء الارواح)

## وطنِ اصلي کله ختميږي؟

﴿۵۰۸﴾ وَيَبْطُلُ الْوَطَنُ الْأَصْلِيُّ بِمِثْلِهِ فَقَطْ او باطليږي وطنِ اصلي فقط په خپل مثل (وطن اصلي) سره.

**تشريح**: که يو څوک له خپل ښار څخه کوچ او کډه وکړي او هلته د مستقل اوسېدلو اراده ختمه کړي او يو بل ځای خپل کور او وطن وګرځوي او د خپلي ښځي او بچيانو سره هلته استوګنه اختيار کړي او خپل ښار او ځای بالکل پرېږدي، نو اوس دا بل ښار د ده وطنِ اصلي سو. او اول وطنِ اصلي يې باطل سو يعني اوس هغه د ده لپاره پردی وطن سو، لهذا اوس که هغه په سفر خپل دغه اول وطن ته داخل سي، نو مقيم نه پاتېږي، بلکي قصر به کوي، مثلاً د يو سړي وطنِ اصلي کندهار دی. بيا هغه کندهار پرېښوو، هلمند ته ولاړی او هغه يې خپل وطن جوړ کړی، بيا هغه له هلمند څخه وکندهار ته سفر وکړي، نو اوس به قصر کوي؛ ځکه کندهار اوس د ده وطن نه سو.

او که له وطنِ اصلي څخه د خپل اهل وعيال او د خپل کډي او سامان سره بل ښار ته ولاړ سي او هغه خپل وطن وګرځوي، لېکن په وطنِ اصلي (اول ښار) کي د ده کور او جائيداد پاته وي، نو بعضو ويلي چي بيا هم هغه وطنِ اصلي نه پاتېږي؛ ځکه چي اعتبار اهل لره دی، نه کور لره. او بعضو ويلي دي چي هغه د ده وطن باقي پاتېږي او هغه به په دې دواړو ښارونو کي پوره لمونځ کوي. خو محض په سفر کولو يا په بل ځای کي په مقيم کېدلو سره وطنِ اصلي نه باطليږي. (شفاء الارواح، انوار الايضاح)

**يادونه**: د وطنِ اصلي، وطنِ اقامت او وطنِ سکنیٰ تعريفونه به څه وروسته خپله په عبارت کي راسي.

## وطنِ اقامت کله باطليږي؟

﴿۵۰۹﴾ وَيَبْطُلُ وَطَنُ الْإِقَامَةِ بِمِثْلِهِ وَبِالسَّفَرِ وَبِالْأَصْلِيِّ او باطليږي وطنِ اقامت په خپل مثل (وطنِ اقامت) سره او په سفر سره او په وطنِ اصلي سره.

**تشريح**: وطنِ اقامت په سفر کولو سره، يا بل وطن ته په تللو او اقامت کولو سره، يا وطنِ اصلي ته په واپس تللو سره باطليږي؛ ځکه په يوه وخت کي دوه وطنه وطنِ اقامت نه سي کېدلای.

### له وطنِ اقامت څخه د نژدې علاقې، وطرف ته سفر کول

**مسئله**: که يو څوک يو ځای خپل وطنِ اقامت جوړ کړي، بيا هغه يو نژدې علاقې ته ولاړ سي يعني داسي علاقه او آبادي کوم چي د سفر له مسافې څخه پر کمه مسافه واقع وي او اراده يې د واپس

کېدلو او وطنِ اقامت ته درا تللو وي، نو په دې نژدې سفر سره دهغه وطنِ اقامت نه باطلیږي او هغه به دواړه ځایونه پوره لمونځ کوي. (شامي ج: ۲، ص: ۶۱۵، کتاب المسائل ص: ۵۲۲)

## د وطن اصلي تعریف

﴿۴۱۰﴾ وَ الْوَطَنُ الْأَصْلِيُّ هُوَالَّذِیْ وُلِدَ فِیْهِ او وطنِ اصلي هغه وطن دی چې انسان په هغه کې پیدا سوی وي أَوْتَزَوَّجَ یا (هغه وطن) چې واده یې (ښځې) کړی وي أَوْلَمْ یَتَزَوَّجْ وَ قَصَدَ التَّعَیُّشَ لَا الْاِرْتِحَالَ عَنْهُ یا یې واده نه وي (ښځې) کړی (لیکن هلته یې) دژوند تېرلو اراده کړې وي، نه له هغه ځای څخه د کوچ کولو (کډه کولو).

**لغات:** ﴿التعیش﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: ژوند تېرول، دژوندي پاتېدلو کوښښ کول.

﴿الارتحال﴾ د افتعال د باب مصدر دی: کوچېدل (کوچ کول، کډه کول)، روانېدل.

**تشریح:** عامو مشائخو د وطنِ اصلي درې قسمونه بیان کړي دي: ① وطنِ اصلی، ② وطنِ اقامت، ③ وطنِ سکنی.

وطنِ اصلی هغه وطن ته وایي چیرې چې انسان پیدا سوی وي، همدارنګه هغه وطن هم وطنِ اصلی دی چیرې چې انسان واده وکړي، که څه هم هغه خپل وطن نه وګرځوي. یا هلته د پنځلسو ورځو یا د زیات وخت اقامت نیت نه وکړي، همدا أوجه قول دی (عمدة الفقه بحوالة شفاء الارواح)، همدارنګه هغه وطن هم وطنِ اصلی دی چې هلته دژوند تېرلو قصد وکړي چې اوس به له دې ځایه نه منتقل کېږم.



**مسئله:** که خاوند تر واده کولو وروسته ښځه په خپل کور کې مستقل پرېږدي او هلته ورځي راځي، نو د دې خاوند لپاره د ښځې وطن د وطنِ اصلي په درجه کې دی (چې داسې وطن ته وطنِ تأهل هم وایي)، لهذا هلته که هر وخت ولاړ سي، نو پوره لمونځ به کوي او تر څو چې یې د ښځې پرېښوولو اراده وي، هغه وطن باقي پاتېږي.

همدارنګه کله چې ښځه د خاوند او خسرګنی کور ته راسي او هلته استوګنه اختیار کړي، نو د پلار کور د هغې وطنِ اصلي نه پاتېږي، بلکې د خسرګنی کور د هغې وطنِ اصلي ګرځي، د دې په خلاف هغه ښځه کوم چې د خپل پلار په کور کې اوسېږي او د خاوند (خسرګنی) په کور کې یې

مستقل اقامت اختیار کړی نه وي، که هغه د څه وخت لپاره د خاوند کور ته ولاړه سي، نو تر څو چي هلته د پنځلس ورځو د پاتېدلو نیت نه وکړي، قصر به کوي؛ ځکه د پلار په کور کي د مستقل قیام په وجه د خاوند کور د هغې لپاره د وطنِ اصلي په درجه نه دی ګرځېدلی. (کتاب المسائل ص: ۵۱۷. الفتاوی التاتارخانیه ج: ۲، ص: ۵۱۰، مسئله: ۳۱۴۵، ط: مکتبه زکریا)

## د وطنِ اقامت تعریف

﴿۱۷﴾ وَوَطَنُ الْإِقَامَةِ مَوْضِعٌ نَوَى الْإِقَامَةَ فِيهِ نِصْفَ شَهْرٍ فَمَا فَوْقَهُ او وطنِ اقامت هغه ځای دی چي په هغه کي یې نیت د اقامت (پاتېدلو) کړی وي نیمه میاشته یا تر دې د پاسه (زیات وخت).

**تشریح**: وطنِ اقامت هغه ځای او وطن ته وایي چي په هغه کي مسافر د پنځلسو ورځو یا تر دې د زیات وخت پاتېدلو نیت کړی وي، په دې شرط چي هغه ځای د ده لپاره د وطن اصلي په حکم کي نه وي.

که څوک په یو ځای کي د پنځلسو ورځو د پاتېدلو نیت وکړي او پوره لمونځ شروع کړي، لېکن بیا د هغه اراده بدله سي او تر پنځلسو ورځو مخکي د سفر کولو نیت وکړي، نو تر څو چي هغه سفر شروع کړی نه وي، تر هغه وخته پوري مقیم پاتېږي او پوره لمونځ به کوي.



## د نوکرۍ او دندې د ځای حکم

**مسئله**: داوسني وخت د بعضي محققینو علماؤ او مفتیانو په نېز په موجوده دور کي چي کوم حضرات مستقل په یو اداره کي نوکري کوي، یا په یو ښار کي د تجارت او دندې په غرض سره مقیم وي او د هغو قصد دا وي چي له دې ځایه به له یو خاص سبب څخه بغیر بل ځای ته نه منتقل کېږي، نو دا ځای هم د هغو لپاره د وطن اصلي په درجه کي دی او دلته د پوره لمونځ کولو (اِتمام) حکم جاري کېږي(البحر الرائق ج: ۲، ص: ۱۳۹، ط: زکریا). اصلاً په دې مسئله کي د علماؤ اختلاف دی. په ځیني کتابو کي د نوکرۍ او دندې ځای د وطنِ اقامت په درجه کي شمېرل سوی دی. لېکن په دلائلِ فقهیه وو سره د دې خبري تائید کېږي چي د نوکرۍ ځای او د دندې او معاش ځای د وطنِ اصلي په حکم کي دی، او احتیاط هم په همدې قول کي دی. د تفصیل لپاره دې دا کتابونه وکتل سي: (امداد الاحکام، احسن الفتاوی، احکام السفر، کتاب المسائل)

## وطن سکنیٰ

﴿۷۱۲﴾ وَلَمْ يَعْتَبِرِ الْمُحَقِّقُوْنَ وَطَنَ السُّكْنٰى او اعتبار نه دی کړی محققینو علماؤ د وطنِ سکنیٰ وَهُوَ مَا يَنْوِي الْإِقَامَةَ فِيْهِ دُوْنَ نِصْفِ شَهْرٍ او وطنِ سکنیٰ هغه وطن دی چي په هغه کي نیت د اقامت (پاتېدلو) وکړي له نیمي میاشتي څخه کم وخت.

**لغات:** ﴿لم یعتبر﴾ د افتعال له بابه د نفي جحد صیغه ده، مصدر: اعتبارًا: اعتبار کول، یو شي ته اهمیت او حیثیت ورکول.

**تشریح:** وطنَ سکنیٰ هغه ځای او وطن ته وایي چي هلته انسان له پنځلسو ورځو څخه د کم وخت پاتېدلو نیت کړی وي (په دې شرط چي هغه ده د وطنِ اصلي په حکم کي نه وي). محققینو د وطنِ سکنیٰ اعتبار نه دی کړی، یعني د هغه په وجه نه مسافر مقیم کیږي او نه مقیم مسافر کیږي، بلکي محققینو وطن صرف پر دوو تقسیم کړی دی (یعني وطنِ اصلي او وطنِ اقامت)؛ ځکه په وطنِ سکنیٰ کي اقامت نه ثابتیږي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)



# بَابُ صَلَاةِ الْمَرِيْضِ

(دا) باب د ناروغه کس د لمانځه (په بيان کي) دی

**تشريح:** د مسافر او مريض لپاره په ډېرو احکامو کي تخفيف هم سته او اسقاط هم سته. نو ځکه له "باب صلاة المسافر" څخه وروسته يې د مريض د لمانځه احکام بيان کړي دي.

## کوم مريض په ناسته لمونځ کولای سي؟

﴿۴۱۳﴾ إِذَا تَعَذَّرَ عَلَى الْمَرِيْضِ كُلُّ الْقِيَامِ کله چي ناممکنه سي پر مريض پوره ولاړه (درېدل) أَوْ تَعَسَّرَ بِوُجُوْدِ أَلَمٍ شَدِيْدٍ يا مشکله سي (ولاړه) د سخت تکليف موجودېدلو په وجه أَوْ خَافَ زِيَادَةَ الْمَرَضِ أَوْ إِبْطَاءَهُ بِهِ يا مريض وېرېږي د مرض پر زياتېدلو يا د مرض پر ځنډېدلو د ولاړي په سبب (چي د درېدلو په وجه به مي مرض زيات سي، يا د مرض روغتيا به ډېره وځنډېږي) صَلَّى قَاعِدًا بِرُكُوْعٍ وَّسُجُوْدٍ نو هغه دي په ناسته لمونځ وکړي په رکوع او سجده کولو سره.

**لغات:** ﴿مريض﴾ ناروغ، ناجوړ. ﴿تعذّر﴾ د تفعّل د باب ماضي ده، د دې باب دوې معناوي نقل سوي دي: ① مشکل کېدل. ② ناممکن کېدل. دلته همدا دويمه معنیٰ مراد ده. ﴿تعسّر﴾ دا هم د تفعّل د باب ماضي ده: سختېدل، مشکل کېدل. ﴿ألم﴾ درد، تکليف (جسماني يا روحاني). جمع: آلام. ﴿إبطاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: ځنډېدل، ځنډول. (معجم الوسيط)

**تشريح:** ① که انسان داسي مريض وي چي د هغه لپاره لږ ګړی درېدل هم مشکل وي. ② يا د سخت درد او تکليف په وجه د انسان لپاره درېدل مشکل وي. ③ يا اوس خو درېدلای سي. لېکن له هغه څخه د مرض زياتېدلو غالب ګومان وي. ④ يا مريض ته دا ببره وي چي که په ولاړي لمونځ کوم، نو صحت او روغتيا به وځنډېږي (ډېر وخت به په کښېوځي).

نو په دې ټولو سره صورتونو کي هغه ته پکار دي چي قيام (ولاړه) پرېږدي او په ناسته په رکوع او سجده سره لمونځ اداء کړي، نه په اشاره سره.

﴿ ۴۱۴ ﴾ وَيَقْعُدُ كَيْفَ شَاءَ فِي الْأَصَحِّ او کښېني دې څرنګه چې د ده خوښه وي، د صحيح ترين قول مطابق (يعني اصح قول دا دی چې څه ډول د ده خوښه وي، هغسې دې کښېني).

**تشريح:** د اصح قول مطابق د ناستې په کيفيت کې پر مريض وغيره هيڅ پابندي نشته. څرنګه چې يې خوښه وي، هغسې دې په لمانځه کې کښېني، برابره ده د التحيات پر هيئت کښېني او که چار زانو کښېني، خو اولیٰ دا ده چې که زيات تکليف نه وي، نو د التحيات پر هيئت دې کښېني. (در مختار مع الشامي ج: ۲، ص: ۴۹۵)

## که څوک لږ وخت پر درېدلو قدرت لري، نو څه حکم دی؟

﴿ ۴۱۵ ﴾ وَإِلَّا قَامَ بِقَدْرِ مَا يُمْكِنُهُ کنې (که پوره ولاړه مشکله وي، نو) ودې درېږي څومره چې د ده لره ممکنه وي (يعني څومره وخت چې د ده په قدرت کې وي).

**تشريح:** که يو څوک په قيام باندې قادر خو وي، لېکن زيات ګړی نه سي درېدلای، نو پر هغه لازم دي چې څومره ګړی قدرت لري، هغومره دې په ولاړه لمونځ وکړي. بيا دې په ناسته لمونځ پوره کړي، حتیٰ که صرف د الله اکبر ويلو په اندازه د ولاړې قدرت لري، نو تکبير دې په ولاړه ووايي. همدارنګه که څوک پر يو شي باندې په تکيه کولو سره پر ولاړې قدرت لري مثلاً پر دېوال، لکړه يا د يو خادم په مرسته او تکيه سره په ولاړې لمونځ کولای سي، نو دا سې کس لپاره په ولاړه لمونځ کول لازم دي، په ناسته د هغه لمونځ نه اداء کېږي. (انوار الايضاح بحواله در مختار مع الشامي ج: ۲، ص: ۴۹۵ ط: بيروت)

﴿ ۴۱۶ ﴾ وَإِنْ تَعَذَّرَ الرُّكُوْعُ وَالسُّجُوْدُ او که ناممکنه سي رکوع او سجده کول صَلّٰى قَاعِدًا بِالْإِيْمَاءِ نو هغه دې په ناسته په اشاره کولو سره لمونځ وکړي.

﴿ ۴۱۷ ﴾ وَ جَعَلَ إِيْمَاءَهُ لِلسُّجُوْدِ أَخْفَضَ مِنْ إِيْمَائِهِ لِلرُّكُوْعِ او ودې ګرځوي خپل اشاره د سجدې لپاره زياته ټيټه (کښته) له خپل اشارې څخه د رکوع لپاره (يعني د سجدې لپاره دې د رکوع د اشارې په نسبت ټيټه اشاره کوي) فَإِنْ لَّمْ يَخْفِضْهُ عَنْهُ او که ټيټه (کښته) نه کړي د سجدې اشاره د رکوع له اشارې څخه لَا يَصِحُّ نو (لمونځ) نه صحيح کېږي.

**لغات:** ﴿ايماء﴾ د افعال د باب مصدر دی، اشاره کول. ﴿أخفض﴾ د ضرب له بابه اسم تفضيل دی، زيات ټيټ، کښته.

**تشریح:** کوم څوک چې په قیام باندي خو قادر وي، لیکن له رکوع او سجده کولو څخه عاجزه وي، یا په قیام، رکوع او سجود یوه باندي هم قدرت نه لري، لیکن پر ناستي قدرت لري، نو هغه دي په ناسته په اشاره سره لمونځ وکړي او د اشارې حقیقت سر کښول دي.

## په اشاره سره لمونځ کونکي به رکوع او سجده څنګه کوي؟

وجعل ایمائه للسجود الخ: فرمایي چې د سجدې اشاره دي له رکوع څخه زیاته کښته (ټیټه) کوي، یعني د رکوع لپاره دي لږ کښېږي او په سجده کي دي تر هغه زیات کښېږي چې سجده له رکوع څخه بېله سي، لهذا که د رکوع او سجدې دواړو لپاره برابره اشاره کوي، نو لمونځ یې نه صحیح کیږي.(شفاء الارواح)



**مسئله:** کوم څوک چې په رکوع او سجده باندي قادر نه وي، نو د هغه لپاره په ناستي پر بالښت، مېز وغیره باندي د سجده کولو ضرورت نسته (صرف اشاره دي کوي)، بیا هم که پر دې شیانو باندي سجده وکړي نو په حاصل کي په سر کښولو سره سجده اداء کیږي (یعني ګواکي هغه په اشاره سره سجده اداء کړه). (حلبي کبیر ص: ۲۶۲ بحوالة کتاب المسائل)

## مخ ته یو شی را پورته کول او سجده باندي کول

| |
|---|
| ﴿۴۱۸﴾ وَلَا يَرْفَعُ لِوَجْهِهِ شَيْءٌ يَسْجُدُ عَلَيْهِ او نه دي پورته کوي د خپل مخ وطرف ته یوشی چې پر هغه سجده وکړي فَإِنْ فَعَلَ وَخَفَضَ رَأْسَهُ نو که داسي وکړي او خپل سر (د سجدې لپاره) ټیټ کړي صَحَّ نو صحیح کیږي وَإِلَّا لَا کنې نه (صحیح کیږي). |

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې د سجدې لپاره بالښت، یا خښته یا تخته یا داسي بل شی را پورته کول او د تندي سره لګول صحیح نه دي، لهذا که یو مریض بالښت را پورته کړي او د تندي سره یې ولګوي، نو له دوو حالو څخه به خالي نه وي: یا خو هغه به د رکوع او سجدې لپاره خپل سر هم کوږ کړی وي یا به نه وي، که سر یې هم کوږ کړی وي، نو لمونځ یې صحیح کیږي او هغه په اشاره سره سجده اداء کونکی شمېرل کیږي، لیکن دا بد فعل دی، او که بالښت را پورته کړي او پر تندي یې ولګوي او سر بالکل ټیټ نه سي، نو په دې سره سجده او رکوع نه اداء کیږي، لهذا د هغه لمونځ نه صحیح کیږي. (شفاء الارواح)

## له ناستي څخه عاجز کس به څنګه لمونځ کوي؟

﴿۷۱۹﴾ وَإِنْ تَعَسَّرَ الْقُعُودُ او که مشکله سي ناسته (یعني په ناستي هم لمونځ نه سي کولای) أَوْمَأَ مُسْتَلْقِيًا أَوْ عَلَى جَنْبِهِ نو اشاره دي کوي په پروتي سره ستوني سڅخ یا پر خپل بغل وَ الْأَوَّلُ أَوْلَى او اول (ستوني سڅخ پروته) غوره ده وَيَجْعَلُ تَحْتَ رَأْسِهِ وِسَادَةً او اږدي به تر خپل سر لاندي بالښت لِيَصِيرَ وَجْهُهُ إِلَى الْقِبْلَةِ لَا السَّمَاءِ ددې لپاره چي وګرځي دده مخ د قبلې وطرف ته، نه دآسمان وطرف ته وَيَنْبَغِي نَصْبُ رُكْبَتَيْهِ إِنْ قَدَرَ او مناسب دي د خپلو زنګنو درول که یې قدرت (طاقت) وي حَتَّى لَا يَمُدُّهُمَا إِلَى الْقِبْلَةِ ددې لپاره چي نه وغځوي زنګونان (پښې) د قبلې وطرف ته.

**لغات:** ﴿مستلقیًا﴾ د استفعال له بابه اسم فاعل دی، مصدر: إِسْتِلْقَاء: ستوني سڅخ پرېوتل. ﴿جنب﴾ اړخ، څنګ، بغل. ﴿وِسادة﴾ بالښت، یا دبالښت په توګه تر سر لاندي کونکی بل شی. جمع: وِسَادَات. ﴿نصب﴾ د ضرب د باب مصدر دی: درول، جګول. ﴿رکبتیه﴾ تثنیه د رُکْبَةٌ ده: زنګون (څنګون). ﴿یمدّ﴾ د نصر له بابه مضارع ده: غوړول (غځول).

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چي که مریض یا معذور کس پر ناستي هم قدرت نه لري. نو په پروته یا پر بغل دي په اشاره لمونځ وکړي، په پورته د لمونځ کولو صورت دا دی چي ستوني سڅخ پرېوځي او خپل دواړي پښې د قبلې وطرف ته کړي، زموږ په هیواد (افغانستان) کي قبله د مغرب وطرف ته ده نو ددې مریض سر به د مشرق وطرف ته وي او پښې به یې د مغرب وطرف ته وي. او پر بغل د پرېوتلو صورت دا دی چي د شمال وطرف ته سر کړي په راسته اړخ باندي پرېوځي. یا د جنوب و طرف ته سر کړي په چپه اړخ باندي پرېوځي. لېکن ستوني سڅخ پرېوتل اولیٰ او افضل دي. او د هغه تر سر لاندي دي یو بالښت کښېږدي، ددې لپاره چي مخ یې د قبلې وطرف ته سي. نه د آسمان وطرف ته او ددې لپاره چي د رکوع او سجدې لپاره اشاره کول هم ممکن سي؛ ځکه بغیر له بالښت څخه روغ سړی هم اشاره نه سي کولای مریض خو پرېږده!!!. او که څه قدرت لري. نو دواړه زنګونان دي هم ودروي. ددې لپاره چي پښې یې د قبلې وطرف ته را نه سي؛ ځکه دا فعل بېله ضرورته مکروه تنزیهي دی او که قدرت یې نه وي، نو پښې دي وغوړوي. (شفاء الارواح)

﴿۴۲۰﴾ وَإِنْ تَعَذَّرَ الْإِيْمَاءُ او که ناممکنه سي (يامشکله سي) اشاره کول (يعني په اشاره هم لمونځ نـ سي کولای) أُخِّرَتْ عَنْهُ مَا دَامَ يَفْهَمُ الْخِطَابَ نو له ده څخه به لمونځ مؤخر کيږي (يعني نه ده څخه لمانځه فرضيت ساقطيږي) تر دې چې هغه په خبره (الهي خطاب) پوه سي قَالَ فِي الْهِدَايَةِ: هُوَ الصَّحِيْحُ په هدايه کي يې ويلي دي: همدا صحيح ده وَجَزَمَ صَاحِبُ الْهِدَايَةِ فِي "التَّجْنِيْسِ وَالْمَزِيْدِ" بِسُقُوْطِ الْقَضَاءِ إِذَا دَامَ عَجْزُهُ عَنِ الْإِيْمَاءِ أَكْثَرَ مِنْ خَمْسِ صَلَوَاتٍ او قطعي فيصله يې کړې ده (ټينګه رڼايې کړې ده) صاحب د هدايې (په خپل کتاب) "التجنيس والمزيد" کي د قضاء د ساقطېدلو (لمونځ معاف کېدلو) کله چي باقي پاته سي دانسان عاجزه کېدل له اشاره کولو څخه تر پنځو لمنځونو زيات وَإِنْ كَانَ يَفْهَمُ الْخِطَابَ که څه هم هغه په خبره پوهيږي وَصَحَّحَهُ قَاضِيْخَان او قاضي خان همدا صحيح بللي دي وَمِثْلُهُ فِي الْمُحِيْطِ او همداسي په محيط کي (ذکر سوي) دي وَاخْتَارَهُ شَيْخُ الْإِسْلَامِ وَفَخْرُ الْإِسْلَامِ او شيخ الاسلام او فخر الاسلام همدا اختيار کړي (خوښ کړي) دي وَقَالَ فِي الظَّهِيْرِيَّةِ: هُوَ ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ وَعَلَيْهِ الْفَتْوٰى او په ظهيريه کي يې ويلي دي: همدا ظاهر روايت دی او پر همدې فتویٰ ده وَفِي الْخُلَاصَةِ: هُوَ الْمُخْتَارُ او په خلاصه کي (ذکر سوي) دي: همدا مختار قول دی وَصَحَّحَهُ فِي الْيَنَابِيْعِ وَالْبَدَائِعِ او په ينابيع او بدائع کي يې همدا صحيح بللي دي وَجَزَمَ بِهِ الْوَلْوَالِجِيُّ او پر همدې قطعي فيصله کړې ده ولوالجي رَحِمَهُمُ اللهُ الله تعالیٰ دي پر دوی (ټولو) رحم وکړي.

**لغات:** ﴿ما دام﴾ له افعال ناقصه وو څخه دی، د خپل مابعد والا فعل يا حکم تر بقاء پوري د ما قبل فعل پر نفي يا اثبات باندي دلالت کوي، لکه، لاأجلس مادمت قائما، زه نه کښېنم تر څو چي ته ولاړ يې. ﴿الخطاب﴾ خبري. ﴿جزم﴾ د ضرب د باب ماضي ده، قطعي کرځول، قطعي فيصله کول.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي د يو چا مرض که دومره زيات سي چي په سر باندي د اشاره کولو قدرت يې هم نه وي، خو عقل او پوهه يې پر ځای وي چي په خبره پوهيږي، نو په هغه وخت کي له ده څخه د لمانځه فرضيت ساقطيږي او قضاء يې لازميږي، يعني په هغه وخت کي پر ده لمونځ

فرض نه پاتېږي او د سترګو يا وروځو يا زړه په اشاره سره د لمونځ کولو ضرورت نشته؛ ځکه د دې شيانو اشارې لره اعتبار نه دی ورکول سوی او وروسته پر هغه قضاء لازم ده، برابره ده مرض له پنځو نمځونو څخه زيات وخت پاته سوی وي او که کم وخت پاته سوی وي (په هر صورت کي پر دې مريض د هغه لمنځونو قضاء لازم ده).

وجزم إلخ: يعني صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په خپل کتاب "التجنيس والمزيد" کي ليکلي دي چي که مرض دومره زيات سي چي په سر د اشاره کولو قدرت هم پاته نه سي، نو برابره ده عقل پر ځاى پاته وي، که نه، که چيري دا مرض له پنځو لمنځونو څخه زيات وخت پاته وي، نو پر دې مريض د هغه لمنځونو قضاء لازم نه ده، او که مرض يې له دې څخه کم پاته سوی وي، نو قضاء لازم ده، ځرنګه چي "التجنيس والمزيد" صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله له هدايې څخه وروسته ليکلی دی، نو ځکه علامه طحطاوي رَحِمَهُ الله فرمايي چي کوم قول په "التجنيس والمزيد" کي دی، هغه لره به اعتبار وي. (شفاء الارواح)

﴿۴۲۱﴾ وَلَمْ يُؤْمِ بِعَيْنِهِ وَقَلْبِهِ وَحَاجِبِهِ او اشاره دې نه کوي په خپل سترګه او زړه او وروځي سره.

**لغات:** ﴿لم يؤم﴾ د افعال له بابه د جحد نفي بلم صيغه ده، مصدر: إيماء: اشاره کول. ﴿حاجب﴾ د سترګو وروځه، د سترګو د پاسه وربښتان.

**تشريح:** که يو څوک په سر هم اشاره نه سي کولای، نو هغه ته به د سترګو يا د زړه يا د وروځو په اشاره سره د لمونځ کولو حکم نه ورکول کيږي؛ ځکه د دې شيانو اشارې لره اعتبار نشته (لکه په تېر عبارت کي چي هم ذکر سوه)، لهذا د سترګو يا زړه يا وروځو په اشاره سره اداء سوی لمونځ غير معتبر دی.

## که پر درېدلو قادر وي خو رکوع او سجده نه سي کولای، نو څه حکم دی؟

﴿۴۲۲﴾ وَإِنْ قَدَرَ عَلَى الْقِيَامِ وَعَجَزَ عَنِ الرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ او که قادر وي (قدرت لري) په ولاړه باندي او عاجزه وي له رکوع او سجدې څخه صَلَّى قَاعِدًا بِالْإِيْمَاءِ نو لمونځ دې په ناسته په اشاره سره وکړي.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي که يو څوک داسي مريض وي چي په قيام (ولاړه) باندي قادر وي لېکن په رکوع او سجده کولو باندي قادر نه وي، يا صرف په سجده باندي قادر نه وي، نو د هغه لپاره په ولاړه لمونځ کول لازم نه دي، بلکي هغه دې په ناسته په اشاره سره لمونځ وکړي. همدا افضل

دي او که په ولاړه په اشاره سره لمونځ وکړي، نو بيا هم جائز دي (داسي کس پر کُرسی اچوکی ا باندي په ناستي سره هم په اشاره لمونځ کولای سي). (شفاء الارواح، انوار الايضاح)

## که روغ کس د لمانځه په دوران کي مريض سي؟

﴿۴۲۳﴾ وَإِنْ عَرَضَ لَهُ مَرَضٌ او که پېښ سي لمونځ گزار ته (په لمانځه کي) يو مرض يُتِمُّهَا بِمَا قَدَرَ نو پوره دي کړي لمونځ په داسي توگه چي د هغه قدرت لري (يعني په هر ډول چي د لمونځ په پوره کولو باندي قدرت لري. هغسي دي يې پوره کړي) وَلَوْبِالْإِيْمَاءِ که څه هم په اشاره سره وي فِي الْمَشْهُوْرِ د مشهوره قول مطابق.

**لغات:**﴿عرض﴾ د ضرب د باب ماضي ده: پېښېدل، مثلاً: عَرَضَ لِفُلَانٍ أَمْرٌ و عَرَضَ لَهُ عَارِضٌ: فلانکي ته يو خبره يا يو ضرورت پېښ سو.

**تشريح:** يعني که چوړاو روغ کس د لمانځه څه حصه په ولاړه اداء کړي، بيا د لمانځه په دوران کي داسي مرض او عذر ورته پېښ سي چي د قيام (درېدلو) قدرت يې ختم سي او نور لمونځ په ولاړه نه سي کولای، مثلاً يو رگ يې بې ځايه سي، نو اوس پاته لمونځ چي څرنګه ممکنه وي. هغسي دي يې پوره کړي، که په رکوع او سجده کولو باندي قدرت لري، نو پاته لمونځ دي په ناستي په رکوع او سجده سره پوره کړي، او که په رکوع او سجده باندي يې هم قدرت نه وي، نو په ناستي دي په اشاره سره لمونځ پوره کړي او که پر ناستي هم قدرت نه لري، نو ستوني ستغ دي په اشاره سره لمونځ پوره کړي. (شفاء الارواح)

## که په ناسته لمونځ کونکی د لمانځه په دوران کي روغ سي؟

﴿۴۲۴﴾ وَلَوْصَلّٰى قَاعِدًا يَـرْكَعُ وَيَسْجُدُ او که لمونځ کوي په ناستي (او) رکوع او سجده کوي (يعني که يو چا د عذر په وجه په ناستي په رکوع او سجده سره لمونځ شروع کړی وي) فَصَحَّ بيا (د لمانځه په دوران کي) روغ (جوړ) سي بَنٰى نو بناء دي وکړي (يعني هغه لمونځ دي له سره نه شروع کوي. بلکي د هغه لمانځه پاته حصه دي په ولاړه پوره کړي).

**تشريح:** که څوک د عذر په وجه په ناستي په رکوع او په سجده سره لمونځ کوي، بيا د لمانځه په دوران کي روغ سي او په قيام باندي قادر سي، نو داسي کس دي پاته لمونځ پر هغه مخکيني لمانځه بناء کړي يعني پور ته دي سي او پاته لمونځ دي په ولاړه پوره کړي. (شفاء الارواح)

## که په اشاره سره لمونځ کونکی روغ سي؟

﴿۴۲۵﴾ وَلَوْكَانَ مُؤْمِيًا او که اشاره کونکی وي (یعني په اشاره سره یې لمونځ شروع کړی وي. بیا په لمانځه کي روغ سي) لَا نو نه (سي کولای بناء. بلکي له نوي سره به لمونځ کوي).

**تشریح**: که څوک د عذر په وجه رکوع او سجده په اشاره سره کوي، بیا د لمانځه په دوران کي روغ سي او په رکوع او سجده کولو باندي قادر سي، نو په دې صورت کي به بناء نه کوي، بلکي له نوي سره به لمونځ کوي. (شفاء الارواح)

## د لیوني او بېهوښه کس د لمنځونو حکم

﴿۴۲۶﴾ وَمَنْ جُنَّ أَوْ أُغْمِيَ عَلَيْهِ خَمْسَ صَلَوَاتٍ او څوک چي لیونی یا بې هوښه سي تر پنځو لمنځو پوري قَضٰى نو (د هغو) قضاء به راوړي وَلَوْأَكْثَرَ او که زیات سي (یعني که لیونتوب او بې هوښي یې د پنځو لمنځونو له وخت څخه واوړي) لَا نو نه (به یې راوړي قضاء).

**لغات**: ﴿جُنَّ﴾ د ضرب د باب ماضي مجهوله ده: عقل زائلېدل (عقل کار پرېښودل)، لیونی کېدل. ﴿أُغمِیَ﴾ د افعال د باب ماضي مجهوله ده: بې هوښه کېدل (بېهوښي)، چي په هغه کي د انسان قواوي کمزوري کېږي او عقل مغلوبېږي.

**تشریح**: که د یو چا عقل زائل سي، لیونی سي، یا بېهوښه سي او دا د لیونتوب یا بېهوښۍ حالت پنځه لمنځونه (یعني څلور ویشت ساعته) یا تر هغه کم وخت پاته سي او بیرته جوړ سي، نو پر هغه د دې لمنځونو قضاء لازم ده. او که له پنځو لمنځونو (څلورویشتو ساعتو) څخه زیات وخت پاته سي، نو پر هغه د دې لمنځونو قضاء نسته؛ ځکه د حرج په سبب له هغه څخه ساقط سول.



## که مریض د لمانځه رکعتونه او سجدې یاد نه سي ساتلای؟

**مسئله**: که د یو چا حافظه دومره کمزوري سي او دې حالت ته ورسېږي چي هغه ته د رکعتونو او سجدو شمېر یاد نه وي او د بېهوښۍ غوندي کیفیت باندي طاري وي، نو پر هغه د لمانځه اداء کول لازم نه دي، خو بیا هم که په لمونځ کولو کي یو څوک د هغه سره مرسته وکړي، نو اُمید سته چي د هغه لمونځ به صحیح سي. (کتاب المسائل ص ۵۳۶، در مختار مع الشامي ج ۲، ص: ۲۹۸)



# فَصْلٌ فِيْ إِسْقَاطِ الصَّلَاةِ وَالصَّوْمِ

(دا) فصل دی په (بیان د) ساقطېدلو (معاف کېدلو) کې د لمانځه او روژې

**تشریح**: په دې فصل کې مصنف رَحِمَهُ الله هغه مسئلې بیانول غواړي چې په هغوی کې له مکلف شخصه لمونځ او روژه ساقطیږي.

﴿۴۷﴾ إِذَا مَاتَ الْمَرِيْضُ کله چې مریض مړ سي وَلَمْ يَقْدِرْ عَلَى الصَّلٰوةِ بِالْإِيْمَاءِ حال دا چې هغه قادر نه وي په اشاره سره پر لمونځ کولو (یعني په اشاره سره هم لمونځ نه سي کولای) لَا يَلْزَمُهُ الْإِيْصَاءُ بِهَا نو لازم نه دي پر هغه وصیت کولو دې (قضائي) لمنځونو وَإِنْ قَلَّتْ که څه هم هغوی لږ وي وَكَذَا الصَّوْمُ إِنْ أَفْطَرَ فِيْهِ الْمُسَافِرُ وَالْمَرِيْضُ او همدارنګه روژه ده چې که یې نه ونیسي په رمضان کې مسافر او مریض وَمَاتَا قَبْلَ الْإِقَامَةِ وَالصِّحَّةِ او (بیا) دوی مړه سي له مقیم کېدلو او روغېدلو (روغتیا) څخه مخکې.

**تشریح**: که یو څوک دومره مریض سي چې د سر په اشاره سره هم په لمونځ کولو قدرت نه لري او په همدې مرض کې مړ سي، یا دومره مریض وي چې د روژې نیولو قدرت نه لري او په همدې حالت کې مړ سي. یا یو څوک د دومره سفر په اراده سره ووځي چې په شریعت کې د هغه لپاره د روژې نه نیولو اجازه دي او بیا له مقیم کېدلو څخه مخکې مړ سي، نو اوس پر دې ټولو کسانو د لمانځه او روژو قضاء نه لازمیږي: ځکه پر دوی قضاء هغه وخت واجبیږي کله چې د مرض او سفر له ختمېدو څخه وروسته دومره وخت ومونده چې په هغه کې قضائي لمنځونه او روژې اداء کولای سي. خو دلته حالت دا دی چې دوی ته د قضاء وخت بالکل نه دی ترلاسه سوی. نو ځکه پر دوی نه قضاء سته او نه وصیت کول باندې لازم دي. ها! که مریض روغ سي، یا مسافر مقیم سي، بیا مړه سي، نو بیا پر دوی قضاء لازمیږي، مثلاً که له روغېدو یا له مقیم کېدلو څخه وروسته دومره ورځې ژوندی پاته سي، د څومره ورځو لمنځونه او روژې چې څنې قضاء سوي وي. نو د ټولو قضائي لمنځونو او روژو قضاء راوړل باندې لازمیږي. او که یو څو ورځې ژوندی پاته سي. نو د هغه ورځو یعنې د روغتیا او اقامت د ورځو په اندازه د لمنځونو او روژو قضاء راوړل باندې لازمیږي. (انوار الایضاح)

﴿۲۸﴾ وَعَلَيْهِ الْوَصِيَّةُ بِمَا قَدَرَ عَلَيْهِ وَبَقِيَ بِذِمَّتِهِ او پر ده لازم دي وصيت کول د هغه مقدار پر کوم چي دئ قادر وي او د ده پر ذمه باقي پاته سوی وي فَيُخْرِجُ عَنْهُ وَلِيُّهُ مِنْ ثُلُثِ مَا تَرَكَ نو باسي به د ده ولي (سرپرست) د ده له طرفه د هغه مال (ميراث) له درېيمي حصې څخه کوم چي ده پرې ايښی وي لِصَوْمِ كُلِّ يَوْمٍ وَلِصَلَاةِ كُلِّ وَقْتٍ حَتَّى الْوِتْرِ نِصْفَ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ أَوْ قِيمَتَهُ دهري ورځي د روژې او د هر يوه وخت د لمانځه په بدله کي تر دې چي د وترو په بدله کي (هم) نيم صاع د غنمو يا د هغه قيمت.

**لغات** ﴿وصية﴾ لغوي معنیٰ يې ده: نصيحت، او په اصطلاح کي هغه کار ته ويل کيږي چي انسان يې پر خپل مرګ معلق کوي چي مثلاً زما تر مرګ وروسته داسي وکړئ! (انوار الايضاح).

﴿ولي﴾ سرپرست، مشر ميراث خور، ﴿صاع﴾ داوسني وخت په اعتبار د پاکستاني کېلو په حساب سره يو صاع درې کېلو او ۱۴۹ ګرامه او ۲۸۰ ملي ګرامه کيږي، يا په بله وينا دا چي څه د پاسه درې کېلو (او ځيني علماؤ د آسانۍ لپاره درې کېلو ليکلي دي)، نو نيم صاع يو نيم کېلو او ۷۴ ګرامه او ۱۴۰ ملي ګرامه کيږي يعني څه د پاسه يو نيم کېلو. خو په فديه کي دي احتياطاً پاو کم يو کېلو يا دوه کېلو غنم ورکوي (ځکه غنم د خرما، کشمشو او داسي نورو په نسبت ډېر ارزانه پرېوځي، نو په غنمو سره د فديه ورکولو په وخت کي دي احتياطاً څه زيات وبه کوي).

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي که يو څوک د عذر په وجه روژې نه ونيسي مثلاً مريض يا مسافر کس روژې نه ونيسي او بيا دا مريض روغ سي، يا مسافر مقيم سي او دوی دومره زمانه ومونديدي چي په هغه کي د دې روژو قضاء راوړلای سي، لېکن بيا يې هم قضاء نه راوړي، نو اوس پر دوی واجب دي چي د روژو د فديې وصيت وکړي، او همدا حکم د هغه کس لپاره هم دی کوم چا چي بغير له څه عذره محض د سُستۍ په وجه روژې نه وي نيولي، اُميد سته چي رب تعالیٰ په خپل فضل سره د هغه فديه قبوله کړي (ايضاح الاصباح)، او فديه به د هغه ولي او وارث (ميراث خور) د هغه د ميراث له ثلث (درېيمي حصې) څخه اداء کړي او د هري روژې په عوض کي دي نيم صاع غنم يا د هغه بازاري قيمت ورکړي. همدارنګه د هر قضايي لمانځه مع الوتر په عوض کي دي نيم صاع غنم يا د هغه بازاري قيمت ورکړي. (نيم صاع د پاکستاني کېلو په حساب سره څه د پاسه يو نيم کېلو کيږي احتياطاً پاو کم دوه کېلو. يا احتياطاً دي دوه کېلو ورکړي چي سر کال د روژې په مياشت کي د دوه کېلو قيمت ۱۲۰ کلداري کيږي، نو د هري روژې په عوض کي دي ۱۲۰ کلداري فديه ورکړي. او صدقة فطر لپاره هم نصف صاع کيږي چي د هغه حساب اوس بيان سو).

احقر حبيب الرحمن مدني
غفر الله له ولوالديه
۱۳/رمضان/ ۱۴۴۲ هـ

﴿۲۹﴾ وَإِنْ لَمْ يُوصِ او که ده وصیت نه وي کړی وَتَبَرَّعَ عَنْهُ وَلِيُّهُ او داحسان په توګه (له څانه) یې اداء کړي د ده له طرفه د ده ولي جَازَ نو جائز دي.

**لغات:** ﴿تبرع﴾ د تفعّل د باب مصدر دی؛ غیرِ واجب شی اداء کول. غیرِ لازم کار کول. داحسان په توګه یو شی اداء کول. بلا عوضه یو شی ورکول.

**تشریح:** یعني که مړکېدونکی کس وصیت نه وي کړي، خو وارثان (میراث خوره) له خپل طرفه د احسان په توګه د هغه د قضائي روژو او لمنځونو فدیه اداء کړي، نو جائز دي. او اُمید سته چې رب تعالیٰ په خپل فضل سره د دوی دا فدیه قبوله کړي.

﴿۳۰﴾ وَلَا يَصِحُّ أَنْ يَصُومَ وَلَا أَنْ يُصَلِّيَ عَنْهُ او صحیح نه ده چې روژه ونیسي او نه دا(صحیح دي) چې لمونځ وکړي د مړي له طرفه.

**تشریح:** یعني د ولي لپاره دا صحیح نه دي چې د خپل مړي له طرفه لمنځونه یا روژې وکړي؛ ځکه لمونځ او روژه خالص بدني عبادتونه دي چې په هغوی کې نیابت (نائب والی) جائز نه دی (یعني په هغوی کې یو څوک د بل چا له طرفه نه سي نائب کېدلای). لهذا د میّت له طرفه د لمانځه او روژې په اداء کولو سره د میّت له غاړې څخه هغه فرض نه ساقطیږي. (شفاء الارواح)

﴿۳۱﴾ وَإِنْ لَمْ يَفِ مَا أَوْصَى بِهِ عَمَّا عَلَيْهِ او که چیرې پوره نه سي (کافي نه سي) هغه مال د کوم چې مړي وصیت کړی دی د هغو فدیو له طرفه (کافي نه سي) کوم چې پر مړي واجب دي يَدْفَعُ ذٰلِكَ الْمِقْدَارَ لِلْفَقِيرِ نو (حیله دا ده چې) ولي دې هغه مقدار (کوم چې د ده سره موجود دی) فقیر ته ورکړي فَيَسْقُطُ عَنِ الْمَيِّتِ بِقَدْرِهِ نو ساقطیږي له مړي څخه د هغه په اندازه فدیه ثُمَّ يَهَبُهُ الْفَقِيرُ لِلْوَلِيِّ بیا دې فقیر هبه کړي هغه مال و ولي ته وَيَقْبِضُهُ ثُمَّ يَدْفَعُهُ الْوَلِيُّ لِلْفَقِيرِ او قبضه دې کړي (وادې خلې) ولي هغه مال بیا دې یې فقیر ته ورکړي وَهٰكَذَا حَتَّى يَسْقُطَ مَا كَانَ عَلَى الْمَيِّتِ مِنْ صَلٰوةٍ وَصِيَامٍ او همداسې دې کوي تر دې چې ساقط سي هغه لمنځونه او روژې کوم چې پر مړي واجب وه.

**لغات:** ﴿لم يف﴾ د ضرب له بابه د جحد صيغه ده، مصدر: وفاءٌ: پوره کول، پوره کېدل، کافي کېدل.
﴿أوصٰى﴾ د افعال د باب ماضي ده: وصيت کول، يو څوک خپل وصي او ځای ناستی جوړول. ﴿يَهَبُ﴾ د فتح
د باب مضارع ده: هبه کول، بېله عوضه (مفت) ورکول. ﴿يَهَبُ لِمَنْ يَشَاءُ إِنَاثًا وَيَهَبُ لِمَنْ يَشَاءُ الذُّكُورَ﴾ (الشورى، ۴۹).
﴿هٰكذا﴾ له هاء "هٰ" او "كذا" څخه مرکب دی، په "كذا" کې کاف د تشبيه دی او "ذا" اسم اشاره ده په معنی سره
د("مثل"، "همداسي")، او کله بيا پر دې هاء د تنبيه هم داخليږي يعني "هكذا" لکه دلته په عبارت کې.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چې که د مړي ميراث دومره نه وي چې د هغه ټوله فديه په اداء کړل سي، نو څومره مال چې د ولي سره وي، هغه دې فقير ته ورکړي، مثلاً دومره وي چې صرف د څلورو لمنځونو فديه په اداء کېدلای سي، نو دا مال چې کله ته فقير ته ورکول سي، نو د مړي له طرفه د څلورو لمنځونو فديه اداء سوه، بيا دې فقير له خپل طرفه هغه مال ولي ته هبه کړي او ولي دې پر هغه قبضه وکړي او دويم وار دې يې فقير ته ورکړي، نو د مړي له طرفه بيا د نورو څلورو لمنځونو فديه اداء سوه، لنډه دا چې فقير او ولي دې يو بل ته داسي ورکړه راکړه جاري وساتي تر دې چې (په همدې توګه) ټوله کفاره پوره سي. (شفاء الارواح)

﴿ ۸۳ ﴾ وَيَجُوزُ إِعْطَاءُ فِدْيَةِ صَلَوَاتٍ لِوَاحِدٍ جُمْلَةً او جائز دي د څو لمنځونو فديه ورکول يوه کس ته پر يوه ځای بِخِلَافِ كَفَّارَةِ الْيَمِيْنِ په خلاف د قسم د کفارې وَاللهُ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى أَعْلَمُ او الله تعالیٰ پاک دی، لوړ شان والا دی او ډېر ښه علم والا (خبردار) دی.

**لغات:** ﴿إعطاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: ورکول، ﴿جملةً﴾ د دې لفظ څو معناوي نقل سوي دي: ټوله، پر يوه ځای (مجتمعًا)، يقولون: اشتراه جملةً. أي مجتمعًا، غير مفرّق. (معجم لغة الفقهاء)

**تشريح:** يعني د ټولو لمنځونو او روژو فديه يوازي يوه فقير ته پر يوه ځای ورکول جائز دي (او که ټوله فديه د نصاب له مقدار څخه زياته وي، نو فديه خو اداء کېږي، لېکن داسي کول مکروه تحريمي دي)، او د قسم (يمين) د کفارې د روژو په فديه کي يوه فقير ته له يوې فديې (نصف صاع) څخه زيات نه سي ورکولای؛ ځکه د قسم په کفاره کي الله تعالیٰ د عدد صراحت کړی دی: ﴿فَكَفَّارَتُهُ إِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسَاكِينَ...﴾، او همدا حکم د کفارهٔ ظهار دی چې په قرآن کي د عدد صراحت پکښي سوی دی: ﴿فَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَإِطْعَامُ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا﴾. (شفاء الارواح، انوار الايضاح)



# بَابُ قَضَاءِ الْفَوَائِتِ

(دا) باب د پاته سوو لمنځونو د قضاء (په بیان کي) دی

(یا په بله وینا "دا باب د قضائي لمنځونو د راګرځولو په بیان کي دی)

**تشریح:** صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د "قضاء المتروکات" پر ځای "قضاء الفوائت" وویل: ځکه چي د مؤمن له شان څخه دا خبره لیري ده چي هغه قصداً لمونځ پرېږدي. کله نا کله د خوب، هېري وغیره په وجه له هغه څخه لمونځ فوت سي.

د **"قضاء" تعریف:** کوم شی چي اولاً واجب سوی وي، هغه له خپل تاکلي وخت څخه وروسته خپل مستحق ته سپارل، دې ته قضاء وایي. (انوار الایضاح)

﴿۵۳﴾ اَلتَّرْتِیْبُ بَیْنَ الْفَائِتَةِ وَالْوَقْتِیَّةِ وَبَیْنَ الْفَوَائِتِ مُسْتَحَقٌّ ترتیب په مینځ کي د فوت سوي (قضائي) لمانځه او وقتي لمانځه او (په مینځ کي) د فوت سوو (قضائي) لمنځونو لازم دی.

**لغات:** ﴿ترتیب﴾ د تفعیل د باب مصدر دی چي د هغه معنیٰ ده: ثابتول، هر شی د خپلي مرتبې په لحاظ سره (پر ځای) ایښوول، همدا مفهوم دلته دی چي لمنځونه د هغوی د وختونو د ترتیب په لحاظ سره اداء کول. ﴿فائتة﴾ د نصر له بابه د مؤنث اسم مفعول صیغه ده: فوت سوی لمونځ (کوم چي په خپل وخت کي نه وي اداء سوی)، یا په بله وینا: قضاء سوی لمونځ (قضائي لمونځ)، جمع: فَوَائِت. ﴿مُستحَق﴾ د استفعال له بابه مفعول دی: مستحق سوی، واجب او لازم.

**تشریح:** د عبارت تر حل مخکي اولاً "صاحبِ ترتیب" تعریف وپېژنئ!. صاحب ترتیب هغه کس دی چي پر هغه هیڅ قضائي لمونځ پاته نه وي، یا صرف پنځه یا تر دې کم لمنځونه د هغه پر نمه پاته وي، برابره ده هغه لمنځونه نوي (قضاء سوي) وي یا پخواني وي یا دواړه ډوله وي. لهذا که د یو کس پر نمه شپږ یا تر دې زیات قضائي لمنځونه وي، نو هغه کس صاحبِ ترتیب نه پاتېږي.

د عبارت حاصل دا دی چي د صاحبِ ترتیب کس لپاره د قضائي لمنځونو په اداء کولو کي د ترتیب خیال ساتل ضروري دي، یعني کوم لمونځ چي اول ځني قضاء سوی وي، هغه به اول راګرځوي او بیا به تر هغه وروسته والا لمونځ راګرځوي، همدارنګه د صاحبِ ترتیب لپاره دا هم ضروري ده چي اول قضائي لمنځونه اداء کړي، بیا وقتي، کنې وقتي لمونځ یې نه صحیح کېږي، دویم وار به یې کوي. په متن کي له "فوائت" څخه مراد تر شپږو کم لمنځونه دي. او کوم څوک چي

صاحبِ ترتیب نه وي (یعني شپږ یا تر دې زیات لمنځونه ځني قضاء سوي وي)، د هغه لپاره په ترتیب سره قضاء راوړل واجب نه دي، بلکي هغه ته اختیار دی چي هر لمونځ وغواړي، هغه دي اول راوګرځوي.

## ترتیب په کومو شیانو سره ساقطیږي؟

﴿۴۳﴾ وَیَسْقُطُ بِأَحَدِ ثَلَاثَةِ أَشْیَاءَ او ساقطیږي ترتیب په یوه د دریو شیانو سره ضِیْقُ الْوَقْتِ الْمُسْتَحَبِّ فِي الْأَصَحِّ (۱) د (لمانځه) مستحب وخت تنګېدل، د صحیح ترین قول مطابق.

**لغات:** ﴿ضیق﴾ د ضرب د باب مصدر دی: تنګېدل (تنګ کېدل).

**تشریح:** په تېره مسئله کي ذکر سوه چي د قضائي او وقتي لمانځه په مینځ کي ترتیب واجب دی. اوس دلته هغه شیان بیانوي چي د هغوی په وجه ترتیب ساقطیږي. یعني که له دغه لاندیني دریو شیانو څخه یو شی موجود سي، نو ترتیب واجب نه پاتیږي، بلکي په داسي صورت کي به اول وقتي لمونځ کوي، بیا به تر هغه وروسته قضائي لمونځ کوي.

①... د وخت د تنګی په وجه د قضائي او وقتي لمانځه په مینځ کي ترتیب ساقطیږي. لهذا که وخت تنګ سي او د دې خبري بېره وي چي که د قضائي لمانځه په راګرځولو مشغوله سم، نو وخت به ووځي، نو په داسي صورت کي دي اول وقتي لمونځ وکړي او تر هغه وروسته دي قضائي لمونځ وکړي.

هسي خو د اصل وخت تنګوالي لره اعتبار دی، نه د مستحب وخت، لېکن د مازیګر په وخت کي د شیخینو (امام ابو حنیفه او امام ابو یوسف) رَحِمَهُمَا الله په نېز اصل وخت لره اعتبار دی، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز مستحب وخت لره اعتبار دی او مصنف رَحِمَهُ الله د امام محمد رَحِمَهُ الله قول ته اصح ویلي دي، د دغه اختلاف ثمره په هغه صورت کي ښکاره کېږي کله چي له یو چا څخه د ماپښین لمونځ قضاء سي او د مازیګر په وخت کي په یاد ورسي او وخت صرف دومره پاته وي چي که هغه اول د ماپښین قضائي لمونځ راګرځوي او بیا د مازیګر لمونځ اداء کوي، نو د مازیګر لمونځ یا د هغه څه حصه به په مکروه وخت یعني د لمر د تغیّر (سور کېدو) په وخت کي واقع سي، نو د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز پر هغه ترتیب لازم دی چي اول دي د ماپښین لمونځ را وګرځوي بیا دي د مازیګر لمونځ اداء کړي، خو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز ترتیب ساقطیږي (ځکه د مازیګر لمونځ له خپل مستحب وخت څخه وځي او په مکروه وخت کي اداء کېږي)، نو ځکه اول دي د مازیګر لمونځ وکړي او بیا دي د ماپښین لمونځ را وګرځوي. دا اختلاف د یوه روایت پر بناء دی او په بل روایت کي خو د شیخینو او د امام

محمد رَحِمَهُ اللہ تولو په نېز اصل وخت لره اعتبار دی او اکثرو همدې ته صحیح ویلي دي. (شفاء الارواح بحوالة عمدة الفقه)

﴿۴۳۵﴾ وَالنِّسْيَانُ (۲) او هېره (چې قضائي لمونځ ځني هېر سي).

**تشریح:** (۲)... د هیرې په وجه هم ترتیب ساقطیږي چې د قضائي لمونځ ځني هېر وي، مثلاً د ماپښین د لمونځ کولو په وخت کي دا ځني هېره وي چې زما څخه د سهار لمونځ قضاء سوی دی او د ماپښین لمونځ وکړي، نو دا وقتي د ماپښین لمونځ صحیح کیږي، لیکن که د وقتي لمانځه تر سلام ګرځولو مخکي قضائي لمونځ ورته یاد سي او په وخت کي ګنجائش وي، نو پر هغه ترتیب لازمیږي او وقتي لمونځ فاسدیږي، نو اول به قضائي لمونځ راګرځوي، بیا به وقتي لمونځ کوي.

﴿۴۳۶﴾ وَإِذَا صَارَتِ الْفَوَائِتُ سِتًّا غَيْرَ الْوِتْرِ (۳) او کله چې وګرځي فوت سوي (قضائي) لمنځونه شپږ بغیر له وترو څخه (یعني په دې صورت کي هم ترتیب ساقطیږي کله چې له وترو څخه بغیر نور فرض قضاء سوي لمونځونه شپږو ته ورسیږي) فَإِنَّهُ لَا يُعَدُّ مُسْقِطًا ځکه وتر (د ترتیب) ساقطونکی نه شمېرل کیږي وَإِنْ لَزِمَ تَرْتِيبُهُ که څه هم د وترو خپل ترتیب لازم دی (چې د ماخوستن تر لمانځه وروسته کول لازم دي. مخکي کول یې جائز نه دي).

**تشریح:** (۳)... که قضاء سوي (فوت سوي) لمنځونه شپږو ته ورسیږي، نو هم ترتیب ساقطیږي، لهذا تر دې وروسته د قضائي لمنځونو او وقتي لمانځه په مینځ کي ترتیب واجب نه پاتیږي، مثلاً له یو چا څخه دیوې ورځې او شپې لمنځونه قضاء سي او په دا بله ورځ هم د سهار لمونځ ځني قضاء سي، نو اوس هغه صاحب ترتیب پاته نه سو، لهذا اوس د دې بلي ورځي د ماپښین وقتي لمونځ مخکي اداء کولای سي، لیکن د وترو لمونځ به په دې شپږو لمنځونو کي نه شمېرل کیږي، که څه هم د وترو او د ماخوستن د لمانځه په مینځ کي خپل ترتیب لازم دی او نه ساقطیږي چې د ماخوستن تر لمانځه وروسته او د سهار تر لمانځه مخکي به وتر اداء کول کیږي، لهذا که وتر ځني پاته سي، نو د سهار تر فرضو مخکي د هغوی اداء کول ضروري دي، که د یاد والي او د وخت د ګنجایش باوجود یې اداء نه کړي او د سهار لمونځ وکړي، نو نه صحیح کیږي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

## ساقط سوی ترتیب کله راګرځي؟

﴿۴۳۷﴾ وَلَمْ يَعُدِ التَّرْتِيبُ بِعَوْدِهَا إِلَى الْقِلَّةِ او ترتیب نه راګرځي په راګرځېدلو سره د قضائي لمنځونو د لږوالي وطرف ته (یعني د قضائي لمنځونو په لږېدلو سره ساقط سوی ترتیب بیرته نه لازمیږي).

**لغات:** ﴿لـم يعـد﴾ د نصـر لـه بابه د نفي صيغه ده، مصـدر: عَوْدًا: راګرځېدل، واپس کېدل، بحاله کېدل. ﴿القِلّة﴾ د ضرب له بابه اسم مصدر دی: لږوالی، لږ کېدل.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې کله د شپږو یا د زیاتو لمنځونو په وجه ترتیب ساقط سي، نو اوس په هغوی کي د بعضي لمنځونو په راګرځولو سره ترتیب بیرته نه را ګرځي، لهذا اوس چي کوم لږ لمنځونه پاته دي، د هغوی د یادوالي باوجود وقتي لمونځ کول جائز دي، مثلاً له یو چا څخه پنځلس لمنځونه قضاء سوي وي او بیا د هغوی قضاء راوړل شروع کړي، تر دې چې له پنځو څخه کم لمنځونه پاته سي، نو په دې سره هغه بیرته صاحب ترتیب نه ګرځي، بلکي اوس هم د دې پاته لږ لمنځونو له قضاء راوړلو څخه بغیر وقتي لمونځ کول صحیح دي، همدا اصح قول دی.

او د بعضي حضراتو په نیز ترتیب راګرځي، نو د هغو په نیز په پورتني صورت کي وقتي لمونځ پر پاته قضائي لمنځونو مخکي کول صحیح نه دي او صاحب د هدایې رَحِمَهُ اللہ همدې قول ته اظهر ویلي دي، او احتیاط په همدې کي دی چي (بیرته) ترتیب ثابت ومنل سي. (شفاء الارواح، ایضاح الاصباح)

﴿۴۳۸﴾ وَلَا بِفَوْتِ حَدِيْثَةٍ بَعْدَ سِتٍّ قَدِيْمَةٍ او نه (ترتیب راګرځي) د نوي لمانځه په فوت کېدو (قضا کېدو) سره تر شپږو پخوانیو قضائي لمنځونو وروسته (یعني چي تر پخواني شپږو قضائي لمنځونو څه موده وروسته یو بل نوی لمونځ قضاء سي، نو په هغه نوي قضائي لمانځه کي ترتیب بیرته نه راګرځي) عَلَى الْأَصَحِّ فِيْهِمَا د صحیح ترین قول مطابق په دواړو مسئلو کي.

**لغات:** ﴿حديثة﴾ مؤنث د حديثٌ ده: نوی، جمع: حِدَاثٌ وحُدَثَاءُ. ﴿قديمة﴾ مؤنث د قديمٌ ده: مخکینی، پخوانی. فيهما: په دې کي د تثنیه ضمیر مرجع دغه مذکوره مسئله او مخکینی مسئله ده.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چي که له یو چا څخه پخوا شپږ لمونځونه قضاء سوي وي او هغه یې تر اوسه راګرځولي نه وي او بیا څه موده وروسته یو بل لمونځ ځني قضاء سي، نو په دې صورت کي هم ترتیب نه راګرځي، مثلاً له یو کس څخه یو کال مخکي شپږ لمنځونه قضاء سوي وه کوم چي یې تر اوسه اداء کړي نه وه، اوس یو کال وروسته یو بل لمونځ مثلاً د سهار لمونځ ځني قضاء سو. نو څرنګه چي دغه کس له مخکي څخه صاحب ترتیب نه وو (ترتیب ځني ساقط وو)، نو ځکه په نوي قضاء سوي لمانځه کي هم ترتیب نه لازمیږي چي دا د سهار لمونځ به د ماپښین تر لمانځه مخکي راګرځوي، بلکي که د سهار د لمانځه له راګرځولو څخه بغیر د ماپښین لمونځ اداء کړي، نو صحیح کیږي. (شفاء الارواح)

## كه صاحبِ ترتيب ته قضائي (فوت سوی) لمونځ په ياد وي، نو څه حكم دی؟

﴿۲۹﴾ فَلَوْصَلّٰى فَرْضًا ذَاكِرًا فَائِتَةً وَلَوْ وِتْرًا نو كه اداء كړي يو فرضي لمونځ په داسي حال كي چي ورته ياد وي قضائي لمونځ كه څه هم هغه (قضائي لمونځ) وتر وي فَسَدَ فَرْضُهٗ فَسَادًا مَوْقُوْفًا نو فاسديږي د ده فرضي لمونځ په موقوف فساد سره (په موقوفه توګه فاسديږي) فَإِنْ خَرَجَ وَقْتُ الْخَامِسَةِ مِمَّا صَلَّاهُ بَعْدَ الْمَتْرُوْكَةِ ذَاكِرًا لَهَا بيا كه ووځي د پنځم لمانځه وخت له هغه لمونځونو څخه (يعني د هغه لمنځونو د پنځم لمانځه وخت ووځي) كوم چي ده اداء كړي وي له پرېښوول سوي (قضائي) لمانځه څخه وروسته په داسي حال كي چي هغه (پرېښوول سوی لمونځ) ورته ياد وي (په لنډه ورناداچي كه دغه كس د متروكه (قضائي) لمانځه د يادوالي په حالت كي د پنځو وختو لمنځونه اداء كړي) صَحَّتْ جَمِيْعُهَا نو ټوله لمنځونه يې صحيح كيږي فَلَا تَبْطُلُ بِقَضَاءِ الْمَتْرُوْكَةِ بَعْدَهٗ نو نه باطليږي (دا ادا كړل سوي لمنځونه) د متروكه لمانځه په قضاء راوړلو سره تر دې وروسته (يعني د پنځم لمانځه د وخت تر وتلو وروسته د متروكه (قضائي) لمونځ په قضاء راوړلو سره يا هغوی نه باطليږي) وَإِنْ قَضَى الْمَتْرُوْكَةَ قَبْلَ خُرُوْجِ وَقْتِ الْخَامِسَةِ او كه قضاء راوړي د متروكه لمانځه مخكي تر وتلو د پنځم لمانځه د وخت (يعني كه د پنځم لمانځه د وخت تر وتلو مخكي هغه قضائي لمونځ راوګرځوي) بَطَلَ وَصْفُ مَا صَلَّاهُ مُتَذَكِّرًا قَبْلَهَا نو باطليږي د هغه لمنځونو وصف (فرضيت) كوم چي يې اداء كړي وي تر متروكه (قضائي) لمانځه مخكي د متروكه لمونځ د يادوالي په حالت كي (يعني فرض نه پاتيږي) وَصَارَ نَفْلًا او هغوی (فرضي لمنځونه) نفل ګرځي.

**لغات:** ﴿ذاكرًا﴾ د نصر د باب فاعل دی: يادونكی (يادلرونكی)، مصدر: ذِكْرًا او ذُكْرًا: يادول، په ذهن كي راوستل. ﴿المتروكة﴾ د نصر له بابه مفعول دی: پرېښوول سوی لمونځ.

**تشريح:** دا د ترتيب په واجب كېدلو باندي تفريع ده، حاصل يې دا دی چي كه له يو صاحبِ ترتيب كس څخه يو لمونځ قضاء (فوت) سي كه څه هم د وترو لمونځ وي، او بيا د هغه د يادوالي باوجود وقتي لمونځ وكړي، نو هغه وقتي لمونځ د فسادِ موقوف په توګه فاسديږي، مثلاً يو صاحبِ ترتيب

کس د مازیګر لمونځ وکړي حال دا چي هغه ته یاد وي چي زما څخه د ماپښین لمونځ قضاء سوی دی او هغه مي تر اوسه نه دی کړی، نو د هغه دا د مازیګر لمونځ موقوفاً فاسدیږي.

فإن خرج إلخ: له دې ځایه د فساد موقوف (موقوفاً فاسدېدلو) مطلب ښیي چي د هغه حاصل دا دی چي داسي لمانځه ته به په قطعي توګه فاسد نه ویل کیږي، بلکي د یوه شکل په پیدا کېدلو باندي د هغه د فساد او صحت حکم موقوف کیږي، تفصیل یې دا دی چي دغه کس کوم چي صاحبِ ترتیب دی او له ده څخه یو لمونځ قضاء سو، بیا ده د هغه قضائي لمانځه د یادوالي باوجود وقتي لمنځونه جاري وساتله تر دې چي پنځه لمنځونه یې وکړه، نو څرنګه چي هغه صاحبِ ترتیب وو او د قضائي لمونځ له راګرځولو څخه بغیر یې وقتي لمنځونه وکړه، نو ځکه دا وقتي لمنځونه ټوله فاسد سوه، اوس ګواکي ټوله شپږ لمنځونه له ده څخه قضاء سوه، او کله چي قضائي لمنځونه شپږ سوه، نو په دې وجه ترتیب هم ساقط سو، او د دغه وقتي پنځو لمنځونو فساد (فاسدېدل) خو د ترتیب په وجه وو (چي ترتیب پکښي واجب وو)، حال دا چي اوس ترتیب ساقط سو، نو هغه فساد د ترتیب په ساقطېدلو سره ختم سو، نو ځکه اوس هغه پنځه وقتي لمنځونه صحیح سوه، او س پر ده صرف یو لمونځ کوم چي حقیقتاً قضاء سوی وو پاته سو.

او که دغه صاحبِ ترتیب کس د پنځو وقتي لمنځونو د وخت له پوره کېدلو څخه مخکي هغه یو قضاء سوی لمونځ را وګرځوي، نو اوس هغه اداء کړل سوي وقتي لمنځونه فرض نه پاتیږي. بلکي نفل ګرځي او هغوی ټوله به راګرځول کیږي (قضاء به یې راوړل کیږي)، مثلاً زید صاحبِ ترتیب دی او د سهار لمونځ ځني قضاء سو او زید د هغه له راګرځولو څخه بغیر وقتي لمنځونه کوله، تر دې چي د دویمي ورځي لمر راوختلی او زید هغه قضائي (د سهار) لمونځ د یادوالي باوجود په دې موده کي نه راوګرځوی، نو هغه ټوله وقتي لمنځونه صحیح کیږي او که د دویمي ورځي د لمر راختلو څخه مخکي زید په یو وخت کي مثلاً د ماخوستن یا ماښام په وخت کي هغه قضائي لمونځ راوګرځوي، نو اوس تر دې مخکي چي څومره وقتي لمنځونه یې کړي دي، هغه ټوله نفل ګرځي، نو هغوی به هم بیرته راګرځول کیږي.

## د قضائي لمنځونو نیت

﴿۴۰﴾ وَإِذَا كَثُرَتِ الْفَوَائِتُ او کله چي زیات سي فوت سي (قضائي) لمنځونه يَحْتَاجُ لِتَعْيِينِ كُلِّ صَلٰوةٍ نو محتاج دی د هر لمانځه و متعینولو ته (یعني په دې صورت کي د هر لمانځه و معلومولو ته احتیاج دی).

﴿۴۱﴾ فَإِنْ أَرَادَ تَسْهِيْلَ الْأَمْرِ عَلَيْهِ بیا که چیري وغواړي د دې کار آسانه کېدل پر خپل

ځان (چې دا د هر لمانځه متعینولو کار ورته آسانه سي) نَوىٰ أَوَّلَ ظُهْرٍعَلَيْهِ أَوْ آخِرَهٗ نو نیت دي وکړي د اول هغه ماپښین د لمانځه کوم چي پر ده (واجب) دی یا تر ټولو آخري د ماپښین د لمانځه.

**لغات:** ﴿تسهیل﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: کار آسانه کول.

**تشریح:** که قضاء سوي لمنځونه ډېر سي، نو د هغوی د قضاء راوړلو په وخت کي د وخت او ورځي تعیین ضروري دی چي د فلانکی ورځي فلانکی لمونځ راګرځوم، صرف دا نیت کول چي د سهار یا د ماپښین د لمانځه قضاء راوړم کافي نه دي، په داسي نیت کولو کي اشتباه ده، نو ځکه په را روان عبارت کي د دې لپاره یو آسانه طریقه بیانوي.

فإن أراد تسهيل الخ: یعني که پر یو چا ډېر وخت لمنځونه پاته وي، نو د هغوی د نیت آسانه طریقه دا ده چي مثلاً داسي نیت وکړي چي پر ما څومره د ماپښین لمنځونه دي (یا زما څخه چي څومره د ماپښین لمنځونه قضاء سوي دي) له هغوی څخه د اول یا د آخري ماپښین قضاء راوړم، په هر قضائي لمانځه کي دي همداسي نیت کوي، نو په همدې نیت سره به د هغه لمنځونه (په ترتیب سره) اداء کیږي.(انوار الایضاح، شفاء الارواح)

﴿۷۴۲﴾ وَكَذَا الصَّوْمُ مِنْ رَمَضَانَيْنِ او همداسي د دوو رمضانو روژې (متعینولو ته احتیاج دی) عَلَىٰ أَحَدِ تَصْحِيحَيْنِ مُخْتَلِفَيْنِ د یوې تصحیح مطابق له دوو مختلفو (بېلابېلو) تصحیح ګاڼو څخه (یعني له دوو مختلفو صحیح قولونو څخه د یوه صحیح قول مطابق د دوو رمضانو د روژو متعینول هم ضروري دي).

**تشریح:** یعني که له یو چا څخه د دوو رمضانو څه روژې قضاء سوي وي (لکه حائضه ښځه چي عموماً پر هغې د څو کلونو روژې پاته وي)، نو د هغوی د قضاء راوړلو په وخت کي هم تعیین ضروري دی چي د فلاني رمضان د روژو قضاء راوړم، دې قول ته (چي تعیین ضروري دی) علامه زیلعي رَحِمَهُ الله صحیح ویلي دي او د بعضو په نېز تعیین ته ضرورت نسته او دې قول ته په خلاصه کي صحیح ویل سوي دي، نو په دې توګه تصحیح مختلفه سوې ده.(شفاء الارواح، حاشیه)

﴿۷۴۳﴾ وَيُعْذَرُ مَنْ أَسْلَمَ بِدَارِ الْحَرْبِ او معذوره به ګڼل کیږي هغه کس کوم چي اسلام راوړی وي په دار الحرب کي بِجَهْلِهِ الشَّرَائِعَ (معذوره ګڼل کیږي) د خپل ناخبرۍ په وجه سره په شرعي احکامو (یعني له شرعي مسائلو څخه د ناخبرۍ په وجه به هغه معذوره شمېرل کیږي).

**لغات:** ﴿جهل﴾ د سمع د باب مصدر دی: ناخبره کېدل، ناواقف کېدل. ﴿شرائع﴾ جمع د شَرِیعَةٌ ده: د الهي احکامو مجموعه، اسلامي قانون.

**تشریح**: یعني که یو کس د کافرانو په ملک کې مسلمان سي او هلته داوسېدلو په وجه هغه ته د شرعي احکامو مثلاً د لمانځه، روژې، زکاة او داسې نورو علم او خبر نه وي، نو په دې وجه یې شرعي احکام اداء کړي نه وي، نو هغه معذوره شمېرل کیږي، تر څو چې دا کس هلته د کافرانو په ملک کې وي، د هغه ورځو د لمانځونو او روژو قضاء نه باندي لازمیږي، او که هغه په همدې حالت کې مړ سي. نو سبا د قیامت په ورځ به ان شاء الله نه مأخوذ کیږي، او دار الاسلام ته له راتګ څخه وروسته چې کوم لمانځونه او روژې ځني فوت سي، د هغوی قضاء باندي فرض ده. همدا حکم د هغه کس دی چې په داسې قبائلي او غرنی علاقه کې استوګن وي چې هلته د شرعي احکامو هیڅ ښوونکی او د زده کړې هیڅ لاره نه وي. (انوار الایضاح، شفاء الارواح بتغیر)



# بَابُ إِدْرَاكِ الْفَرِيضَةِ

(دا) باب د فرضي لمانځه د نیولو (په بیان کې) دی

## که د یوازې لمونځ کولو په وخت کې جماعت ودریږي؟

﴿۴۲﴾ **إِذَا شَرَعَ فِيْ فَرْضٍ مُنْفَرِدًا** کله چې شروع وکړي په یو فرضي لمانځه باندي یوازې **فَأُقِيمَتِ الْجَمَاعَةُ** بیا (په دې دوران کې) جماعت ودرول سي **قَطَعَ** نو (فرض) دې مات کړي (یعني هغه شروع کړی فرضي لمونځ دې پرېږدي) **وَاقْتَدَىٰ** او اقتداء دې وکړي (په امام پسې) **إِنْ لَمْ يَسْجُدْ لِمَا شَرَعَ فِيهِ** (په دې شرط) که چیرې یې سجده نه وي کړې د هغه لمانځه لپاره چې شروع یې په کړې ده **أَوْ سَجَدَ فِيْ غَيْرِ رُبَاعِيَّةٍ** یا یې سجده کړې وي په غیر څلور رکعتیز لمانځه کې (یعني سجده خو یې کړې وي. لیکن هغه څلور رکعتیز لمونځ نه وي).

**تشریح**: که یو چا یوازې (تنها) بغیر له جماعت څخه فرضي لمونځ شروع کړی وي او په همدې وخت کې هلته د همدې فرضو جماعت ودریږي، نو اوس دا یوازې لمونځ کونکی (منفرد) به څه کوي؟ په دې باره کې فقهاؤ څو صورتونه بیان کړي دي او په دغه عبارت کې صرف دوه صورتونه بیان سوي دي، نور صورتونه به په را روانو عبارتونو کې ذکر سي.

①... كه يوازي لمونځ كونكی (منفرد) د فرضو په اول ركعت كي وي او تر اوسه يې د هغه سجده نه وي كړې چي په همدې ځای كي د همدې فرضو جماعت ودريږي يعني امام تكبير تحريمه ووايي، نو هغه دي خپل لمونځ مات كړي (پريږدي) او په جماعت كي دي شريک سي، برابره ده هر فرضي لمونځ وي يعني برابره ده څلور ركعتيز وي لكه د ماپښين، مازيګر او ماخوستن لمونځ، يا دري ركعتيز يا دوه ركعتيز وي لكه د ماښام او سهار لمونځ، د ټولو همدغه حكم دی.

②... أو سجدة في غير رباعية: يعني دا پورتنی حكم په هغه صورت كي هم دی كله چي هغه (منفرد) د اول ركعت سجده كړې وي مثلاً په دويم ركعت كي وي او هغه څلور ركعتيز لمونځ نه وي، يعني د سهار يا ماښام لمونځ وي، نو هم دي هغه مات كړي (پريږدي) او په جماعت كي دي شركت وكړي. (شفاء الارواح)

﴿۳۵﴾ وَإِنْ سَجَدَ فِيْ رُبَاعِيَّةٍ او كه سجده يې كړې وي په څلور ركعتيز لمانځه كي ضَمَّ رَكْعَةً ثَانِيَةً نو ور سره يو ځای دي كړي دويم ركعت وَسَلَّمَ او سلام دي وګرځوي (پر دې دويم ركعت) لِتَصِيْرَ الرَّكْعَتَانِ لَهٗ نَافِلَةً ددې لپاره چي وګرځي دوه ركعته د ده لپاره نفل ثُمَّ اقْتَدٰى مُفْتَرِضًا بيا دي اقتداء وكړي (په امام پسي) د فرضو د اداء كولو لپاره.

**تشريح:** ③... په دې عبارت كي د دريم صورت بيان دی، دريم صورت دا دی چي كه څلور ركعتيز لمونځ وي (لكه د ماپښين، مازيګر او ماخوستن لمونځ)، او يوازي لمونځ كونكي (منفرد) د اول ركعت سجده كړې وي، نو فوراً دي لمونځ نه ماتوي بلكي دوه ركعته دي پوره كړي بيا دي سلام وګرځوي او په جماعت كي دي شريک سي، ددې لپاره چي دا دوه ركعته نفل سي او فرض په جماعت سره اداء سي، او كه تر اوسه يې د اول ركعت سجده نه وي كړې، نو فوراً دي په ولاړه سلام وګرځوي (يا په بله وينا په ولاړه دي په سلام سره لمونځ مات كړي) او په جماعت كي دي شريک سي.

﴿۳۶﴾ وإنْ صَلّٰى ثَلَاثًا او كه اداء كړي يې وي دري ركعته (په څلور ركعتيز فرضي لمانځه كي) أَتَمَّهَا نو هغه (څلور ركعته) دي پوره كړي ثُمَّ اقْتَدٰى مُتَنَفِّلًا إِلَّا فِي الْعَصْرِ بيا دي اقتداء وكړي (په امام پسي) د نفلو په نيت سره مګر (نه) د مازيګر په لمانځه كي.

**تشريح:** ④... په دې عبارت كي د څلورم صورت بيان دی او هغه دا چي كه په څلور ركعتيز لمانځه كي يې دري ركعته پوره كړي ولي چي په همدې دوران كي جماعت ودريږي، نو اوس دي خپل لمونځ نه ماتوي، بلكي هغه دي پوره كړي او وروسته دي د نفلو په نيت د امام سره شريک سي،

خو دا صورت د مازیګر په لمانځه کې نه سي کېدلای؛ ځکه د مازیګر تر لمانځه وروسته نفل کول منع دي.

﴿۵۶﴾ وَإِنْ قَامَ لِثَالِثَةٍ فَأُقِيمَتْ قَبْلَ سُجُوْدِهٖ او که ولاړ سي د درېیم رکعت لپاره بیا جماعت ودرول سي د ده تر سجده کولو مخکې قَطَعَ قَائِمًا بِتَسْلِيْمَةٍ فِي الْأَصَحِّ نو لمونځ دي مات کړي (پرېږدي) په ولاړي په یوه سلام سره، د اصح قول مطابق (یعني په ولاړه دي په سلام ګرځولو سره لمونځ ختم کړي).

**تشریح:** ⑤... پنځم صورت دا دی چي که منفرد په څلور رکعتیز لمانځه کي دوه رکعته پوره کړي وي او د درېیم رکعت لپاره ولاړ سوی وي او تر اوسه یې د درېیم رکعت سجده نه وي کړې چي په همدې دوران کي جماعت ودرېږي، نو حکم دا دی چي په ولاړي سلام وګرځوي (یعني په ولاړه دي په سلام سره لمونځ مات کړي) او په جماعت کي دي شریک سي.

**یادونه:** په مذکوره صورت کي دوېم قول دا دی چي په ولاړه دي سلام نه ګرځوي، بلکي هغه دي کښېني او په قعده (ناسته) کي دي سلام وګرځوي (یعني په ناسته دي په سلام سره لمونځ مات کړي) او په جماعت کي دي شریک سي، دا قول د شمسُ الائمه سرخسي رَحِمَهُ الله دی، او علامه فخر الاسلام رَحِمَهُ الله فرمایي چي په ولاړه دي په تکبیر ویلو سره په جماعت کي شریک سي، خو اصح او مفتیٰ به قول هغه دی کوم چي په تشریح کي ذکر سو چي هغه ته مصنف رَحِمَهُ الله اصح ویلي دي. (مراقی الفلاح ص، ۲۲۴۵)



## که د نفلو یا سنتو په دوران کي جماعت ودرېږي، نو څه حکم دی؟

**مسئله:** که یو څوک نفلي لمونځ یا سنت شروع کړي وي چي په همدې دوران کي لمونځ ودرېږي، نو د دې درې صورتونه دي: ① که چیري هغه تر اوسه دوه رکعته نه وي پوره کړي، نو فوراً دي لمونځ نه ماتوي بلکي دوه رکعته دي پوره کړي، بیا دي سلام وګرځوي او په لمانځه کي دي شریک سي. ②او که د نفلو یا سنتو د درېیم رکعت لپاره ولاړ سوی وي او تر اوسه یې د هغه سجده نه وي کړې، نو بیرته دي ناستي ته راوګرځي، سلام دي وګرځوي او په جماعت کي دي شریک سي. ③ او که د درېیم رکعت سجده یې هم کړې وي، نو بیا دي څلور سره رکعته پوره کړي او په جماعت کي دي شریک سي. (کتاب المسائل ص، ۳۸۹، در مختار مع شامي ج، ۲، ص، ۵۰۷)

## که د ماپښین د سنتو په دوران کې د ماپښین لمونځ یا د جمعې خطبه شروع سي؟

﴿۳۸﴾ وَإِنْ كَانَ فِيْ سُنَّةِ الْجُمُعَةِ فَخَرَجَ الْخَطِيْبُ او که د جمعې په سنتو کې وي او (په دې دوران کې) خطیب راووځي (راسي) أَوْ فِيْ سُنَّةِ الظُّهْرِ فَأُقِيْمَتْ یا د ماپښین په سنتو کې وي او جماعت ودرول سي سَلَّمَ عَلٰى رَأْسِ رَكْعَتَيْنِ نو سلام دې وګرځوي پر سر د دوو رکعتونو (یعني دوه رکعته دې پوره کړي او سلام دې وګرځوي) وَهُوَ الْأَوْجَهُ او همدا زیات مُدلّل دي (همدا مستند خبره ده) ثُمَّ قَضَى السُّنَّةَ بَعْدَ الْفَرْضِ بیا دې له فرضو څخه وروسته د سنتو قضاء راوړي.

**تشریح:** که د جمعې تر لمانځه مخکې سرې په څلورو رکعتو سنتو کې وي او په دې دوران کې خطیب را ووځي یعني خطبه شروع سي، یا د ماپښین تر لمانځه مخکې په څلورو رکعتو سنتو کې وي او په دې دوران کې د ماپښین جماعت ودرېږي، نو د مصنف رَحِمَهُ الله په نېز راجح دا ده چې که سنت کونکی په اولو دوو رکعتو کې وي، نو دوه رکعته دې پوره کړي او سلام دې وګرځوي او بیا دې له فرضو څخه وروسته سنت را وګرځوي (خو که په آخري دوو رکعتو کې وي نو که د دریم رکعت سجده یې کړې وي نو څلورسره رکعته دې پوره کړي، او که د دریم رکعت سجده یې نه وي کړې نو د بعضې مشایخو رایه دا ده چې د ناستې و طرف ته دې را وګرځي او پر دویم رکعت دې سلام وګرځوي او په آخر کې دې سجدهٔ سهو هم وکړي)، خو د بعضو په نېز صحیح دا ده چې مطلقاً دې خپل څلور رکعته سنت په مختصره قرائت سره پوره کړي. برابره ده د جماعت درېدلو په وخت کې سنت کونکی په اولو دوو رکعتو کې وي او که په آخري دوو رکعتو کې وي، د دواړو صورتونو ګنجایش سته، د موقع مطابق چې کوم صورت مناسب وګڼي، پر هغه دې عمل وکړي. (شفاء الارواح بحوالهٔ عمدة الفقه، انوار الایضاح)

## د سهار د سنتو مسئله

﴿۳۹﴾ وَمَنْ حَضَرَ وَالْإِمَامُ فِيْ صَلٰوةِ الْفَرْضِ او څوک چې حاضر سي په داسې حال کې چې امام په فرضي لمانځه کې وي اِقْتَدٰى بِهٖ نو په هغه پسې دې اقتداء وکړي وَلَا يَشْتَغِلُ عَنْهُ بِالسُّنَّةِ إِلَّا فِي الْفَجْرِ او نه دې مشغولېږي له دې (فرضي لمانځه) څخه په سنتو مګر په (سنتو د) سهار کې إِنْ أَمِنَ فَوْتَهٗ (په دې شرط) که چېرې د هغه (سهار د لمانځه) له فوتېدلو څخه په امن وي (یعني

دجماعت فوتېدلو اتېرېدلو اېېره نه وي) وَإِنْ لَّمْ يَأْمَنْ او كه په امن نه وي (يعني د جماعت فوتېدلو بېره وي)
تَرَكَهَا نو سنت دې پرېږدي.

**لغات:** ﴿حضر﴾ د نصر د باب ماضي ده: حاضرېدل، راتلل، ﴿يشتغل﴾ مشغولېدل، توجه ليري كېدل، ﴿أَمِنَ﴾ د سمع د باب ماضي ده، أَمْنًا: مطمئن كېدل، بې خوفه كېدل.

**تشريح:** كه يو كس داسې وخت مسجد ته ورسېږي چې جماعت ولاړ وي او تر اوسه هغه كس سنت مؤكده نه وي كړي لكه د ماپښين او جمعې په لمانځه كې، نو په عبارت كې خو مطلق حكم سوى دى چې هغه دې په سنتو نه مشغوله كيږي بلكې په امام پسې دې قتداء وكړي، لېكن په دې كې څه تفصيل دى لكه په حاشيه كې چې هم ذكر دي چې كه د دې كس غالب گومان دا وي چې ركوع ته د امام له تللو څخه مخكې زه سنت پوره كولاى سم او د جماعت يو ركعت به هم را څخه تېر نه سي، نو له مسجد څخه دباندې په جلا ځاى كې دې هغه وكړي، بيا دې اقتداء وكړي. او كه د ركعت تېرېدلو بېره وي، نو سنت دې نه كوي بلكې په جماعت كې دې شريک سي.

إِلَّا الفجر إلخ: خو كه د سهار په لمانځه كې داسې وخت مسجد ته ورسيږي چې جماعت ولاړ وي، نو څرنگه چې د سهار سنت زيات مؤكد دي چې په ټوله سنن مؤكده وو كې په اوله درجه سره مؤكد دي، نو ځكه د سهار په سنتو كې حكم دا دى چې كه دآخري ناستې د نيولو اُميد وي چې امام به په آخره ناسته كې ونيسم، نو مخكې دې سنت له مسجد څخه بهر په يو ځاى كې وكړي او كه ځاى نه وي، نو په مسجد كې دننه په يو كونج او گوښه كې دې يې وكړي (ياد كومو مسجدونو په مېنځ كې چې پايې (ستني) يعني پيلران جوړ سوي وي، هغه ته دې ودرېږي او سنت دې پوره كړي)، او كه دآخري ناستې (تشهد) د نيولو اُميد نه وي، نو سنت دې پرېږدي او په جماعت كې دې شريک سي. (شفاء الارواح)

## د سهار د سنتو قضاء

﴿۵۰﴾ وَلَمْ تُقْضَ سُنَّةُ الْفَجْرِ إِلَّا بِفَوْتِهَا مَعَ الْفَرْضِ او قضاء به نه راوړل كيږي د سهار د سنتو مگر د فرضو سره د هغوى د فوتېدلو په صورت كې (يعني كله چې فرض او سنت دواړه فوت اقضاء سي. نو بيا د سنتو قضاء راوړل كېدلاى سي).

**لغات:** ﴿لم تقض﴾ د ضرب له بابه د جحد صيغه ده، مصدر: القضاءُ: اداء كول، د لمانځه قضاء راوړل (له وخت تېرېدلو څخه وروسته راگرځول).

**تشریح**: د سهار سنت که د فرضو سره قضاء سي، نو تر زوال مخکي د فرضو سره يو ځاى د سنتو راګرځول هم پکار دي او که تر زوال وروسته يې راګرځوي، نو صرف فرض دي وکړي. او که صرف سنت پاته سوي وي، نو د سنتو قضاء نسته، خو په همدې ورځ د اشراق له وخت څخه بيا د زوال تر وخته پوري د هغه سنتو اداء کول ښه دي. (در مختار مع الشامي ج:۱، ص: ۶۷۲)

## د ماپښين د سنتو قضاء

﴿ ۴۵۱ ﴾ وَقَضَى السُّنَّةَ الَّتِي قَبْلَ الظُّهْرِ فِي وَقْتِهِ قَبْلَ شَفْعِهِ او قضاء دي راوړي د هغه سنتو کوم چي د ماپښين تر لمانځه مخکي دي د ماپښين په وخت کي د ماپښين تر دوه رکعته سنتو مخکي.

**لغات**: ﴿شفع﴾ جوړه، دوه، هغه شمېر کوم چي پر دوو برابر تقسيم سي، دلته ځني مراد د ماپښين تر فرضو وروسته دوه رکعته سنت دي.

**تشریح**: که د ماپښين تر لمانځه مخکي څلور رکعته سنت نه وکړل سي، نو د ماپښين تر لمانځه وروسته دي هغه را وګرځوي، اوس به هغه د ماپښين تر دوه رکعته سنتو مخکي را ګرځوي او که وروسته. نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي اول دي دوه رکعته سنت وکړي، بيا دي هغه څلور رکعته سنت را وګرځوي، او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي اول دي څلور رکعته سنت را وګرځوي بيا دي دوه رکعته سنت اداء کړي، مصنف رَحِمَهُ الله د امام محمد رَحِمَهُ الله قول اختيار کړی دی. لېکن دواړه قولونه مفتیٰ به دي، خو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله پر قول عمل زيات دی. (شفاء الارواح بحوالة عمدة الفقه)

## لمونځ ګزار کله د جماعت نيونکی يا د جماعت د فضيلت حاصلونکی شمېرل کېږي؟

﴿ ۴۵۲ ﴾ وَلَمْ يُصَلِّ الظُّهْرَ جَمَاعَةً بِإِدْرَاكِ رَكْعَةٍ او لمونځ يې نه دی کړی د ماپښين په جماعت سره د يوه رکعت په نيولو سره (يعني د يوه رکعت په نيولو سره لمونځ ګزار د جماعت نيونکی نه شمېرل کېږي) بَلْ أَدْرَكَ فَضْلَهَا بلکي هغه د جماعت فضيلت ونيوی (وموندی).

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي کوم څوک د امام سره د فرضي لمانځه يو رکعت ونيسي، نو دا به ويل کېږي چي هغه جماعت نه دی نيولی (يا په بله وينا په جماعت سره يې لمونځ نه دی کړی)، خو هغه ته د جماعت فضيلت حاصلېږي. (شفاء الارواح)

**يادونه**: د دې مسئلې تعلق په حقيقت کي د قسم سره دی، نو که يو څوک قسم واخلي چي (معاذ الله!) نن به د ماپښين لمونځ په جماعت سره نه کوم، نو دا سي څوک که صرف يو رکعت د امام سره

ونيسي (يو ركعت په جماعت سره وكړي)، نو هغه نه حانث كيږي (يعني قسم يې نه ماتيږي)، ځكه د يوه ركعت نيولو ته عرفاً په جماعت سره اداء كول نه وايي او د قسم دار ومدار پر عرف وعادت دی.

او د جماعت د فضيلت حاصلېدلو په هكله په عبارت كي مذكوره حكم د امام محمد رحمه الله په نېز دی يعني چي تر څو د امام سره لږ تر لږه په يوه ركعت كي شريک نه سي، د جماعت فضيلت نه حاصليږي، لېكن د جمهورو احنافو موقف دی دا دی چي كه د لمانځه په هسي يوه جزء كي د امام سره شريک سي، حتی چي په آخره ناسته كي هم، نو په جماعت سره د لمونځ كولو فضيلت ورته حاصليږي. (كبيري ص: ۵۱۰، شامي ج: ۲، ص: ۵۱۰، كتاب المسائل ص: ۳۸۸)

﴿ ۵۲ ﴾ وَ اخْتُلِفَ فِيْ مُدْرِكِ الثَّلَاثِ او اختلاف سوی دی د دريو ركعتو د نيونكي په باره كي.

**لغات**: ﴿مدرك﴾ د افعال له بابه فاعل دی: نيونكی، موندونكی.

**تشريح**: كه څوک په څلور ركعتيز لمانځه كي درې ركعته د امام سره ونيسي او يو ركعت ځني تېر سوی وي، نو په دې كي اختلاف دی: يو قول دا دی چي داسي كس ته هم د جماعت نيونكی (په جماعت سره لمونځ كونكی) نه ويل كيږي، همدا اظهر قول دی او پر همدې فتویٰ ده او د بعضو په نېز داسي كس ته د جماعت نيونكی (موندونكی) ويل كيږي. (لهذا كه څوک قسم واخلي چي په جماعت سره به لمونځ نه كوم او هغه درې ركعته د امام سره وكړي، نو هغه نه حانث كيږي (قسم يې نه ماتيږي): ځكه د اظهر او مفتی به قول مطابق د دريو ركعتو په نيولو سره هم د جماعت نيونكی نه ورته ويل كيږي اشفاء الارواح). څو څرنګه چي د دې مسئلې مدار پر عرف دی، نو ځكه د حانث كېدلو او نه حانث كېدلو په هكله به عُرف ته كتل كيږي چي په عُرف كي د څومره ركعتو نيونكی د پوره جماعت نيونكی شمېرل كيږي (مدني).

## د سنتو او نفلو اهميت

﴿ ۵۳ ﴾ وَيَتَطَوَّعُ قَبْلَ الْفَرْضِ إِنْ أَمِنَ فَوْتَ الْوَقْتِ او نفل به تر فرضو مخكي كوي كه چيري په امن وي له وخت فوتېدلو څخه (يعني د وخت تېرېدلو بيره نه وي) وَإِلَّا فَلَا كنې نو نه (دي يې كوي).

**تشريح**: دا عبارت مجمل دی، تفصيل يې دا دی چي نفل پر دوه قسمه دي: ① سنت مؤكده، ② سنت غير مؤكده. او لمونځ گزار له دوو حالو څخه خالي نه دی، يا هغه به فرضي لمونځ په جماعت سره اداء كوي يا منفرداً (يوازي) به يې اداء كوي، كه هغه په جماعت سره اداء كونكی وي، نو د هغه لپاره لازم دي چي سنت مؤكده وكړي او كه منفرد وي، نو د يوه روايت مطابق پر هغه هم لازم دي او بعضو ويلي دي چي هغه ته اختيار دی يعني كوي يې او كه يې نه كوي (حاشيه بحوالة شفاء الارواح). (خو په اكثره عباراتو كي د منفرد او غيرِ منفرد ترمينځ هيڅ فرق نسته، بلكي د وخت د گنجايش په

وخت کې د هر يوه لپاره د سنتو خيال ساتل ضروري دي، او سنت هم درجه په درجه دي، تر ټولو اعلیٰ مقام د سهار د سنتو دی. بیا له ماپښین څخه مخکې د څلورو رکعتو سنتو دی...). او پاتـه سو سنت غير مؤکده، نو په هغه کې مطلق اختيار دی چې کوي يې او که يې نه کوي (حاشيه). لېکن تر فرضو مخکې سنت او نفل به هغه وخت کوي کله چې په وخت کې ګنجائش وي او که وخت تنګ وي. نو اول به فرضې لمونځ کوي چې هسې نه فرض له خپل وخت څخه واوړي. (شفاء الارواح)

**يادونه**: علامه طحطاوي رَحِمَهُ الله ليکلي دي چې که مصنف رَحِمَهُ الله د "فوت الوقت" پر ځای "فوت الجماعة" ويلي وای، نو ښه به وای؛ ځکه کله چې دا معلومه سي چې د جماعت فوتېدلو د بيري په وخت کې نفل او سنت پرېښوولای سي، نو د وخت فوتېدلو د بيري په وخت کې به په درجه اولیٰ د هغوی پرېښوول معلوم سي. (انوارُ الايضاح بحوالهٔ طحطاوي علی مراقی الفلاح)

## د رکوع نيونکي حکم

﴿٢٠٨﴾ وَمَنْ أَدْرَكَ إِمَامَهُ رَاكِعًا او څوک چې ونيسي (وموندي) خپل امام په رکوع کې فَكَبَّرَ وَوَقَفَ حَتَّى رَفَعَ الْإِمَامُ رَأْسَهُ نو دئ تکبير ووايي او ودرېږي تر دې چې امام (له رکوع څخه) خپل سر راپورته کړي لَمْ يُدْرِكِ الرَّكْعَةَ نو هغه دغه رکعت نه ونيوی.

**تشريح**: صورت د مسئلې دا دی چې که يو څوک مسجد ته په داسې وخت کې ورسېږي چې امام په رکوع کې وي، او هغه د ولاړي په حالت کې تکبير ووايي او رکوع ته ولاړ نه سي بلکي همداسې ودرېږي يا لږ غوندي کوږ سي او امام د هغه له رکوع څخه مخکې سر راپورته کړي، نو په دې دواړو صورتونو کې هغه د رکعت نيونکی نه شمېرل کېږي.

## که مقتدي له امام څخه مخکې رکوع ته ولاړ سي، نو څه حکم دی؟

﴿٢٠٩﴾ وَإِنْ رَكَعَ قَبْلَ إِمَامِهِ بَعْدَ قِرَاءَةِ الْإِمَامِ مَا تَجُوزُ بِهِ الصَّلٰوةُ او که چېري مقتدي تر خپل امام مخکې رکوع وکړي، د امام له دومره قرائت څخه وروسته چې په هغه سره لمونځ جائز کېږي فَأَدْرَكَهُ إِمَامُهُ فِيهِ بيا امام هغه په رکوع کې ونيسي (يعني هغه د امام د رکوع کولو تر وخته پوري په رکوع کې پاته سي) صَحَّ نو (د مقتدي رکوع) صحيح ده وَإِلَّا لَا كنې (صحيح) نه ده.

**تشريح**: مسئله دا ده چې که مقتدي له امام څخه مخکې رکوع ته ولاړ سي، نو په دې صورت کې د مقتدي رکوع په دوو شرطونو سره صحيح کېږي؛ يو دا چې مقتدي د امام د رکوع کولو تر وخته په

رکوع کي پاته سي تر دې چي هغه دامام سره په رکوع کي شریک سي (که څه هم داسي کول مکروه تحریمي دي. خو رکوع یې صحیح کیږي)، دویم شرط دا دی چي مقتدي به دامام له دومره قرائت کولو څخه وروسته رکوع کړې وي چي په هغومره قرائت سره لمونځ جائز کیږي. لهذا که مقتدي دامام له "ما تجوز به الصلاة قرائت" څخه مخکي رکوع کړې وي. نو بیا که څه هم امام هغه په رکوع کي نیولی وي، نو هم د هغه رکوع نه صحیح کیږي. همدارنګه که مقتدي له "ما تجوز به الصلاة قرائت" څخه وروسته رکوع کړې وي، خو دامام له رکوع کولو څخه مخکي یې سر پورته کړی وي. نو بیا هم د هغه رکوع نه صحیح کیږي. لهذا داسي مقتدي لپاره ضروري ده چي دوباره دامام سره رکوع وکړي، که یې نه وکړي، نو لمونځ یې نه کیږي. (شفاءُ الارواح. حاشیه)

## تر اذان وروسته له مسجد څخه د وتلو حکم

﴿۵۵۶﴾ وَكُرِهَ خُرُوْجُهٗ مِنْ مَسْجِدٍ أُذِّنَ فِيْهِ او مکروه دي د سړي وتل له داسي مسجد څخه چي په هغه کي اذان سوی وي حَتّٰى يُصَلِّيَ تر دې چي لمونځ وکړي إِلَّا إِذَا كَانَ مُقِيْمَ جَمَاعَةٍ أُخْرٰى مګر دا چي کله هغه وي درونکی (لمونځ ورکونکی) دبل جماعت (یعني بل ځای امام وي).

**لغات**: ﴿كُرِهَ﴾ د سمع له بابه ماضي مجهوله ده: مکروه کېدل. دلته مراد ځني مکروه تحریمي دي.

**تشریح**: صورت د مسئلې دا دی چي که یو څوک مسجد ته په داسي وخت کي داخل سي چي اذان سوی وي، یا د هغه تر داخلېدلو وروسته اذان وسي، نو په داسي صورت کي که هغه د لمونځ کولو څخه بغیر له مسجده څخه ووځي، نو لیدونکي کسان به پر هغه دا بد ګوماني وکړي چي دا کس ګردسره لمونځ نه کوي، نو په دې جه له مسجد څخه وتل مکروه تحریمي دي (او له اذان څخه په ظاهره دا مراد دي چي صرف د لمانځه وخت شروع سوی وي او سړی په مسجد کي وي. برابره ده اذان په هغه مسجد کي سوی وي او که په یو بل مسجد کي، یا هیڅ ځای هم سوی نه وي احاشیه)، دابنِ ماجه وغیره په یوه روایت کي له مسجد څخه وتونکي ته منافق ویل سوي دي، خو هلته د دې خبري صراحت هم سته چي هغه بلا ضرورته ووځي او د واپس راتللو اراده یې هم نه وي، همدارنګه فقهاؤ نور څه هم مستثنیٰ کړي دي. مثلاً هغه کس په بل مسجد کي د امامت یا د اذان یا د جماعت د انتظام ذمه وار وي. نو د هغه لپاره وتل جائز دي. (شامي ج: ۱، ص: ۶۸۸)

﴿۵۵۷﴾ وَإِنْ خَرَجَ بَعْدَ صَلٰوتِهٖ مُنْفَرِدًا او که ووځي وروسته له خپل تنها لمونځ کولو څخه (یعني ځان ته یوازي لمونځ وکړي او بیا له مسجد څخه ووځي) لَا يُكْرَهُ إِلَّا إِذَا أُقِيْمَتِ الْجَمَاعَةُ

قَبْلَ خُرُوْجِهٖ فِي الظُّهْرِ وَ الْعِشَاءِ نو مکروه نه دي، مګر دا چې کله ودریږي جماعت د هغه له وتلو څخه مخکې په ماپښین او مازیګر کې فَيَقْتَدِيْ فِيْهِمَا مُتَنَفِّلًا نو اقتداء دې وکړي په دې دواړو کې د نفلو په نیت سره.

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چې که یو څوک تر اذان وروسته په مسجد کې تنها (یوازې) لمونځ وکړي، نو بیا له جماعت د ږلو څخه مخکې بېله کراهته وتلای سي، لیکن که هغه په مسجد کې وي او په همدې دوران کې جماعت ودریږي، نو اوس به څه کوي؟، نو فرمایي چې که د ماپښین یاد ماخوستن د لمانځه جماعت وي، نو هغه دې د نفلو په نیت سره په امام پسې اقتداء وکړي او که د مازیګر یا سهار لمونځ وي، نو د نفلو په نیت سره دې نه ور سره شریک کیږي؛ ځکه د مازیګر او سهار تر لمانځه وروسته نفل ممنوع دي، همدارنګه د ماښام په لمانځه کې دې هم نه ور سره شریک کیږي: ځکه نفل درې رکعته نه کیږي. (انوار الایضاح بحوالۂ مراقی الفلاح)

## تر لمونځ کولو وروسته د هغسې لمونځ کولو حکم

﴿۵۸﴾ وَلَا يُصَلّٰى بَعْدَ صَلٰوةٍ مِثْلُهَا او نه به اداء کول کیږي تر یوه لمانځه وروسته د هغه په څېر (بل) لمونځ.

**تشریح:** د دې عبارت څو مطلبونه بیان سوي دي: ① یو مطلب یې دا دی چې د اجر او ثواب په شوق کې دې یو فرض لمونځ بل وار نه کول کیږي. ② بل مطلب یې دا دی چې بلا وجه محض د فاسد ږلو په وسوسه او وهم سره دې هغه لمونځ بیا نه راګرځول کیږي. ③ دریم دا چې تر جماعت کولو وروسته دې بل جماعت په هغه مسجد کې پر هغه ځای نه کول کیږي (یعني تکرار الجماعة دې پر مخکیني هیئت په مسجد کې دننه نه کول کیږي). ④ بل دا چې دوه رکعته په قرائت سره او دوه رکعته بلا قرائته داسې دې نه کول کیږي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

قد تمّ الجزء الأول من "فتح الإيضاح في شرح نور الإيضاح" ويليه الجزء الثاني، أوله باب سجود السهو

اللّٰهم اغفر لنا وارحم ولوالدينا ولأساتذتنا ولمن قام بالمساعدة عليه

ربنا تقبل منا إنك أنت السميع العليم وتب علينا إنك أنت التواب الرحيم

وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد وعلى آله وصحبه أجمعين



# فهرس

## كِتَابُ الصَّلاةِ

## فَصْلٌ (فِيْ لَوَاحِقِهَا) ........................ ۲۵۵

## ﴿د فتحُ الايضاح خصوصيات﴾

(۱)...د عربي عبارت د هري جملې تر څنګ آســـانه ژباړه او په کوم ځای کي چي جمله او عبارت مشـــــــکل وي، په قوسَینو کي په آسانه الفاظو سره د هغه وضاحت.

(۲)...هري مســـــئلې ته نمبر (رقم) ورکړل سوی دی او په دې توګه له کتابُ الطهارة څخه تر کتابُ الحج پوري په ټوله کتاب کي (۱۴۸۲) ارقام په وجود کي راغلي دي، په نُور الایضاح کي (۱۴۸۲) مسائل دي، خو ځینو اوږدو مسئلو یا څو نورو ضمني مسائلو ته هم جلا نمبر ورکړل سوی دی.

(۳)...د عربي عبارت بشپړ د هر حرف اعراب، په پوره تحقیق او تدقیق سره.

(۴)...د لغاتو پوره، کافي حلّ او د هغوی صرفي تحقیق.

(۵)...د هري مسئلې تشریح او بشپـړ وضاحت.

(٦)...د عنواناتو اضافه.

(۷)...د ضروري مسئلو اضافه، په بعضي عباراتو کي د مسئلې تر تشریح وروسته د هغه عبارت سره مناسبي مسئلې هم اضافه سوي دي، د دې لپاره چي د عبارت د مســئلې تر څنګ په نورو مسئلو باندي هم علم راسي.